وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ

تفسیر

# احسن الکلام

بلغة البشتو

للشيخ أبي زكريا عبد السلام الرستمي

الجزء التاسع

نهم جزء

دسورة ملک نه ترسورة الناس پورے

الناشر:
جامعة عربية لإشاعة التوحيد والسنة
بډه بير - پشاور

# فهرست دَ مضامينو

دَ نهم جلد

| سُورَةُ الْمُلْكِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۳۰ رُكُوْعَاتُهَا ۲ |
|---|---|---|

تَبٰرَكَ الَّذِيْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ ز وَهُوَ عَلٰى كُلِّ

ډېر لوی برکتونو والا هغه ذات دے چه په لاس کښې بادشاهي ده او هغه په هر

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة ملك دَ دے سورت نور نومونه دا دی- سورة تبارك.
المانعه، المنجیه، المجادله، الواقیه، المنّاعه.

ربط دَ دے سورت دَ مخکښې سورت سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا چه په مخکښې سورت کښې حقوق دَ انسانانو په یو بل باندے ذکر شول نو په دے سورت کښې حقوق دَ الله تعالیٰ ذکر کوی چه توحید فی البرکات والاسماء والصفات دے او ایمان په رسول او په قرآن او په بعث بعد الموت باندے دویمه وجه دا چه په هغه سورت کښې عذاب دَ دوه زنانو دَ انبیاؤ ذکر کړو او مداح دَ امرءة فرعون او مریم علیهما السّلام ذکر شوه نو په دے سورت کښې سبب دَ فرق ذکر کوی چه هغه عقیده دَ توحید ده. دریمه وجه دا ده چه په تیر سورت کښې برکات الٰهیه ذکر شول په ازواجو دَ نبی صلی الله علیه وسلّم او امرءة فرعون او مریم باندے نو په دے سورت کښې توحید فی البرکات ذکر کوی. څلورمه وجه په هغه سورت کښې هیبت دَ اُور دَ جهنم په یو طریقه سره ذکر شو نو په دے سورت کښې هغه هیبت په بله طریقے سره ذکر کوی. پنځمه وجه دَ هغه سورت په آخر کښې " کلمات ربه " ذکر کړے وو نو په دے سورت کښې تفصیل دَ بعض کلمات (چه اسماء او صفات الٰهیه او احکام دی) ذکر کوی.

دعویٰ دَ سورت- اثبات دَ توحید فی البرکات دے په دلیلونو عقلیو انفسی او آفاقی سره او په ذکر دَ اسماء او صفاتِ الٰهیه سره. دلیلونه دولس دی او اسماء لس دی. او په دے کښې رد دے په شرك فی التصرف باندے په ۱، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۸، ۳۰ کښې او په شرك فی العلم باندے رد په ۱۳، ۱۴ کښې دے.

خلاصه دَ سورت. دعویٰ دَ توحید فی البرکات سرهٔ دَ دریو دلیلونو عامو

شَيْءٍ قَدِيْرُ ۝ الَّذِيْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ

خیز باندے قدرت والا دے، دالسے ذات دے چه پیدا کړیدے مرګ او ژوند

نه ذکر کوی په ۱ ۲ ۳ کښ بیا نهٔه عقلی دلیلونه یې ذکر کړے دی چه په هغے کښ دَ برکاتِ خاصه ذکر دے برکات دَ اسمانونو او برکات دَ زمکے او برکات دَ مارغانو او دَ انسانانو۔ تفصیل یې دا دے چه په ۳ کښ دلیل متعلق دَ اسمانونو سره ذکر کوی او ۵ کښ دوه فائدے متعلق دَ ستورو سره په دلیل سره ذکر کوی.
بیا دَ ۶ نه تر ۱۱ پورے تخویف اخروی په اته قسمونو دَ هیبتونو سره ذکر کوی او په ۱۲ کښ مختصر بشارت دے په ۱۳ ۱۴ کښ دلیل دے په عموم دَ علم دَ الله تعالیٰ سره په ۱۵ کښ احوال او فائدے دَ زمکے ذکر کوی په طریقه دَ دلیل سره بیا په درے ایاتونو کښ تخویف دنیوی ذکر دے بیا په ۱۹ کښ احوال دَ طیورو وسطی دے. بیا رد دے په مشرکانو باندے په ۲۰ ۲۱ کښ بیا په ۲۳ ۲۲ کښ دلیلونه دَ احوالو دَ انسان دی. بیا رد دے په منکرینو دَ بعث بعد الموت په ۲۵ ۲۶ ۲۷ کښ بیا دوه دلیلونه اعترافی ذکر کوی په ۲۸ ۲۹ ۳۰ کښ.

**تفسیر** ۱ په دیکښ دعویٰ دَ سورت ده او په هغے باندے دوه دلیلونه عقلی عامه دی. تَبٰرَكَ دا کلمه په سورة اعراف، مؤمنون، غافر، فرقان کښ او سورة رحمان او سورة زخرف کښ تیره شویده. برکت په اصل کښ زیادت ته وئیلے شی که حسی وی او که عقلی وی او ډیر والی دَ خیر او همیش والی ته وئیلے کیږی او صیغه دَ بابِ تفاعل دَ مبالغے دَپاره ده نو معنیٰ دا چه الله تعالیٰ ډیرے لوئے والا دے دَ ذات او صفاتو او افعالو په اعتبار سره او دَ هر خیر او نفع پیدا کوونکے او ورکوونکے دے او آلوسی په روح المعانی کښ لیکلی دی چه دَ دے کلمے استعمال دَ ماسویٰ الله دَپاره شرعًا منع دے. نو په دیکښ رد دے په هغه چا باندے چه مالِك دَ نفع او دفع دَ ضرر او خیر ورکوونکے او اولاد او مالونو کښ برکت اچوونکے دَ الله تعالیٰ نه سیوا انبیاء اولیاء وغیره ګنړی او دے ته شرك فی البرکات وئیلے کیږی. الَّذِیْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ، ید الله تعالیٰ لره په حقیقی معنیٰ سره ثابت دے لیکن بغیر دَ تمثیل او دَ تشبیه نه دَ مخلوق سره او تاویل کول په قدرت او نعمت سره حرام دی او دا

لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ؕ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ ﴿۲﴾

دَ دے دَپاره چه ازمینت اوکړی په تاسو چه کوم یو ستاسو نه خائسته عمل کوونکے دے، او هغه زورور دے بخنه کوونکے

انکارکول دی دَ صفت دَ الله تعالیٰ نه دا رنګ شرح فقه اکبرکښ امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل کړے شویدی "چه هرکله اختیار دَ امر ونهی او تدبیر او تصرف چلول شپه او ورځ پیدا کول عزت ذلت ورکول احیاء اماتت مالداری او فقر راوستل وغیره ټول په لاس دَ الله تعالیٰ کښ دی نو برکت ورکول دَ بل چا نه ممکن نه دی" نو دا اول دلیل شو دَ دعوے دَ پاره ۔

دویم دلیل وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ، شيء عام دے برکت اچول خیر پیدا کول مرض لرے کول دَ بندګانو کارونه وغیره ټولو ته شامل دے شربینی په سراج المنیر کښ لیکلی دی چه دا دلیل دے چه هر تاثیر نه دے مګر په قدرت دَ الله تعالیٰ سره دے ماده او طبیعت دَ څیز مؤثر نه دی لکه چه دهریان او فلاسفه وائی او اسباب هم پخپله مؤثر نه دی لکه چه معتزله وائی ۔ او کارونه دَ بندګانو مخلوق او مقدور دَ الله تعالیٰ دی او دا دَ اهلِ سنت مسلک دے دَ دے نه معلومه شوه چه په برکت اچولو باندے دَ ماسِوَی الله قدرت نیشته۔

۲ دادریم دلیل دَ دعوے دے په طریقه دَ عموم سره هر موجود پس دَ عدم نه ورته شامل دے ۔ (سوال) خَلَقَ خو ایجاد دے او موت خو عدمی څیز دے نو دَ هغې سره دَ خَلَقَ څنګه نسبت دے ؟ (جواب) په ډیر وجوهو سره دے اوله وجه دا چه موت عدمی دے په عدم والملکه سره لکه عمیٰ په مقابله دَ بصر کښ او داسے عدمی ته نسبت دَ ایجاد کیدیشی ۔ دویمه وجه دا ده چه خَلَقَ په معنیٰ دَ قدر دے او تقدیر دواړو ته شامل دے ۔ دریمه وجه دا ده چه مراد دَ موت نه نطفه په صلب (ملا) دَ پلار کښ ده بیا په رحم دَ مور کښ لکه سورة بقره ۲۸ کښ دے ته اَمْوَاتًا ویلے دی ۔ څلورمه وجه دا ده چه موت او حیات دواړه وجودی دی او دَ دوی په مینځ کښ تقابل او تضاد دے او دَ دے وجے نه په ورځ دَ قیامت کښ به موت په صورت دَ لمور ګډ کښ جوړ کړیشی او بیا به ذبح کړیشی او دا په صحیح حدیث کښ راغلے دی ۔

(سوال) ژوند خو مخکښ دے او وروستو مرګ دے نو دلته ئے (راپاتے په بل مخ)

الَّذِیْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ؕ مَا تَرٰی فِیْ

| داسے ذات دے چه پیدا کړیدی اُوه | اسمانونه | لاندے باندے، او په نه وینے | په |
|---|---|---|---|

موت په څه وجے سره مخکښی ذکر کړو ؟ (جواب) په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه مراد دَ موت نه اول حالت دے چه نطفه ده لکه چه اوس ذکر شول او دغه حالت مخکښی دے په حیات دنیویه باندے او دویم موت هم مقدم دے په حیات اخرویه باندے او په دیکښی اشاره ده چه مراد دَ موت او حیات نه دواړه کرته موت او حیات دے په طریقه دَ ذکر دَ مفرد او مراد ترینه جنس دے. دویمه وجه دا ده چه صفت دَ قهر او دَ قدرت په باره دَ مرګ کښی څه واضح دے په نسبت دَ ژوند سره . دریمه وجه دا ده چه تقدیم دَ مرګ ئے دَ دے وجے نه کړیدے چه په انسان باندے خوف او فکر دَ مرګ غالب شی په نسبت دَ حرص دَ ژوند سره - لِیَبْلُوَکُمْ داسے په سورت هود ۷ او سورة کهف ۷ کښی هم تیر شویدی . (سوال) ابتلاء او امتحان وی دَ دے دَ پاره چه دَ افرادو فرق معلوم شی او الله تعالیٰ خو عالم بکل شئ دے ؟ (جواب) ابتلاء ماخوذ ده دَ بلاء نه او هغه په اصل کښی حقیقت معلومولو ته وئیلے کیږی نو معنیٰ دا ده چه او به نبائی تاسو ته حقیقت دَ عملونو ستاسو لکه چه سورة یونس ۳۰ کښی ذکر دی نو اوس په دُنیا کښی هر انسان ګمان کوی چه زما عمل خائسته دے لیکن دا حقیقت به په ورځ دَ اخرت کښی ښکاره شی او ښا پیدے توجیه باندے الحیاة نه مراد حیات اخرویه دے او لیبلوکم نه مراد په اخرت کښی خودل دی نو عمل حسن به په قیامت کښی ښکاره شی. دویم جواب عام مفسرینو ذکر کړیدی چه مراد دَ ابتلاء نه داسے معامله ده چه مشابه ده دَ ابتلاء سره ، او په دُنیا کښی ژوند او ویره دَ مرګ ئے دَ دے وجے نه پیدا کړیده چه ستاسو سره معامله دَ امتحان اوکړی چه کوم یو خائسته عمل کوئے - اَیُّکُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا دَ فضیل بن عیاضؒ روایت دے چه اکثر عملاً ئے نه دی وئیلے ځکه چه ډیر والے دَ عمل مقصود نه دے بلکه خائست دَ هغے مطلوب دے او خائست دَ پاره دوه شرطونه دی یو اخلاص او دویم موافقت دَ سنت سره که په دواړو کښی یو شرط هم نه وی نو عمل به برباد وی اګر چه ډیر وی یعنی که شرک جلی یا خفی وی یا مخالفت دَ سنت نه وی په طریقه دَ بدعت او که په

خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ ؕ فَارْجِعِ الْبَصَرَ ۙ هَلْ

پیدا کولو دَ رحمٰن ذات کښې هيڅ نقصان نو اوګرځوه سترګے آیا

تَرٰى مِنْ فُطُوْرٍ ۞۳ ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ

وينې ته څه چاودونه. بيا اوګرځوه سترګے بار بار (بيا بيا)

رواج یا فِسق و فجور سره نوعمل به برباد وی. الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ پدے دواړه صفتونو جمع کولو کښې تخویف او بشارت دواړه دی په ترتیب سره ځکه چه انسان به یا احسن عمل والا وی نو هغه دَ پاره بشارت دے په مغفرت سره یا به ناکاره عمل والا وی نو دَ هغه دَ پاره تخویف دے په العزیز سره.

سے۳ دا دلیل عقلی خاص متعلق دے دَ برکاتِ سماویه سره چه هغه څلور حالات دی. عـ۱ اوۀ دی. عـ۲ طباق دی. عـ۳ تفاوت پکښې نیشته. عـ۴ فطور نه پکې دی. طِبَاقًا دا صفت دے دَ سبع او پدے کښې درے وجوه دی جمع دَ طبق ده، جمع دَ طبقت ده، مصدر دَ طابق دے او مضاف محذوف دے (ذات طباق) او مراد دا دے چه دوی دَ یو بل دَ پاسه طبقے طبقے دی یا مراد دا چه دَ یو بل سره موافق مطابق دی په شکل او اکثرو صفاتو کښې.

خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مراد دَ دے نه خلق دَ اسمانونو دے یا عام مراد دے او لفظ دَ رحمان دَ مسئلے دَ برکاتو سره مناسب دے یعنی نعمتونه او برکات دَ دُنیاو رکوونکے دے. مِنْ تَفٰوُتٍ، تفاوت عیب او نقصان او اختلاف او چودونو ته وئیلے کیږی یعنی په پیدائش دَ اسمانونو کښې به عیب او اختلاف او چودونه او نه وینې بلکه پوره هموار بغیر دَ چودونو نه دی لکه په سورة قٓ سـ۶ کښې. یا مراد دَ دے نه اختلاف دے په رعایت دَ حکمت او دلالت کولو کښې په خالق باندے نو بنا په دے دَ خلق الرحمٰن نه دَ ټول مخلوق پیدائش مراد دے ځکه چه وجود دَ ټول مخلوق یو شان دلالت کوی په وجود او توحید دَ خالق باندے.

مِنْ فُطُوْرٍ چودل او کمزورے ته وئیلے کیږی. فَارْجِعِ الْبَصَرَ مراد دَ دے نه کوشش کول دی په نظر کولو سره په اراده دَ فطور معلومولو سره.

يَنْقَلِبْ إِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَّهُوَ حَسِيْرٌ ﴿۴﴾

واپس به راؤګرځي تا ته ستر ګے عاجزے او هغه به ستړے وي.

وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ

او يقينًا ښائسته کړے مونږ اسمان نژدے لره په چراغونو سره

وَجَعَلْنٰهَا رُجُوْمًا لِّلشَّيٰطِيْنِ وَاَعْتَدْنَا لَهُمْ

او جوړ کړيدي مونږ هغه ويشتونکي د شيطانانو او تيار کړيدے مونږ د دوي د پاره

عَذَابَ السَّعِيْرِ ﴿۵﴾ وَلِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ

عذاب د اور بل کړے شوي. او هغه کسانو لره چه کفر ئے کړيدے په رب خپل باندے

سے دا تاکيد د ما قبل دے. كَرَّتَيْنِ دا تثنيه د پاره د کثرت ده يعني که هر څومره ځله بيا بيا نظر اوکړے نو فطور نشي معلوموے. په دے کښ پوره قدرت او علم د الله تعالیٰ ته اشاره ده چه دا سے مخلوق ئے جوړ کړے دے چه په هغے کښ په هيڅ طريقه سره فطور نيشته. او دا رنګ د ټولو انسانانو عجز ته اشاره ده خَاسِئًا خسأ لرے کيدلو ته وئيلے شي يعني لرے به وي د مقصد حاصلولو نه او ذليل او عاجز ته هم وئيلے کيږي. وَ هُوَ حَسِيْرٌ په معنیٰ د فاعل يا د مفعول سره دے يعني ستړے يا ستړے کړے شوے او حسير پښيمانه ته هم وئيلے کيږي.

ڡه دا بل دليل عقلي دے مشتمل دے په نورو برکاتو سما ويه باندے چه هغه تزيين (ښائست) د اسمان دے او رجم د شياطينو دے د پاره د حفاظت د اسمان او حفاظت د وحي د تلبيس د کاهنانو نه. نو دا دنيوي او ديني او ظاهري او باطني برکات دي. او هر کله چه مخکښ ئے د اسمانونو صفتِ سلبيه ذکر کړو نو اوس صفات ثبوتيه ذکر کوي. السَّمَاءَ الدُّنْيَا د دے تفصيل د سورة صافات په اول کښ تير شويدے او ظاهر نه معلوميږي چه ستوري په نورو اسمانونو کښ نيشته صرف په اول اسمان کښ دي بِمَصَابِيْحَ واړه ستورو ته وئيلے شي چه هغه ثوابت ستوري دي د دے وجے نه بعض اهلِ علمو وئيلے دي چه غټ ستوري (سيارات) د اسمان د لاندے دي په خپل خپل فلک (مدار)

عَذَابُ جَهَنَّمَ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ۝٦ إِذَآ أُلْقُوا

عذاب دَ جهنم دے. او بد دے ځائے دَ ورتللو. کوم وخت چه اوغورځولے شی دوی

فِيهَا سَمِعُوا لَهَا شَهِيقًا وَهِيَ تَفُورُ ۝٧

په هغے کښ نو اوری به هغے لره هیبزار او هغه به خوټکیږی.

کښ او ثوابت ستوری په اسمان کښ دی. دویم قول دا دے چه ټول ستوری په اسمان کښ دی. دریم قول دا دے چه ټول دَ اسمان نه کوز دی.

وَجَعَلْنَاهَا رُجُومًا لِّلشَّيَاطِينِ. رُجُومًا جمع دَ رجم ده او رجم مصدر دے مضاف محذوف دے (ذات رجوم) او مصدر ئے جمع راوړے دے اشاره ده چه ویشتل په ډیر قسمه دی یا مصدر په معنیٰ دَ مفعول دے یعنی مَرْجُوْمًا بها. لِلشَّيَاطِينِ مراد دَ دے نه هغه شیطانان دی دَ جناتو نه چه کاهنانو ته دَ ملائکو خبرے راوړی او دروغ ورسره یو ځائے کوی لکه چه حدیث کښ راغلے دی.

(سوال) هرکله چه دا ستوری اویشتلے شی نو زینت خو به خراب شی؟

(جواب) دَ ستوری نه یو شغله جدا کړے شی چه هغے ته شهاب ویلے شی او په هغے سره ویشتل اوشی او ستورے په خپل ځائے باندے پاتے وی لکه چه اور نه لیت بل کړے شی او اور په خپل ځائے باندے پاتے وی. او مقصد پدے ویشتلو کښ دا دے چه دَ وحی سره دروغ دَ شیطانانو او کاهنانو ګډ وډ نشی او اسمان هم محفوظ وی لکه چه دَ سورة صافات په اول کښ ذکر شویدی.

وَأَعْتَدْنَا لَهُمْ اه دا عذاب اخروی دے سعیر په معنیٰ دَ مسعورة سره دے تیز بل کړے شوئے.

ف ۶ دَ أَعْتَدْنَا نه تر ۱۱ پورے دا اته هیبتونه دَ اخرت ذکر کوی.

وَلِلَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ مراد هغه خلق دی چه شرک کوی په برکات ورکولو کښ یعنی برکات ورکوونکے ما سویٰ الله لره ګڼړی. إِذَآ أُلْقُوا فِيهَا غورځول په جهنم کښ به داسے وی لکه چه لرګی (خشاک) دَ لرے نه اور ته غورځیدلے شی. سَمِعُوا لَهَا شَهِيقًا سورة هود ۱۰۶ کښ تیر شویدی چه دَ جهنمیانو به زفیر او شهیق وی او دلته مراد دا دے چه دَ جهنم به شهیق وی نو دا دواړه حالتونه به وی دَ جهنم به هم شور او دَ اهل جهنم (ربا ټے په بل مخ)

تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ ۖ كُلَّمَآ أُلْقِيَ فِيهَا

نژدې ده چه اوبه چوی دَ وجې دَ غصې نه هر وخت چه اوغورځولے شی په هغې کښ

فَوْجٌ سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَآ أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ ⑧

يوه ډله نو تپوس به کوی دَ دوی نه څوکيداران دَ هغې (دَ جهنم) ايا نه وُو راغلے تاسو ته ويرۍ درکوونکی.

قَالُوا بَلَىٰ قَدْ جَآءَنَا نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا وَقُلْنَا

دوی به اوائی هاں ولے نه، يقينًا راغلے وُو مونږ ته ويره راکوونکی نو درواغژن اوګڼل مونږ او مونږ اُووئيل

به هم شور وی ليکن دَ جهنم شهيق به داسے وی لکه خچر چه دَ وربشو خوراک ته هينږېږی دا رنګ جهنم به دے خلقو ته هيڅېږی دَ پاره دَ طلب کولو دَ هغوی. او شهيق آواز دَ خر، خچر، آس دے په سينه دَ هغوی کښ او زفير آواز دے په مرئ دَ هغوی کښ زفير دَ غوختلو په وخت کښ نه وی دَ دے وجے نه دَ جهنم په صفت کښ زفير نه دے راوړے.

وَهِيَ تَفُورُ لکه کتوئ کښ چه څه پخيږی نو کتوئ دَ ډير ګرموالی دَ وجے نه خوټ کيږی يا مراد دا چه دَ غصے دَ وجے نه به جوش وهی.

سـ۸ داکنايه ده دَ ډيرے سختے غصے نه او دا ټول صفات دَ جهنم په حقيقت باندے حمل دی الله تعالیٰ قادر دے چه په اورکښ دا صفتونه پيدا کړی كُلَّمَآ أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ دَ حال دَ جهنم نه روستو حال دَ اهل جهنم ذکر کوی او اشاره کوی چه دَ دوی هيڅ عذر نيشته او سبب دَ عذاب شته دے ځکه چه نذير راغلے وُو او دوی ئے تکذيب کړے وُو فَوْجٌ اشاره ده چه اهلِ جهنم به مختلف جماعتونه وی لکه چه سورة نبا سـ۱۸ کښ ئے افواجًا وئيلے دی او سورة نمل سـ۸۳ کښ هم داسے دی. سَأَلَهُمْ الخ دا تپوس دَ پاره دَ الزام دَ حجت دے لکه سورة غافر سـ۵ کښ تير شويدی نَذِيرٌ رسول او نائبان دَ رسول مراد دی اشاره ده چه الله تعالیٰ بغير دَ ارسال دَ رسول يا دَ نائب دَ هغه نه عذاب نه ورکوی.

مَا نَزَّلَ اللّٰهُ مِنْ شَیْءٍ ۚ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا فِیْ

نه دے نازل کړے الله تعالیٰ هیڅ څیز نه یئ تاسو مګر په

ضَلٰلٍ كَبِیْرٍ ⑨ وَقَالُوْا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ اَوْ نَعْقِلُ

ګمراهئ لویه کښ یئ. او دوی به اُوائی که چرے مونږ اوریدے یا موږ عقل کارا خستلے

مَا كُنَّا فِیْٓ اَصْحٰبِ السَّعِیْرِ ⑩ فَاعْتَرَفُوْا

نه به وے مونږ په اُور والو کښ.. نو اقرار اوکړو دوی

سو پدے کلام کښ حرف دَ جواب چه بَلٰی دے او جواب تفصیلی ( قد جاءنا نذیر ) ئے جمع کړے دی دَ ډیر تحسر او افسوس دَ وجے نه. او دا رنګ په سورۃ زمر ۷۱ کښ ذکر دی. وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ اللّٰهُ مِنْ شَیْءٍ دا ډیره مبالغه ده په تکذیب کښ لکه چه سورۃ انعام ۹۱ او سورۃ یٰسٓ ۱۵ کښ تیر شویدی او دا دَ وجے دَ ضد او عناد نه وائی. اِنْ اَنْتُمْ اه دا هم قول دَ کافرینو دے دَ زیادت تکذیب په باره کښ یا دا قول دَ ملائکو دے جهنم والو ته.

۱۰ دا ندامت او پښیمانی ښکاره کول پدا سے وخت کښ دی چه فائده به نه ورکوی لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ اَوْ نَعْقِلُ دَ حق دَ علم حاصلولو دَ پاره دوه طریقے دی یو اوریدل دَ قرآن او دَ سنت او بل په عقل او فکر سره صحیح اجتهاد کول او دا دواړه کافرانو پرېښودلے وے. ( سوال ) بعض علماؤ دَ دے آیت نه تقلید او اجتهاد ثابت کړیدے یعنی دَ نسمع نه تقلید مراد کوی ؟ ( جواب ) دا باطل قول دے ځکه نسمع نه مراد اوریدل دی دَ نذیر نه ځکه چه مخکښ آیت کښ دَ نذیر او دَ ما انزل ذکر تیر شویدے. او نصوص اوریدل او دَ هغے تابعداری کول خو اتباع ده پدے باندے دَ تقلید اطلاق کول دَ معنے دَ تقلید نه غفلت کول دی او دَ دے وجے نه شربینی وئیلے دی نَسْمَعُ كَلَامَ الرُّسُلِ. قرطبی وئیلے دی نَسْمَعُ مِنَ النُّذُرِ یعنی الرسل. ابن کثیر وئیلے دی نَسْمَعُ مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ الْحَقِّ او هر قول چه خلاف وی دَ تفسیر دَ سلف صالحینو نه نو هغه تفسیر نه وی بلکه تحریف وی. ( فائده ) دَ نسمع مخکښ ذکر کولو نه معلومه شوه چه دلیل سمعی یعنی وحی اول دلیل دے او تعقل روستو دے او دا رنګ معلومه شوه چه دلیل عقلی ( پاتے په بل مخ )

بِذَنۡۢبِهِمۡۚ فَسُحۡقًا لِّأَصۡحَٰبِ ٱلسَّعِيرِ ﴿١١﴾

په ګناهونو خپلو باندے نو تباهي ده اور والو لره .

إِنَّ ٱلَّذِينَ يَخۡشَوۡنَ رَبَّهُم بِٱلۡغَيۡبِ لَهُم

یقیناً هغه کسان چه ویره کوی د رب خپل نه بے د لیدلو نه دوی د پاره

مَّغۡفِرَةٞ وَأَجۡرٞ كَبِيرٞ ﴿١٢﴾ وَأَسِرُّواْ قَوۡلَكُمۡ

بخنه ده او ثواب لوئے دے. او که په دمه وایئ تاسو وینا خپله

او اجتهاد په هله معتبر دی چه په دلیل سمعی باندے بنا وی. او لَوۡ شرطیه دے دَ تمنّا دَ پاره نه دے.

۱۱ دا حاصل دَ ماقبل دے او تصریح ده چه په دا سے وخت کښ اقـرار کول او پښیمانی کول هیڅ فائده نه ورکوی. بِذَنۡۢبِهِمۡ مراد دَ مفرد نه جنس دے ډیر ګناهونه مراد دی، تکذیب، انکار دَ ما انزل الله. رسولانو ته دَ ضلال نسبت کول. سمع او تعقل نه کول او دَ دے ټولو مرجع یو دے چه تکذیب دے دَ دے وجے نه په صیغه دَ مفرد سره یئے ذکر کړل. فَسُحۡقًا سحق په اصل کښ سُلَوَل دَ څیز دی تر دے پورے چه ختم کړیشی او استعمالیږی په معنیٰ دَ لرے کیدلو دَ رحمت دَ الله تعالیٰ نه. او په معنیٰ دَ لعنت، او په معنیٰ دَ هلاکت سره هم استعمالیږی. منصوب دے په تقدیر دَ فعل سره او دا جمله خبریه ده یا دُعائیه ده یعنی اے مؤمنانو دا سے دُعا دَ دوی دَ پاره او لولئ.

۱۲ دا بشارت دے روستو دَ تخویف نه یَخۡشَوۡنَ خشیت خوف دے سرهٔ دَ تعظیم دَ مخشی نه ( هغه چه ویره ترینه کیدے شی ).
بِالۡغَيۡبِ دوی غائب دی یعنی رب ئے نه دے لیدلے یا دَ رب عذاب دَ دوی نه غائب دے یا په دا سے حال کښ دی چه دَ خلقو نه غائب یعنی جدا دی، دا ټولے معانی مراد کیدے شی. دا صفت پوره مقابل دے دَ صفاتو دَ مکذبینو چه مخکښ تیر شول. ځکه چه په هغوی کښ دَ خشیت په ځائے تکبر او تکذیب وؤ. دَ اثابت په ځائے ضد او عناد وؤ. په هغوی کښ جهل وؤ په قرینه دَ لَوۡ كُنَّا نَسۡمَعُ أَوۡ نَعۡقِلُ سره او په دوی کښ علم دے

أَوِ اجْهَرُوا بِهِ ۖ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿١٣﴾

یا یې په زوره وایئ - یقیناً هغه پوهه دے په هغه خبرو باندے چه په سینو کښې دي.

أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ ﴿١٤﴾

ایا نه دے پوهه هغه څوک چه پیدا ئې کړي دي او هغه راز ونه پیژني خبردار دے.

هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ ذَلُولًا فَامْشُوا

خاص هغه داسے ذات دے چه جوړه کړیده تاسو لره زمکه تابع ذ پاره ذ فائدو نو ګرځئ

ذ کتاب او سنت څکه چه خشیت مستلزم دے علم لره په قرینه ذ إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ سره.

س۱۳ س۱۴ دا دلیل دے په دعویٰ ذ سورت باندے په اثبات ذ علم ذ الله تعالیٰ په هر څیز باندے که پټ وي یا ښکاره په زړونو کښې وي او که بهر وي.

وَأَسِرُّوا قَوْلَكُمْ دا صیغه په معنیٰ ذ خبر سره ده په قرینه ذ حرفِ أَوْ سره چه دلالت کوي په اختیار او په برابرے باندے یعنی ستاسو پټې وینا ګانے او ښکاره په علم ذ الله تعالیٰ کښې یوشان دي لکه سورة رعد س۱۰ کښې هم تیر شوي دي او قَوْلَكُمْ عام دے که قول ذ خیر وي او که ذ شر وي او که مخاطبین مؤمنان وي او که کافران وي او په خطاب ذ کافرانو کښې معنیٰ ذ زجر ده او په خطاب ذ مؤمنانو کښې تسلي ده. مَنْ خَلَقَ من مفعول ذ يعلم دے څکه علم په معنیٰ ذ معرفت سره یو مفعول غواړي نو مراد ذ مَنْ خَلَقَ نه مخلوق دے یا مَنْ فاعل دے او مفعول ئې ذ تعمیم ذ پاره حذف کړے دے او مراد ذ مَنْ خَلَقَ نه خالق دے او په دواړو وجوهو کښې اشاره ده چه خلق مستلزم دے علم لره څکه چه بغیر ذ علم نه جوړول نشي کیدے. او په دے وجه قرآن کریم ذ دلیلونو ذ تصرف او قدرت سره دلیل ذ علم ذ الله تعالیٰ اکثر یو ځائے ذکر کوي.

فِيْ مَنَاكِبِهَا وَكُلُوْا مِنْ رِّزْقِهٖ ؕ وَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ ﴿۱۵﴾

په لارو دَ هغې کښې او خورئ دَ روزئ دَ الله تعالیٰ نه. او خاص هغه ته ورپاسیدل دی.

ءَاَمِنْتُمْ مَّنْ فِي السَّمَآءِ اَنْ يَّخْسِفَ بِكُمُ الْاَرْضَ

آیا په امن یئ (نه ویریږئ) دَ هغې ذات نه چه په اسمان کښې دے چه ځخ به کړی تاسو په زمکه کښې

فَاِذَا هِيَ تَمُوْرُ ﴿۱۶﴾ اَمْ اَمِنْتُمْ مَّنْ فِي السَّمَآءِ

نو بیا به هغه خوځیږی. آیا په امن یئ (نه ویریږئ) دَ هغه ذات نه چه په اسمان کښې دے

۱۵ په دے ایت کښې بل دلیل دے چه دَ اسمانی برکاتو نه روستو دَ زمکے برکات ذکر کوی. ذَلُوْلًا هغه څیز ته وئیلے کیږی چه دَ فائدے اخستلو دَ پاره اسان او تابع وی هیڅ انکار پکښې نه وی نو زمکه هم داسے ده دَ فصلونو او کرونده او چینو، نهرونو او کوهیانو کنستلو دَ پاره صالح ده نه ډیره سخته او نه ډیره نرمه او ټینګه کړے شویده په غرونو سره.

فَامْشُوْا فِيْ مَنَاكِبِهَا په دے کښې اشاره ده طلب دَ اسبابو او دَ کسب کولو او سفر کول دَ پاره دَ تجارت او دَ طلب دَ علم او دعوت نه. مَنَاكِبِ جمع دَ منکب ده طرق او اوګے دَ انسان ته وئیلے کیږی دلته مراد طرفونه او لارے او غرونه وغیره دی او په دے کښې اشاره ده چه زمکه یوه مرکوبه ده چه انسان دَ هغې په اوګو باندے سورلی کوی. وَكُلُوْا مِنْ رِّزْقِهٖ، شهاب وئیلے دی چه مراد دَ دے نه کوشش او اسباب لټول دی دَ پاره دَ حصول دَ رزق او رزق خوراک څښاک لباس ټولو ته شامل دے لیکن لوئے مقصد خوراک دے دَ دے وجے نه دَ خوراک تخصیص ئے اوکړو. وَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ دا تذکیر دَ قیامت دے دَ پاره دَ دے چه انسان په طلب دَ روزئ کښې دَ بعث بعد الموت نه غافل نشی.

۱۶ په دے ایت او په دے پسے دوه ایاتونو کښې تخویف دنیوی دے یعنی هر کله چه نعمتونه دَ زمکے او دَ اسمانونو ذکر کړل نو اوس ذکر کوی چه په سبب دَ شرک فی البرکات سره دا نعمتونه اسباب دَ عذاب ګرځی په اول ایت کښې عذاب دَ زمکے ذکر دے او په دویم کښې اسمانی عذاب او په دریم کښې دَ هغې نمونے ذکر دی په تیر شوی مکذبینو کښې. مَنْ فِي السَّمَآءِ

أَنْ يُّرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ط فَسَتَعْلَمُوْنَ كَيْفَ

چه را اوبه لیږی په تاسو باندے کانړی نو پوهه به شئ چه څه رنګه دی

نَذِيْرِ ﴿۱۷﴾ وَلَقَدْ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

یرول زما۔ او یقینًا دروغژن ګڼړلے دے هغه کسانو چه د دوی نه مخکښ وو (حق لره)

قرطبی وئیلے دی چه فِیْ په معنیٰ دَ فوق یا په معنیٰ دَ علیٰ سره دے او دا او نور نصوص ډیر دلالت کوی په علو او اوچت والی دَ الله تعالیٰ باندے دَ دے نه انکار کوونکے ملحد یا جاهل عنادی دے۔ نو تاویلونه کول په خَالِقِ مَنْ فِي السَّمَآءِ یا مُتصرف فِي السَّمَآءِ وغیره کښ، دے ته هیڅ حاجت نیشته او په دے کښ اشاره ده چه هغه ډیر اوچت ذات دے نو دَ خکته خلقو په عذاب باندے ضرور قدرت لری په داسے طریقه چه په زمکه کښ ئے ورننه باسی په شان دَ قارون۔

فَإِذَا هِيَ تَمُوْرُ مور وئیلے کیږی په اضطراب سره تلو اوراتلو ته او حرکت کول یعنی چه ننه باسل دَ دوی په زمکه کښ اوکړے شی او بیا دغه زمکه خوځیږی نو دوی به بنهٔ په خکته روان وی او مور په وصف دَ اسمان کښ هم راغلے دے په وخت دَ فنا کښ لکه سورة طور سف کښ۔

سكا دا هم تخویف دنیوی دے حَاصِبًا کانړی ویشتونکی ته وئیلے کیږی یعنی داسے سیلئ یا باران یا بل څیز چه کانړی به وُلی په شان دَ قوم دَ لوط علیه السّلام لکه په سورة قمر سکا کښ دی یا پشان دَ اصحاب فیل۔

كَيْفَ نَذِيْرِ په زیر دَ راءَ سره دے په اصل کښ نذیری وُو نو دَ وقف دَ وجے نه یا اوغورځیدله دغه شان نکیر هم دے۔ بیا نذیر مصدر دے په معنیٰ دَ انذار سره یا په خپله معنیٰ سره دے یا مضاف حذف دے یعنی عاقبت انذاری او په یاءَ حذف کولو کښ اشاره ده چه په دے خلقو باندے به داسے عذاب راشی چه دَ دوی عاقبت به خراب کړی۔

فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿١٨﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا اِلَى الطَّيْرِ

نو څه رنګه وو عذاب زما دوی لره ۔ آیا دوی نه ګوری مارغانو ته

فَوْقَهُمْ صٰٓفّٰتٍ وَّ يَقْبِضْنَ ؔ مَا يُمْسِكُهُنَّ

د پاسه د دوی چه خوروونکے دی وزرے خپلے او بندوی هغه ۔ نه دی حصار کړے دوی

اِلَّا الرَّحْمٰنُ ؕ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَیْءٍۭ بَصِيْرٌ ﴿١٩﴾ اَمَّنْ

مګر رحمٰن ذات ۔ یقینًا هغه هر څیز لره لیدونکے دے ۔۔ بلکه

س۱۸ د تاکید د تخویف دنیوی د پاره د تیر شوے قومونو عذابونو ته اشاره کوی او مشترک علت ذکر کوی چه هغه تکذیب دے ۔ نَكِيْرِ په انکار سره دے او انکار نه معنٰی نا اشنا عذاب ورکول دی ۔

س۱۹ دا یل دلیل عقلی دے وسطی دے په باره د مارغانو کښ یعنی برکاتِ وسطیه ذکر کوی او مناسبت د مخکښ سره دا دے" لکه چه زمکه ئے د انسانانو د پاره ذلول ګرځولے ده نو دا رنګ هوا (فضا) ئے مارغانو د پاره ګرځولے ده"۔ الطَّيْرِ جنس مراد دے ګنړو ته شامل دے د دے وجے نه روستو ضمیرونه د جمع ئے دے ته راجع کړے دی ۔ فَوْقَهُمْ اشاره ده چه هر کله مارغان په زمکه باندے یا په اونو باندے ناست وی نو دا روستو صفت پکښ نه معلومیږی دغه صفت په هغه وخت کښ دے چه په هوا کښ اوچت وی ۔ صٰٓفّٰتٍ، وَّيَقْبِضْنَ دا دوه حالتونو ذکر دی یعنی کله وزرے خورَوی او کله ئے بندوی ۔ او په دے کښ عطف د فعل دے په اسم باندے او دا جائز دی په فصیح کلام کښ کله چه په فعل کښ معنٰی د اسم مراد وی ۔ اول ئے اسم راوړو او دویم ئے فعل ذکر کړو د دے وجے نه چه مارغان په هوا کښ د وزرو خورول ډیر وخت کوی او بندول کله کله کوی ۔ مَا يُمْسِكُهُنَّ اِلَّا الرَّحْمٰنُ لفظ د رحمٰن دلالت کوی په عموم د برکاتو دنیویه باندے او پدے حصر کښ ښکاره دلیل دے چه هیڅوک نبی، ولی، ملک، جن وغیره د دے کار وَس او اختیار نه لری داسے آیت په سورة نحل ۷۹ کښ هم ذکر شویدے لیکن وجه د فرق دا ده چه په هغه سورت کښ صرف تذکیر د نعمت مقصد وو او پدے سورت کښ ذکر د تفصیلی حالاتو د مارغانو مقصد دے چه دا ټول برکات دی د طرف د الله تعالٰی نه ۔

أَمَّنْ هٰذَا الَّذِىْ هُوَ جُنْدٌ لَّكُمْ يَنْصُرُكُمْ مِّنْ

هغه خوک دی چه لښکر (فوځ) شی ستاسو مدد اوکړی ستاسو سیوا

دُوْنِ الرَّحْمٰنِ ۚ اِنِ الْكٰفِرُوْنَ اِلَّا فِىْ غُرُوْرٍ ﴿۲۰﴾

دَ رحمٰن ذات نه، نه دی کافران مګر په دهوکه کښی دی.

اَمَّنْ هٰذَا الَّذِىْ يَرْزُقُكُمْ اِنْ اَمْسَكَ

بلکه هغه خوک دی چه روزی درکړی تاسو ته که چرے بندہ کړی

سئ هرکله چه مشرکان دَ شرک فی البرکات عقیده دَ دوه امیدونو دَ وجے نه لری یو امید دَ نصرت او دَ امداد او بل امید دَ روزئے، نو ردکوی په دوی باندے چه دا دواړه دَ الله تعالیٰ نه سیوا دَ بل چا په اختیار او قدرت کښی نیشته نو دَ څه وجے نه دوی شرک فی البرکات کوی نو دا زجر دے په مشرک باندے۔ اَمَّنْ په اصل کښی اَمْ مَنْ دے استفهام دَ پاره دَ الزام حجت دے او مَنْ مبتدا دے او هٰذَا ئے خبر دے او دا اشاره ده هر هغه معبود من دون الله ته چه مشرکان ئے په برکات ورکولو کښی شریک ګنړی او هغه دَ هر مشرک په ذهن کښی پشان دَ حاضر محسوس وی دَ دے وجے نه په هٰذَا سره ئے اشاره اوکړه۔ اَلَّذِىْ هُوَ جُنْدٌ لَّكُمْ دا جمله بدل دے دَ هٰذَا نه۔ جُنْدٌ نه مراد حفاظت کوؤنکے مدد کوؤنکے (سپاهی، فوجی، خوکیدار) او دا په عقیده دَ مشرکانو کښی دا سے دی۔ يَنْصُرُكُمْ مِّنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ دا جمله صفت دَ جند دے او مقصد دَ جند نه مدد کول دی نو دا صفت ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو، او دا محل دَ پاره دَ استفهام دے او استفهام انکاری دے یعنی چه الله تعالیٰ په تاسو باندے خپل برکات بند کړی او په تاسو مصیبتونه راولی نو آیا دا معبودان ستاسو نه دغه مصیبت لرے کولے شی او څه برکت درکولے شی لکه دا سے سوال او جواب په سورة زمر ۳۸ او سورة مؤمنون ۸۸ کښی هم ذکر دے۔

اِنِ الْكٰفِرُوْنَ اِلَّا فِىْ غُرُوْرٍ، دهوکه دا ده چه دوی عقیده لری چه دا الهه دَ دوی دَ پاره مالک دَ نفع او ضرر دی او دَ هغوی بندګی سبب دَ قربت الهیه دے۔

رِزْقَهٗ ۚ بَلْ لَّجُّوْا فِیْ عُتُوٍّ وَّ نُفُوْرٍ ﴿۲۱﴾ اَفَمَنْ

الله تعالیٰ روزی خپله، بلکه ورننوتلي دي دوی په سرکشئ او نفرت کولو کښ- آیا هغه څوک

یَّمْشِیْ مُكِبًّا عَلٰی وَجْهِهٖۤ اَهْدٰۤی اَمَّنْ

چه روان دی پړمخي خه رسیدونکي دے او که هغه څوک

یَّمْشِیْ سَوِیًّا عَلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ﴿۲۲﴾ قُلْ

چه روان وی برابر په لار نیغه باندے . ته اوایه

۲۱ دا بل زجر دے په شرک باندے . اِنْ اَمْسَكَ رِزْقَهٗ جزا دَ دے محذوف ده او ماقبل یٔ دلالت کوونکے دے په جزا باندے . اَمساک دَ رزق دا دے چه دَ دے اسباب بند کړی ، باران نه وروی ، زمکه خوره ناکه کړی ، او یه اوچ کړی، اُور ختم کړی ، خوله بنده کړی . مرئے بنده کړی وغیره نو څوک پیر فقیر وغیره شته چه دَ روزئے دا اسباب په پیدا کړی (نیشته) ! نو روزی دَ انسان دَ ژوند لوئے مقصد دے دَ دوی معبودان دَ هغے نه عاجز دی نو هغوی دَ عبادت هیڅ حق نه لری . او دا دلیل په سورة عنکبوت ۱۷ او سورة نحل ۷۳ کښ ذکر دے . بَلْ لَّجُّوْا فِیْ عُتُوٍّ وَّ نُفُوْرٍ بل دَ ترقئ دَ زجر دَ پاره دے یعنی ثابته شوه چه دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل هیڅوک ناصر او رازق نیشته نو پکار وُو چه دوی دَ شرک نه توبه کړے وے لیکن دوی بنهٔ په ضد او عناد کښ کلک شویدی لَجُّوْا ، لجاج په زور سره په یو څیز کښ ننوتل سرهٔ دَ موانعو نه - او په ضد او عناد کښ او بد والے کول او په هغے باندے مضبوط کیدل . فِیْ عُتُوٍّ حرف دَ فِیْ دلالت کوی په اِنْغَماس (بنهٔ ورننوتلو) باندے . عُتُوٍّ سرکشی چه دَ حد نه وریته شی . نُفُوْرٍ دَ حق نه تختیدل او نفرت کول دَ وجے دَ تکبرخپل نه او سپک گنړل دَ حق او دَ اهل حق لره .

۲۲ دا هم زجر دے چه دا مشرکان بے دلیله روان دی او دا رنگ دفع دَ وهم دَ جاهلانو ده بعض دَ هغوی نه موحد او مشرک یو شان گنړی او بعض مشرکان هدایت والا او مؤمنان گمراهان گنړی نو پدے آیت کښ پدے وهم باندے رد دے .

یَمْشِیْ مُكِبًّا عَلٰی وَجْهِهٖۤ اه پدیکښ تمثیل دَ سالکینو او مسلکونو ذکر کوئ اول سالك

هُوَ الَّذِيْٓ اَنْشَاَكُمْ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ

هغه داسې ذات دے چه پیدا کړی یې تاسو او جوړ کړیدی تاسو لره غوږونه

وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ۭ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿۲۳﴾

او سترګے او زړونه . ډیر لږ شکر کوئے تاسو۔

یعنی په لارے تلونکے سر او مخ خکته کړے وی مخامخ نه ګوری او روان وی او لاره یې هم کږه وږه وی نو ډ کندے او ازغو وغیره نه نشی بچ کیدلے بلکه په یو کنده کښ به اوغورځیږی او خپل مقصد ته هرګز نشی رسیدلے۔
او دویم سالك چه سر او مخ یې اوچت کړے او ملا یې هم سیده دہ او لاره یې هم سیده مقصد ته رسیدونکے دہ نو دا شخص خپل مقصد ته په اسانه سره رسیدونکے دے۔ نو اول مثال ډ مشرک ګمراه مقلد دے په روند تقلید سره هغه هم سرخکته کړے وی یعنی دلیل ته نه ګوری او نه په دلیل والوسے روان وی او مسلك یې هم ډ حق نه خلاف دے او دویم مثال ډ موحد متبع ډ دلیل دے چه هغه په تحقیق او په دلیل باندے عمل کوی او مسلك یې هم په صحیح دلیلونو سره ثابت دے نو دا دواړه یو شان نشی کیدے او دا دویم یقیناً په هدایت او اول شخص یقیناً ګمراه دے۔ او دا حالت ډ دواړه ډلو به په قیامت کښ هم وی لکه چه حال ډ کافر په سورة اسراء ف۹۷ او سورة فرقان ف۳۴ کښ ذکر دے۔
ف۲۳ دا دلیل عقلی دے ډ دعوے ډ سورت په ذکر ډ برکات ا نفسیه (انسانیه) اَنْشَاَكُمْ پدے لفظ کښ اشاره دہ پیدائیش ډ انسان ته په اطوار مختلفه (نطفه، علقه، مضغه، عظام، نفخ ډ روح) ځکه چه معنیٰ ډ انشاء ترقی ورکول په دمه دمه سره دی۔ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ اه دا درے نعمتونه خاص یې ذکر کړل ځکه چه دا ډ علم او ډ پوهے ډ حاصلولو اسباب دی بیا علم ډ محسوسا تو مقدم دے په معقولا تو باندے ډ دے وجے سمع او بصیر یې ډ افئده نه مخکښ ذکر کړل قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ دا زجر دے په شرک کولو ځکه لویه ناشکری هغه استعمال ډ بدن او ډ دے حواسو دے په تعظیم ډ غیر الله کښ او داسے په سورة مؤمنون ف۷۸ کښ او سورة نحل ف۷۸ کښ تیر شویدی۔

قُلۡ هُوَ الَّذِیۡ ذَرَاَكُمۡ فِی الۡاَرۡضِ وَاِلَیۡهِ
نه اوایه هغه داسے ذات دے چه خوارهٔ کړی یئ تاسو په زمکه کښ او خاص هغه ته به

تُحۡشَرُوۡنَ ﴿۲۴﴾ وَیَقُوۡلُوۡنَ مَتٰی هٰذَا الۡوَعۡدُ
جمع کړے شئ تاسو . او دوی وائی کله به وی دا وعده

اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِیۡنَ ﴿۲۵﴾ قُلۡ اِنَّمَا الۡعِلۡمُ
که چرے تاسو رشتینی یئ . نه اوایه یقیناً علم دَ دے

عِنۡدَ اللّٰهِ ص وَاِنَّمَاۤ اَنَا نَذِیۡرٌ مُّبِیۡنٌ ﴿۲۶﴾
خاص دَ الله تعالیٰ سره دے او یقیناً زهٔ ویره درکوونکے یم ښکاره .

فَلَمَّا رَاَوۡهُ زُلۡفَةً سِیۡٓـَٔتۡ وُجُوۡهُ الَّذِیۡنَ
نو هر کله چه دوی اوولیدو هغه نزدے تور به شی مخونه دَ هغه کسانو

۲۴ دا بل دلیل انفسی دے دَ یو شخص دَ پرنسل خوړول دا هم برکات دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دی په مخکښ دلیل کښ یئ ایجاد دَ انسان ذکر کړو او په دے کښ دَ ابقاء ذکر کوی سرهٔ دَ ذکر دَ فنا او دَ حشر نه لکه چه سورة مؤمنون ۲۸ کښ دی .

۲۵ دا زجر دے په انکار دَ حشر باندے متعلق دے دَ اِلَیۡهِ تُحۡشَرُوۡنَ سره او داسے په سورة یونس ۴۸ او سورة اسراء ۵۱ نمل ۷۱ سبا ۲۹ یس ۴۸ کښ هم ذکر دی . او په دے ټولو کښ استفهام په طور دَ انکار او دَ استهزاء سره دے او هر ځائے دَ هغے مناسب جواب ذکر کړے شوے دے .
صٰدِقِیۡنَ رشتنی دی په دے خبر کښ چه وَاِلَیۡهِ تُحۡشَرُوۡنَ .

۲۶ دا جواب دَ هغه سوال دے په تفویض دَ علم دَ الله تعالیٰ سره لکه چه په سورة اعراف ۱۸۷ کښ تیر شوے دے . نَذِیۡرٌ مُّبِیۡنٌ یعنی زما کار یقینی خبر ورکول او دَ هغے اثبات کول دی په حجت سره، علم دَ وخت دَ انذار سره لازم نه دے .

كَفَرُوْا وَقِيْلَ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تَدَّعُوْنَ ﴿۲۷﴾

چه کافران دی او اوبه وئیلے شی دا هغه څیز دے چه تاسو دا غوښتلو .

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَهْلَكَنِيَ اللّٰهُ وَمَنْ مَّعِيَ

ته اوایه فکر اوکړئے که چرے هلاک کړی ماله الله تعالیٰ او هغه څوک چه ما سره دی (ملګری)

اَوْ رَحِمَنَا فَمَنْ يُّجِيْرُ الْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ

یا رحم اوکړی په مونږ بانده نو څوک به پناه ورکړی کافرانو ته دَ عذاب

اَلِيْمٍ ﴿۲۸﴾ قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ اٰمَنَّا بِهٖ وَعَلَيْهِ

دردناک نه . ته اوایه هغه رحمٰن ذات دے چه ایمان راوړے دے مونږ په هغه بانده او خاص په هغه

۲۷ دا هم جواب دے په طريقه دَ تخويف سره فَلَمَّا رَاَوْهُ مراد دَ دے نه زمانه مستقبل ده او صيغه دَ ماضي پکښے دَ يقين دَ پاره راوړے ده . ۀ ضمير راجع دے عذاب ته چه حشر په هغے بانده دلالت کوی زُلْفَةً مصدر په معنیٰ دَ مفعول دے يعنی قريب . سِيْئَتْ دا دَ ساء نه په معنیٰ دَ غم سره دے په معنیٰ دَ بئس سره نه دے يا په معنیٰ دَ اسودت (تور به شی) سره دے تَدَّعُوْنَ باب افتعال دے دَ دُعَا نه په معنیٰ دَ ډير طلب کولو يا تمنا کانے کول يا په تلوارے سره غوښتل اِدِّعَاء په طلب او دعوی کاذبه کښں استعماليږی يعنی ته متی اوغواړی .

۲۸ ـ ۲۹ پدے کښں بل دليل عقلی دے اعترافی سکوتی سره دَ ذکر دَ طريقے دَ تعليم نه په جواب دَ قول دَ دے منکرينو کښں چه دوی اُوئيل چه دا نبی او مؤمنان به مړه شی مونږ به ترينه خلاص شو لکه په سورة طور ۳۰ کښں دی او کله به يے وئيل چه دا نبی او دَ دهٔ ملګری زمونږ دَ معبودانو مخالفت کوی په دوی بانده به عذاب راځی جواب اوشو حاصل دا دے چه زمونږ غم مه کوئے خپل غم اوکړئے چه په تاسو بانده عذاب راشی تاسو به څوک بچ کوی ، مونږ خو رحمٰن ذات صرف يو الله تعالیٰ منو هغه به مونږ بچ کوی .

اِنْ اَهْلَكَنِيَ اللّٰهُ الخ اهلاک په معنیٰ دَ مرګ عاجلا او رحم په معنیٰ دَ مهلت او دَ روستو والی دَ مرګ دے يا اهلاک په معنیٰ دَ عذاب دے (يا تے په بله صفحه)

تَوَكَّلْنَا ۚ فَسَتَعْلَمُوْنَ مَنْ هُوَ فِيْ ضَلٰلٍ

ځان سپارلے دے مونږ نو زر دہ چه پوهه په شئ تاسو چه څوک دے هغه چه په گمراهئ

مُّبِيْنٍ ﴿٢٩﴾ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَصْبَحَ مَآؤُكُمْ

ښکاره کښې دے. ته اوایه فکر اوکړئ که چرے صباله اوبه ستاسو

غَوْرًا فَمَنْ يَّاْتِيْكُمْ بِمَآءٍ مَّعِيْنٍ ﴿٣٠﴾

اوچے شی نو څوک به راوړی تاسو له اوبه چینه دارے.

او رحم په معنیٰ دَ نصرت او دَ غلبے دَ اسلام دے او دَ دے شرط جزا پټه ده چه روستو کلام په هغے باندے دلالت کوی (یعنی زمونږ په الله تعالیٰ باندے ایمان دے او دَ هغه په مشیت باندے عقیده لرو).

فَمَنْ يُّجِيْرُ الْكٰفِرِيْنَ دَ دے شرط په اصل کښې پټ دے یعنی هر کله چه الله تعالیٰ په تاسو باندے ستاسو دَ ښکاره کفر دَ وجے نه عذاب دَ دُنیا یا دَ اخرت راولی نو تاسو په اے کافرانو څوک بچ کوی.

قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ دا دلیل دَ جزا مقدر دے چه مخکښې مونږ ذکر کړه حاصل دا دے مونږ خو دَ الله تعالیٰ په رحمانیت (چه صرف هغه برکات ورکوونکے دے شریک یې نیشته) باندے ایمان لرو او که چرے تکلیف راځی نو په هغه باندے توکل کوؤ نو زمونږ امید دے چه الله تعالیٰ مونږ له عذاب نه راکوی او مونږ به دَ تکلیفونو نه بچ کوی.

اٰمَنَّا بِهٖ مراد دے نه توحید دَ رحمانیت دَ الله تعالیٰ دے په عدم دَ شريك في البركات سره.

وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا په دے کښې رد دَ شرك في التصرف او في العلم ته اشاره ده. ځکه چه دَ توکل شرعی مطلب دا دے چه هر نفع او ضرر دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه گنړی او هغه خاوند دَ علم او دَ حکمت گنړی بغیر دَ شرکت نه

فَسَتَعْلَمُوْنَ اه دا علم حاصلیږی په وخت دَ عذاب راتللو کښې.

٣٠ دا هم دلیل اعترافی سکوتی دے او ذکر کوی تخویف په ذکر دَ یو مثال دَ عذاب سره چه هغه اوبه اوچیدل دی.

غَوْرًا چه په زمکه کښې داسے ډوبے او اوچ شی چه په زمکه کښې تللو

سره بیا نه را اوځی او مراد دے نه او به دَ چینو او دَ کویانو او دَ نهرونو دی. غورا مصدر په معنٰی دَ فاعل سره دے.
مَعِیْنٍ صیغه دَ مفعول ده دَ عَین نه یعنی ښکاره چه سترګے یۓ وینی یا صیغه دَ فعیل ده دَ معن نه یعنی ډیرے او په جاری چینه دا رے او خوګو او بو ته هم وئیلے کیږی. او دَ دے سوال جوابً مشرکانو دَ طرف نه هم دا دے چه الله تعالٰی دا او به راویستلے شی او اوبو کښ ډیر برکاتِ الهیه دی نو لازمًا ترینه معلومه شوه چه برکات ورکوونکے یو الله تعالٰی دے.

الحمد لله چه ختم شو تفسیر دَ سورة ملک.

| سُورَةُ الْقَلَمِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۵۲ رُكُوْعَاتُهَا ۲ |
|---|---|---|

نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُوْنَ ﴿۱﴾ مَآ اَنْتَ

الله پوهه دے ډے په مراد، قسم دے په قلم او په هغه څه باندے چه ليکى ئے دوى نه ئے ته

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة القلم دَ دے بل نوم سورة نون دے۔

**ربط دَدے سورت** دَ سورة ملك سره په ډيرو وجوهو دے، اوله وجه دا ده چه په هغه سورت کښ اثبات دَ توحيد وو نو په دے سورت کښ اثبات دَ رسالت دے۔ دويمه وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ اثبات دَ توحيد وو په دليلونو سره نو په دے سورت کښ تشجيع او ترغيب دے په دعوت ورکولو باندے توحيد طرف ته۔ دريمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ تخويف دنيوى اجمالى بيان کړو نو اوس په دے سورت کښ واقعه دَ باغ والا په طور دَ مثال سره ذکر کوى۔ څلورمه وجه دا چه په هغه سورت کښ دليلونه په توحيد باندے ذکر شول نو په دے سورت کښ ذکر کوى چه دَ منکرينو دَ پاره هيڅ دليل نيشته۔

**دعوىٰ دَ سورت.** تيزى ورکول په دعوت باندے او ويره ورکول مداهنت نه او دعوى دَ توحيد ذکر ده په س۲۹ کښ او رد دَ شرك فى العلم په سـ کښ او دوه اسماء حسنىٰ ذکر شوے دى۔

**خلاصه دَ سورت.** په دے سورت کښ دوه بابونه دى اول باب تر ۳۳ پورے دے په دے کښ ذکر دَ شهادت دے په صداقت دَ رسول باندے او دَ صداقت او تسلى ورکولو دَ پاره پنځه جملے (تعبيرات) ذکر کړے دى تر ۷ پورے بيا ئے تحذير ورکړے دے دَ مداهنت نه او دَ مخالفت کوونکى لس صفات فيے ئے ذکر کړيدى تر ۱۵ پورے بيا واقعه دَ باغ والو ذکر کړيده په طريقه دَ تخويف دنيوى سره په نزول دَ عذاب سره په سبب دَ شرک فى البرکات او دَ هغوى توبه ئے ذکر کړيده تر ۳۳ پورے۔

بِنِعۡمَةِ رَبِّكَ بِمَجۡنُونٍ ۝ وَإِنَّ لَكَ لَأَجۡرًا

په نعمت دَ رب ستا لیونے او یقیناً تا لره خامخا ثواب دے

دویم باب تر اخره پورے دے په هغې کښې بشارت مختصر ذکر دے په ۳۳ کښې بیا زجر دے منکرینو ته چه دَ دوی سره هیڅ دلیل نیشته. (دلیل عقلی نقلی دَ کتاب ته وعده دَ الله تعالیٰ په جواز دَ شرک باندے. تقلید دَ مشرانو او دَ هغوی ته دلیل داوړل) تر ۴۷ پورے بیا تخویف اخروی دے په ۴۲-۴۳ کښې بیا تسلی ده رسول صلی الله علیه وسلم ته او تشجیع دَ هغه په تخویف منکرینو چه دَ هغوی هیڅ عذر نیشته په انکار کولو کښې او تلقین دَ صبر او تضرع کول الله تعالیٰ ته دَ پاره دَ حصول دَ اجتباء په ذکر دَ یونس علیه السّلام سره تر ۵۰ پورے او په اخر کښې زجر منکرینو ته سره دَ صداقت دَ رسول صلی الله علیه وسلم نه. تفسیر سا نٓ دَ مقطعاتو نه دے مقصد په دے کښې تحدی ده دَ پاره دَ ښکاره کولو دَ اعجاز دَ قرآن کریم. یا دا نوم دَ دے سورت دے یا مراد دَ دے نه دوات دے دا سے ډیر اقوال مفسرینو ذکر کړیدی خو اکثر دَ هغې اسرائیلیات دی.

وَالۡقَلَمِ دا قسم دے او تحقیق دَ قسم دَ سورة یٰس په اول کښې ذکر شویدے او په پاره دَ قلم کښې هم دَ مفسرینو ډیر اقوال دی غوره دا ده چه جنس قلم مراد دے چه دَ هغې دَ لاندے تفسیر عزیزی کښې شل قسمونه لیکلے دی او دا اقسام په سبب دَ اقسامو دَ لیکونکو دی او په اقسامو دَ لیکونکو باندے هم قسم ذکر دے په وَمَا يَسۡطُرُونَ کښې هغه اقسام دا دی ۱ قلم اعلام ۲ قلم تقدیر ۳ قلم اهل النجوم ۴ قلم اهل التاریخ ۵ قلم الملاء الاعلیٰ ۶ قلم کراماً کاتبین ۷ قلم الفقهاء ۸ قلم الاطباء ۹ قلم القضاة ۱۰ قلم اهل الفتوی ۱۱ قلم اهل الفرائض ۱۲ قلم اهل الحساب ۱۳ قلم الحکماء ۱۴ قلم اهل الفصاحة والبلاغة ۱۵ قلم الشعراء ۱۶ قلم اهل العربية ۱۷ قلم الامراء ۱۸ قلم اهل التجارة ۱۹ قلم الكاتبين للحقوق ۲۰ قلم المعلمين. حاصل دَ قسم په قلم باندے دا دے چه دا هر قسم علوی او سفلی کاتبان اهل حق یا اهل باطل چه په انصاف او عدل سره دَ نبی صلی الله علیه وسلم په باره کښې لیکل کوی نو ضرور به او لیکی چه دا نبی صادق او پوره عقل والا دے یعنی دا ټول دلیلونه دَ صدق دَ هغه دی.

سا دا اول جواب قسم دے او په دیکښې رد دے دَ قول (یا تے په بل مخ)

غَيْرَ مَمْنُوْنٍ ﴿۳﴾ وَاِنَّكَ لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ ﴿۴﴾

بے اِنتها۔ او یقینا ته ضرور په خوئ لوئے بانده یې۔

دَ کافرانو چه دِ ے مجنون دے او په دهٔ بانده جنات دی او تسلی ده رسول الله صلّی الله علیه وسلّم ته۔ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ دا متعلق دے په مجنون پورے او مراد نعمت نه وحی او قران دے یعنی په بیا نولو دَ قران سره پدے رسول بانده جنون نه دے راغلے او قران دَ جنون دَ پاره سبب نشی کیدلے۔ یا دا جمله معترضه ده یعنی ته لیونے نه یې دا شکر دے دَ نعمتونو دَ الله تعالیٰ۔ یا مراد دَ نعمت نه عصمت دے او باء سببیه دے۔

سڑ دا دویمه تسلی ده حاصل دا چه دَ قران په وجه جنون نه راځی لیکن مصیبتونه په دعوت الی القران کښ ډیر دی خو تسلی سا ته چه دا ستا دَ پاره سبب دَ بے انتها اجر دے۔ مَمْنُوْنٍ، من قطع او انتها ته وئیلے شی او حساب او زیادنے ته هم وئیلے کیږی۔ (سوال) دا سے په سورۃ انشقاق سڑ ۲۵ او سورۃ تین سڑ ۶ کښ دَ امت دَ پاره هم راغلے نو حصر ئې په نبی کښ نیشته نو څه وجه ده چه لك یې دلته مقدم ذکر کړو؟ (جواب) دا دے دلته مراد اجر دَ دعوت او تبلیغ دے او هغهٔ دواړه سورتونو کښ مراد دَ اجر نه جنت دے یعنی نبی صلّی الله علیه وسلّم پدے امت کښ اول داعی الی الحق دے نو تر قیامته پورے چه څومره خلق په قران بانده ایمان راوړی نو دَ هغې په ثواب کښ به دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم ضرور حصّه وی په دلیل دَ حدیث صحیح چه چا دعوت اوکړو هدایت ته (او یو سنت ته) نو دَ دهٔ دَ پاره اجر دَ هغې دے او حِصّه دَ اجر دَ هغه چا ته چه دَ دے هدایت تابعداری اوکړه۔

سڑ دا دریمه تسلی ده او دا رد په هغه کافرانو دے چه وئیل ئې چه دا نبی مفسد او شری دے او کنځل کوی الهو ته او مشرانو ته؟ حاصل جواب دا دے چه دَ دهٔ ډیر لوئے اخلاق حسنه دی دا نسبتونه کول دهٔ ته غلط دی۔ خُلُقٍ عَظِيْمٍ خوئ او ادب، طریقه دَ ژوند او دین ته هم خلق وئیلے کیږی او حدیث صحیح دَ مسلم کښ دی چه عائشه رضی الله عنها فرما ئیلے دی چه خُلُقِ دَ رسول الله صلّی الله علیه وسلّم قران وو۔ ابن کثیر وئیلے دی چه مطلب ئې دا دے چه په قران کریم کښ کوم اوامر او نواهی ذکر کړے شوی دی

فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُوْنَ ۝۵ بِاَيِّكُمُ الْمَفْتُوْنُ ۝۶

نو زر دے چه ته به او وینے او دوی به او وینی . چه په کوم یو ستاسو باندے لیونتوب دے .

اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ

یقینًا ستا رب هغه خه پوهه دے په هغه چا باندے چه اوړی د لارے د الله تعالیٰ نه

وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ۝۷ فَلَا تُطِعِ

او هغه خه پوهه دے په هدایت والو باندے . نو مه منه خبره

نو په هغے باندے عمل کول د هغه خُلق او عادت وو . او حیاء ، کرم ، شجاعت ، صفح ، حلم او هر خائسته خوئ او دا رنګ هغه صفتونه د مؤمنانو چه قرآن کریم کښ سورة احزاب ۳۵ سورة مؤمنون من ۱ الے ۹ او من ۵۷ الے ۶۱ پورے او سورة معارج د ۲۲ نه تر ۳۴ پورے ذکر دی هغه ټول په رسول الله صلی الله علیه وسلم کښ په اعلیٰ طریقے سره موجود وو . او دا رنګ محدثینو په شمائل د هغه کښ ډیر احادیث صحیحه نقل کړیدی ،

۵ ۶ دا پله تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته . فَسَتُبْصِرُ سین د پاره د قربت دے یعنی په دُنیا کښ یا په اخرت کښ ځکه چه هغه قریب دے لکه سورة قمر ۲۶ کښ او دائے په فا سره ذکر کړو ځکه چه تیر شوی تسلے په صفاتو د نبی سره وے او دا خو د مستقبل په باره کښ تفریع ده په دا غه صفتونو باندے . بِاَيِّكُمُ الْمَفْتُوْنُ په دیکښ ډیر وجوه دی اول وجه دا چه المفتون په معنیٰ د مجنون دے نو با زیاته ده د پاره د تاکید . دویمه وجه دا چه دا مصدر میمی په معنیٰ د فتنة دے با په خپل ځائے ده او فتنه نه مراد جنون یا ګمراهي ده . دریمه دا چه با په معنیٰ د فی ده او معنیٰ دا چه په کم یو ډله کښ مجنون دے ، په کافرانو کښ او که په مؤمنانو کښ . او مفتون معذب ته هم وئیلے کیږی .

څلورمه وجه دا چه ویبصرون باندے یو کلام ختم شو او د هغے مفعول محذوف دے یعنی فستبصر عاقبة عَمَلِكَ وَيُبْصِرُوْنَ عَاقِبَةَ اَعْمَالِهِمْ . او بِاَيِّكُمُ الْمَفْتُوْنُ نه مخکښ فعل پټ دے یعنی سَتَعْلَمُوْنَ .

۶ دا هم تسلی ده او دا علت دے ، متعلق دے د فَسَتُبْصِرُ یا د بِاَيِّكُمُ الْمَفْتُوْنُ سره د دے وجے نه حرف عطف ئے نه دے ذکر کړے (پاتے په بل مخ)

الْمُكَذِّبِيْنَ ⑧ وَدُّوْا لَوْ تُدْهِنُ

دَ دروغژن ګڼونکو (حق لره) . دوی غواړی که ته نرم شې

فَيُدْهِنُوْنَ ⑨ وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ

نو دوی به هم نرم شي . او مه منه خبره دَ هر ډیر قسمونه کوونکی

ضَلَّ په فعل ماضی سره او الْمُهْتَدِيْنَ ئې په اسم فاعل سره ذکر کړو اشاره ده چه اصل فطرت په انسان کښ هدایت دے او ضلال خو پد یکښ عارضی پیدا کیږی . او اخبار په علم دَ الله تعالیٰ سره اشاره ده جزا ورکولو ته .
ش ۸ س ۹ دا تفریع ده په ماقبل په تشجیع ورکولو سره په دعوت باندے او تحذیر دے دَ مداهنت نه . فَلَا تُطِعِ محل دَ اطاعت ئې حذف کړے دے لیکن وصف دَ مکذبینو دلالت کوی دَ هغې په تعیین باندے یعنی کوم کارونه او خبرے اوصفتونه چه دَ قبیلې دَ تکذیب او دَ انکار دی نو په هغې کښ دَ دوی اطاعت او نکړې او په نورا یاتونو کښ دَ المکذبین نور اوصاف ئې ذکر کړے دی لکه سورۃ کهف س ۲۸ او سورۃ احزاب س ۴۸ سورۃ دهر س ۲۴ .
وَدُّوْا لَوْ تُدْهِنُ دا علت دے دَ لا تطع دَپاره دَ دے وجے حرف عطف ئې نه دے ذکر کړے وَدّاد په مینه او تمنیٰ کولو کښ وسعت کولو ته وئیلے کیږی لَوْ مصدریه ده سرۂ دَ معنیٰ دَ تمنّا نه . تُدْهِنُ دَ دهن نه ماخوذ دے . مبرد وئیلے دی چه ادهان او مداهنت خیانت کول او ظاهرول دَ هغه خبرے دی چه دَ باطن نه مخالف وی . او بعضو علماؤ وئیلے دی چه نرم والے په کلام او په طریقه کښ که دَ خیر وی او که دَ شر وی ، خو استعمال ئې اکثر په شر کښ کیږی . فَيُدْهِنُوْنَ دَ دے مبتدا محذوف ده فَهُمْ يُدْهِنُوْنَ دَ دے وجے نه نَ حذف نه کړے شو دَ وجے دَ جواب دَ تمنّا په حذف دَ اَنْ سره . او قرطبی دَ دے جملے په تفسیر کښ دولس اقوال لیکلے دی لیکن دَ هغې حاصل یو دے هغه دا چه "په مسئله دَ توحید کښ نرمی داسے او کړے شی چه په شرک باندے رد نه کوی او کتمان دَ حق کوی نو کافران او مشرکان په هم مخالفت نه کوی مقابلے به نه کوی کنځل بد رد به ورته نه وائی او دیته پدے زمانه کښ ډیر خلق اتحاد یا حکمت وائی دا غلطه خبره ده "

مَّهِيْنٍ ﴿۱۰﴾ هَمَّازٍ مَّشَّآءٍۭ بِنَمِيْمٍ ﴿۱۱﴾

سپک | طعن کوؤنکے | ډیر گرځیدونکے | په چغلے سره

مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ اَثِيْمٍ ﴿۱۲﴾ عُتُلٍّ

ډیر منع کوؤنکے دَ خیر | دَ حد نه تیریدونکے | ډیر ګنهګار | بد | زَبے

بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيْمٍ ﴿۱۳﴾ اَنْ كَانَ ذَا مَالٍ

روستو | سره دَدے نه بدنام هم دے | دَ دے وجے نه چه دے خاوند دَ مال

ت۱۰ ت۱۱ ت۱۲ ت۱۳ په دیکښې هم تحذیر دے دَ اطاعت دَ مخالفینو نه لیکن په ت۸ کښې ئے دَ اطاعت دَ مکذب نه منع کوله په مداهنت کولو کښې او په دیکښې منع ده دَ اطاعت کولو دَ مکذب نه په دے صفاتو قبیحو کښې چه روستو ئے ذکر کړے دی او هغه لس قبائح دی اول حَلَّافٍ بے ضرورته او په دروغه باندے قسم کوؤنکے. دویم مَهِيْنٍ دا وزن دَ فعیل دے دَ اهانت نه په معنیٰ دَ فاعل یا فعیل سره او په معنیٰ دَ مُهان دے یعنې سپک ذلیل کاروته کوؤنکے او بے عزته په نیز دَ الله تعالیٰ. او حَلَّافٍ مَّهِيْنٍ یو ځائے ذکر کولو کښې اشاره ده چه په دے دواړو صفتونو کښې دَ یو بل سره تلازم دے. دریم هَمَّازٍ عیب ویونکے دَ مؤحدینو مخامخ او پَسې شا. همز او لمز چه یو ځائے ذکر کړے شی لکه سورة همزه کښې نو دَ دوی په مینځ کښې فرق کیدیشی او چه جدا جدا ذکر شی نو یو شان معنیٰ لری. نو دلته کښې عام دے غیبت کوؤنکے بدنامے لګوؤنکے طعنونه کوؤنکے دے ټولو ته شامل دے. مَشَّآءٍۭ بِنَمِيْمٍ دا څلورم صفت دے یعنې داسے شخص چه دَیو خبره بل ته رسوی دَ پاره دَ دے چه دَ دواړو په مینځ کښې فساد او ورانے راولی. او دهٔ ته نمّامٌ او قَتَّاتٌ هم وئیلے کیږی او په لفظ دَ مشّاءٍ بنمیم کښې زیاته مبالغه ده یعنې ګرځیدل ئے همیشه دَ فساد دَ پاره دی او صحیح حدیث دَ بخاری او مسلم کښې وارد دی چه نمّام جنت ته نشی داخلیدلے او یل حدیث دَ بخاری او مسلم کښې راغلے دی چه په یو شخص باندے عذابِ قبر دَ دے وجے نه وؤ چه هغه به چغلخوری کوله او نبی صلی الله علیه وسلّم ته الله تعالیٰ دَ هغه حال ښکاره کړو. او هرکله چه غیبت کول او چغلخوری کول دواړه دَ اِفساد دَ ذات البین (رپاتے په بل مخ)

وَّبَنِيْنَ ﴿۱۴﴾ اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا قَالَ

او ځامنو والا دے۔ کله چه اولوستلے شی په دهٔ باندے اٰیتونه زمونږ وېلے وائی

دَپاره دی دَ دے وجے نه دواړه صفتونه ئې په یو ځائے ذکر کړل.
پنځم صفت مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ خیر عام دے دَ دُنیا او دَ اٰخرت خیر ته او دا رنګ مفعول دَ مناع ئې حذف کړے دے دَ تعمیم دَپاره یعنی هر خیر دنیوی او دینی او اخروی دَ هرچا نه منع کوی نو دَ ایمان او قران نه ځان او اولاد او نور خلق منع کول پدے کښ داخل دی. شپږم صفت مُعْتَدٍ دَ شرع دَ حدود نه تجاوز کوی په عقیده او اعمالو کښ او ظلم کوونکے وی په خلقو باندے.
اُوم صفت اَثِيْمٍ یعنی دَ هر سبب دَ اسبابو دَ ګناهونو ارتکاب کوی او په ګناهونو دَ فسق و فجور کښ منهمک وی. منع دَ خیر ګمراه کول دَ نور خلقو دی او اعتداء بدعات کول او اٰثِم فسق و فجور کول دی او دَ دے صفاتو دَ یو بل سره مناسبت دے دَ دے وجے نه ئې یو ځائے ذکر کړل. اتم صفت عُتُلٍّ سخت جګړه مار، بد ژبانه، ډیر خوراک ختناک کوونکے، چاټ خېټے دا ټولے معانے ابن کثیر قرطبی ذکر کړے دی. بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيْمٍ دا نهم صفت دے بَعْدَ په معنیٰ دَ مع سره دے ذٰلِكَ اشاره ده ماقبل ټولو صفتونو ته په تاویل دَ مذکور سره یا اشاره ده عُتُلٍّ ته او په دے لفظ کښ اشاره ده چه دا نهم صفت دَ ټولو قباحتونو نه زیات قبیح صفت دے. زَنِيْمٍ دَ زنمة نه ماخوذ دے دَ کوزے بېزے په غوږ پورے چه څه غوښه زوړند وی نو هغه په بېزو کښ مشهوره وی او وران کارے وی او دَ هغه غوښے څه فائده هم نیشته نو دا رنګ زنیم مشهور دے په شر سره، رذیل کار وونه کوونکے، او پے نسبه چه پلار ئې معلوم نه وی، او هغه څوک چه دَ مفعولیت په مرض کښ مبتلا وی دا ټولے معنے قرطبی او شربینی وغیره مفسرینو لیکلے دی. دا دواړه صفتونه (عتل، زنیم) دَ ټولو خلقو په نیز په قباحت سره مشهور دی یعنی اتفاقی قبیح دی دَ دے وجے نه دواړه ئې یو ځائے ذکر کړل.
سلا سطا اَنْ كَانَ ذَا مَالٍ وَّبَنِيْنَ پدے کښ ډیر وجوه دی اوله وجه دا ده چه په تقدیر دَ لام سره علت مقدمه دے دَپاره دَ لسم صفت چه اِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ الخ دے یعنی دَ قران مخالفت کوی دَ وجے دَ سرمایه دارئ

أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿۱۵﴾ سَنَسِمُهُ عَلَى الْخُرْطُومِ ﴿۱۶﴾

دا خو دروغ قصّې دي دَ زړو خلقو ۔ زر دَه داغ به اولګوؤ دَ دَهٔ په خړپتم باندې موتړه ۔

او دَ تکبر نه ۔ دویمه وجه دا متعلق دے په لا تطع پورے یعنی جاهل خلق دَ داسے موصوف او دَ داسے صفاتِ قبیحه سړی طاعت او تابعداری دَ هغه دَ مالدارئ دَ وجے نه کوی لیکن تهٔ دَ هغه دَ طاعت نه ځان بچ کړه ۔
دریمه وجه دا سبب دے دَ ټولو تیر شوے صفتونو چه دا ناکاره صفات دَ وجے دَ مالدارئ او غرور نه دی ۔ قَالَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ دالسمرؐ اساطیر جمع دَ اسطورت ده هغه قصّې چه لیکلے شوی وی او اکثر دروغ وی نو مشرکانو قران ته دا نسبت کوؤ دَ دے وجے نه چه په قران کښ هم قصّې وی او هغه خو رشتینی دی لیکن دوی ورته دروغژنے وائی یا په دے وجه چه قصّې چرق دَ شغل او دَ وخت تیرولو دَ پاره وی نو دوی هم قران هسے دَ ګپ شپ او مشغلے کتاب ګنړلو یا په دے وجه چه دوی وئیل چه قران خو صرف دَ تیر شوے خلقو قصّې او حالات ذکر کوی او دَ هغوی عذابونه او ناکاره اوصاف ذکر کوی زمونږ په باره کښ پدے کښ هیڅ نیشته لکه اوس چه بعض جاهلان قران والو باندے اعتراض کوی چه دا قران خو دَ زړو مشرکانو او یهودیان او نصاریٰ او بُت پرستو په باره کښ دے نو تاسو ئے په مونږ باندے ولے چسپان کوئے ۔
سؔا دا زجر او تخویف دے او پدیکښ ډیر اقوال دی دَ مفسرینو اول دا چه دا په حقیقت باندے حمل دے او په دنیا کښ به وی ، او هم داسے اوشوه چه پوزه دَ هغه (ولید بن مغیره) زخمی شوه په ورځ دَ بدر کښ او عار او شرم ورباندے همیشه دَ پاره پاتے شو ۔ دویم دا حقیقت دے او په اخرت کښ به نخه وی لکه چه مخونه به ئے تور وی او سترګے به ئے شنې یا خړے وی نو دارنګ په پوزه به ئے داغ وی او دا علامات دی دَ مجرمانو په ورځ دَ قیامت کښ ۔ دریم قول دا دے ابن جریر وئیلے دی چه دا مجاز دے او مراد دا دے چه دَ دغه سړی حال به خلقو ته په دُنیا او اخرت کښ ښکاره شی او هغه دَ ذلت حال دے لکه چه داغ په پوزه باندے پوره ښکاره کیږی ۔ څلورم قول قرطبی نقل کړیدے (پاتے په بلمخ)

إِنَّا بَلَوْنٰهُمْ كَمَا بَلَوْنَآ أَصْحٰبَ الْجَنَّةِ

يقيناً موږ ازميښت کړيدې په دوی پاندې لکه چه ازميښت کړې وو موږ په باغ والو باندې

إِذْ أَقْسَمُوا لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِينَ ﴿۱۷﴾

کله چه هغوی قسم اوکړه چه ضرور پريکوی (لوګوی) به هغه دَ صبا په وخت کښې ۔

چه په دغه سړی باندې په شرم اوعار او ګڼلی لکه چه دَ چا په پوزه بنګاره داغ وی او پوخ وی ، او ابن جرير وئيلې دی که دا اقوال په جمع مراد شی نو هم مانع نيشته ۔

سك ۱۸ دا مثال دَ تخويف دنيوی دَ پاره دَ منکرينو او شرک کوونکو دے په برکات ورکولو کښې حاصل دا چه لکه دغه کسانو ته الله تعالىٰ يو نعمت ورکړے وو (باغ) ليکن هغوی ناشکری اوکړه نو هغه نعمت ترينه واخستلے شو او عذاب ورباندے راغے نو دا رنګ دے خلقو ته الله تعالىٰ دَ قرآن او دَ بعثت رسول لوئے نعمت ورکړے دے او دوی ئے ناشکری کوی نو الله تعالىٰ به په دوی باندے عذاب په دنيا کښې راولی چه څه رنګ دَ هغه مشيت او اراده وی ۔

إِنَّا بَلَوْنٰهُمْ مراد دَ بلاء نه امتحان او ازميښت دے لکه چه تحقيق دَ دے په سورة ملك په تفسير دَ لِيَبْلُوَكُمْ کښې ذکر شو او فعل ماضی په خپله معنیٰ دے نو مراد دَ ابتلاء نه نعمت دَ قرآن او بعثت رسول دے او دَ دُنيا نور نعمتونه امن ، خوراکونه وغيره دی يا مراد دَ بلاء نه عذاب دے او فعل ماضی پخپله معنیٰ ده او مراد دَ دے نه عذاب دَ قحط دے چه په مکه والو باندے راغلے وو لکه چه سورة نحل سك ۱۱۲ کښې تير شويدی يا په معنیٰ دَ مستقبل سره دے يعنی روستو په دُنيا يا په آخرت کښې به په دوی باندے عذاب راوليږی ۔ أَصْحٰبَ الْجَنَّةِ مشهوره دا ده چه دوی په يمن کښې صنعاء ښار ته دوه فرسخه کښې نزدے وو او دَ عيسىٰ عليه السّلام دَ رفع نه روستو وو دَ دوی عذاب اجمالی ذکر شو په بلونا سره کله چه په معنیٰ دَ عذاب سره وی او علت دَ عذاب ئے په وړبسے ايت سك ۱۸ او دَ سك ۲۱ نه تر سك ۲۵ پورے ذکرکوی ۔

إِذْ أَقْسَمُوا لَيَصْرِمُنَّهَا صَرم فصل پريکولو ته وئيلې شی او صريم هغه کوری ته وئيلې کيږی چه دَ چيلئ او سخی وغيره (پيئ رودونکی ـ بچی) په خُله باندے

وَلَا يَسْتَثْنُوْنَ ⑱ فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ

او جدا ئي يې نه کوله. نو راغې دَ شپې په هغې باندې دَ شپې راتلونکې عذاب

مِّنْ رَّبِّكَ وَهُمْ نَآئِمُوْنَ ⑲ فَاَصْبَحَتْ

دَ طرف دَ رب ستا نه . او دوی اوده ؤ وو. نو شو هغه

تړلې کیږي دَ پاره دَ دې چه دَ مور نه پیُ نه روی. او صرماء هغه صحرا ته وئیلې شي چه پکښې اوبه اوچې شوې وي. او هغه اوښې ته وئیلې کیږي چه پیُ ترینه اوچ شوې وي نو په دې ټولو الفاظو کښې معنیٰ دَ منع پرته ده نو پدې لفظ لیصرمنها کښې اشاره ده چه پریکول په وخت دَ صبا کښې په نیت دَ منع سره وؤ. وَلَا يَسْتَثْنُوْنَ مشهور قول دا دې چه إنشاء الله یُ نه وئیلو دویم قول دا دې چه دَ مسکینانو حصّه یُ نه جدا کوله دریم قول دَ ابو صالح نه نقل دې چه سبحان الله یُ نه وئیلو او دلیل دَ روستو قول په ۲۸ کښې دې (سوال) په انشاء الله نه وئیلو سره دَ دا سې غټ عذاب څه رنګ مستحق شول دا خو دومره غټه ګناه خو نه ده؟
(جواب) بِنا په قول مشهور دا دې چه انشاء الله قصدًا نه وئیل چه دَ الله تعالیٰ دَ صفت دَ مشیت او ارادې نه انکار کول دی او دا عقیده دوی لرله چه دَ بندګانو کارونه دَ الله تعالیٰ په اراده او مشیت سره نه دی لکه چه پدې امت کښې دَ قدریه ډلې دا عقیده ده او دا انکار خو کفر دې. دویم جواب بِنا په دویم قول سره دا دې چه حِصّه دَ مسکینانو په اصل کښې هغه مال دې چه په نوم دَ الله تعالیٰ ورکیدې شي او بله حِصّه دَ غیر الله په نوم سره وي (چه مشرکانو یُ ورکوی او هغه دَ دوی په نیز منجور دَ بابا یا نوسي دَ هغه بابا ته ورکیدیشي نورو مسکینانو ته نشي ورکیدې) نو دې خلقو دا دویمه حصّه ورکوله او دا خو صفا شرک دې. دریم جواب بِنا په دریم قول دا دې چه سبحان الله نه وئیل اشاره ده چه دَ شرک نه یُ الله تعالیٰ پاک نه ګڼړلو او دا یقینًا سبب دَ عذاب دې اګرچه دې خلقو روستو دَ ډیرې ندامت نه توبه ویستلې ده.
۱۹ نه ۲۰ دا تفصیل دَ عذاب دې چه هغې ته اشاره ده (پاڼې په بل مخ)

كَالصَّرِيْمِ ﴿٢٠﴾ فَتَنَادَوْا مُصْبِحِيْنَ ﴿٢١﴾

پشان د پرے کړی شوی. نو آوازونه ئے اوکړل یو بل ته د صبا په وخت کښ.

اَنِ اغْدُوْا عَلٰى حَرْثِكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰرِمِيْنَ ﴿٢٢﴾

چه صبا وختی لاړ شئ پتی خپل ته که چرے تاسو پرے کوونکی یئ.

په بلونا کښ په یو معنیٰ سره. طَآئِفٌ فراء او ابن جریر وئیلی دی چه دا مختص دے په هغه مصیبت او عذاب پورے چه صِرف د شپے راځی. مِنْ رَّبِّكَ متعلق دے په طاف پورے یا صفت دے د طائف په تقدیر د مقدار سره معلومه شوه چه مراد د طائف نه وسوسه نه ده ځکه هغه شیطان ته منسوب وی لکه په سورة اعراف ب۲۰۱ کښ دی.

نَآئِمُوْنَ، فَاَصْبَحَتْ دا دواړه دلیلونه دی په دے چه عذاب د شپے راغلے وو. كَالصَّرِيْمِ په دے کښ درے قولونه مشهور دی اول هغه او نه چه میوے ترے نه پریکړے شی یا فصل لو کړے شوے دویم شپه توره دریم ایرے تورے یعنی هغه باغ او سوځیدو نو تک تور ښکاره کیدو په شان د ایرو.

ب۲۱ ب۲۲ دا تفصیل د سبب د عذاب دے یعنی دا سے طریقه اختیار ول چه مسکینان خبر نشی. نو اوله خبره یو بل راجمعه کول دی په آواز کولو (تنادی) سره یو بل ته او صبا وختی ئے د دے وجے نه مقرر کړو چه مسکینان به اوده وی یا به عبادت د الله تعالیٰ کښ په مشغول وی.

اَنِ اغْدُوْا اَن تفسیر دے د تنا دی کولو،

عَلٰى حَرْثِكُمْ فصلونه او میوے چه په اونو کښ وی ټولو ته دا لفظ شامل دے او په دے لفظ کښ اشاره ده چه دوی وئیل کرونده مونږ کړے ده مونږ پکښ محنت کړے دے دا خو هر څه زمونږ دی نو په دیکښ د الله تعالیٰ حصه په مونږ باندے واجب نه ده. او لفظ د عَلٰى هم اشاره ده چه مونږ په دے فصل پریکولو باندے دا سے غالب یو چه هیڅ څوک ئے زمونږ نه نشی منع کولے یا لفظ د عَلٰى د پاره د تضمین د معنیٰ د اقبال (متوجه کیدلو) دے.

فَانْطَلَقُوْا وَهُمْ يَتَخَافَتُوْنَ ﴿۲۳﴾ اَنْ لَّا

تو روان شول او دوی پټ (رغلے غلے) خبرے کولے (هسے نه) چه ننۍ

يَدْخُلَنَّهَا الْيَوْمَ عَلَيْكُمْ مِّسْكِيْنٌ ﴿۲۴﴾

داخل دے باغ ته نن ورځ په تاسو باندے څوک مسکین

وَّغَدَوْا عَلٰى حَرْدٍ قٰدِرِيْنَ ﴿۲۵﴾ فَلَمَّا

او صبا وختی لاړل دوی په غصے سره ځان ئے قادر ګڼړلو. نو هر کله چه دوی

۲۳-۲۴ روستو دَ جمع کیدلو نه طریقه دَ تللو باغ ته داسے جوړ وی چه مسکینان ترینه خبر نشی یعنی خبرے دَ یو بل سره پټے پټے کول.

يَتَخَافَتُوْنَ دا دَ خفت نه ماخوذ دے په پټو لوکښ مبالغه کولو ته و ئیلے کیږی او دا طریقه داسے وه لکه چه دَ غلا دَ پاره ځی.

اَنْ لَّا يَدْخُلَنَّهَا اه دا تفسیر دے دَ تخافت کولو یعنی دوی داخبره پټه کوله یا لام اجلیه مقدر دے علت دَ تخافت کولو دے او دا مبالغه ده په منع دَ مسکین کښ یعنی مراد دا دے چه مسکین له دَ داخلیدلو قدرت ورنکړے، اګر چه هغه په داخلیدل غواړی.

۲۵ عَلٰى حَرْدٍ دا لفظ قصد کول، حاجت، منع کول، غصه کول، یوځائے والے دَ دے ټولو معانیو احتمال لری او بعضو و ئیلی دی چه حرد دَ دوی دَ باغ یا دَ هغه مکان نوم وؤ.

قَادِرِيْنَ، فی زعمهم دلته پټ دے او دا حال دے دَ غدوا دَ ضمیر نه یعنی دوی ځان قادر ګڼړلو په خپل باغ پریکولو، دَ هیڅ مانع نه ئے ویره نه کوله یا ځان ئے قادر ګڼړلو په منع کولو دَ مسکینانو دَ وجے دَ تکبر کولو نه.

او حاصل دَ دے ټولو دا دے چه دوی په باغ کښ دَ الله تعالیٰ دَ نوم حصه نه منله (چه دَ هغے مصرف مسکینان دی) او دَ غیر الله حصه ئے منله.

رَاَوْهَا قَالُوْٓا اِنَّا لَضَاۗلُّوْنَ ﴿۲۶﴾ بَلْ نَحْنُ

او ليدو هغه باغ او ئيل دوى يقيناً مونږ هيروونكى د لارے يو . بلكه مونږه

مَحْرُوْمُوْنَ ﴿۲۷﴾ قَالَ اَوْسَطُهُمْ اَلَمْ اَقُلْ

بے نصيبه يو . اُوئيل هوښيار د دوى ايا ما ته وو وئيلے

لَّكُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُوْنَ ﴿۲۸﴾ قَالُوْا سُبْحٰنَ

تاسو ته چه ولے پاک نه كنړے الله تعالىٰ (د شريک نه)- دوى اُوئيل پاكى ده

۲۶ ۲۷ فَلَمَّا رَاَوْهَا مراد د ضمير د هَا نه هغه حالت دے چه پشان د صريم گرځيدلے وو قَالُوْٓا اِنَّا لَضَاۗلُّوْنَ دا د ډيرے حيرانتيا د وجے نه دوى بعيده گنړله چه زمونږ باغ دے پدا اسے حال وى ! نو او وئيل چه مونږ لارخطا كړيدو .

بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ يعنى روستو د سوچ او د فكر كولو نه ئے خپل حرمان اقرار ئے اوكړو . او د دے په مناسبت سره قرطبى حديث د ابن مسعود رضى الله عنه مرفوع ذكر كړے دے چه د گناهونو نه ځان سا تئ ځكه بنده چه يو گناه اوكړى نو د هغے د وجے د تيار رزق نه محرومه شى ، او قرآن كښ د دے تائيد دا ايت دے او دا رنگ سورة رعد سلا په دے باندے دلالت كوى او ابن كثير د بيهقى نه روايت راوړے دے چه نبى صلى الله عليه وسلم د شپے د لو كولو د فصل او د ميوؤ د شوكولو نه منع كړيده . او جزا د جنس د عمل نه وى دوى مسكينان محروم كړل نو الله تعالىٰ دوى محروم كړل .

۲۸ قَالَ اَوْسَطُهُمْ اه اوسط په معنىٰ د غوره د ے د دينه په عقل او رأى كښ . اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ اه دليل دے چه د غه شخص دوى ته تبليغ او دعوت كړيوؤ تسبيح وئيلو ته ليكن دوى دعوت او نه منلو او هغه هم د دوى ته براءت اونكړو نو د هغه په حصّه باندے هم عذاب راغے . تسبيح معنىٰ د استثناء ده او دا دليل دے چه دوى د توحيد فى البركات نه انكار كولو او الله تعالىٰ ئے د شرک فى البركات نه پاک نه گنړلو . نو عذاب په دوى باندے په سبب د شرک كولو سره راغلو .

رَبِّنَآ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿۲۹﴾ فَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ

رب زمونږ لره يقيناً مونږ يو ظلم كوونكي ۔ نو مخامخ شول بعض د دوی

عَلٰى بَعْضٍ يَّتَلَاوَمُوْنَ ﴿۳۰﴾ قَالُوْا يٰوَيْلَنَآ

په بعضو باندے ملامته كول ئے يو بل لره ۔ دوی اُوئيل هائے تباهي ده مونږ لره

اِنَّا كُنَّا طٰغِيْنَ ﴿۳۱﴾ عَسٰى رَبُّنَآ اَنْ يُّبْدِلَنَا

يقيناً مونږ يو د حد نه تيرونكي ۔ اميد دے چه رب زمونږه به په بدله كښ را كړی

خَيْرًا مِّنْهَآ اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا رٰغِبُوْنَ ﴿۳۲﴾

غوره د دے نه يقيناً مونږ خپل رب ته رغبت كوونكے يو ۔

ف۲۹ دا اعتراف د دوی دے په ظلم خپل باندے او توبه ده په داسے حال كښ چه اوس خو ورته فائده نه وركوی هان ليكن ائنده د پاره فائده مند ده. سُبْحَانَ رَبِّنَآ يعنی الله تعالىٰ د هر قسم شريك او د نسبت د هر ظلم نه پاک دے ۔

ف۳۰ دا اشاره ده ډيرے خضوع او عاجزئ كولو ته په توبه كولو سره ځكه چه هر يو د دوی نه اقرار د جرم اوكړو. يَتَلَاوَمُوْنَ يعنی يو تن به بل ته وئيل چه تا دا مشوره راكړے وه چه مسكينان به منع كوو. نو بل به اُوئيل چه تا امر كړے وو د بخل كولو نو بل به اوئيل چه تا وئيلے وو چه د الله تعالىٰ سره د نورو اولياؤ بزرګانو په نوم باندے نذرانے وركول سبب د بركاتو دے يعنی يو بل ئے ملامته كولو ۔

ف۳۱ ف۳۲ دا نوره مبالغه ده په اقرار د جرم او په توبه كولو كښ. فرق په مينځ د ظلم او د طغيان كښ دلته دا دے چه شرک كولو ته ئے ظلم او وے ځكه چه الله تعالىٰ فرمائيلے دی اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ. او مسكينانو منع كولو ته ئے طغيان او وے ځكه چه په دے كښ د حد نه تجاوز كول او ناشكری د نعمتونو د الله تعالىٰ ده. عَسٰى رَبُّنَآ دا جمله خبريه ده ليكن مقصود په دے كښ دُعا كول دی او په دے كښ د توبے كولو په مستقبل كښ فائدے ذكر كول دی. خَيْرًا مِّنْهَآ په دُنيا كښ يا په آخرت كښ ( پاتے په بل مخ )

كَذٰلِكَ الْعَذَابُ ؕ وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ

| داسے | عذاب | دی | او خامخا عذاب | دَ | آخرت | ډیر لوئے دے |
|---|---|---|---|---|---|---|

لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۳﴾ اِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ عِنْدَ

| که چرے | دوی | پوهیدل | - | یقینا | متقیانو لره | په نیز |
|---|---|---|---|---|---|---|

فرق په مینځ دَ تبدیل او ابدال کښ دا دے، تبدیل تغییر دَ حال او دَ صفت دَ یو څیز دے سره دَ بقا دَ اصل نه او ابدال لرے کول دَ یو څیز وی او راوړل دَ بل څیز وی په ځائے دَ هغه باندے۔

اِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا رَاغِبُوْنَ حسن بصریؒ نه روایت دے چه زهٔ نه پوهیږم چه دا کلمه ایمان راوړل او توبه کول دی او که نه دَ مشرکانو په طریقه باندے صرف په سختئ کښ الله تعالیٰ ته رجوع کول دی دا رنګ دَ قتاده نه هم دَ دوی په باره کښ توقف ثابت دے۔ او نور ډیر اهلِ علمو وئیلے دی چه دوی توبه اوکړه او ایمان ئے راوړے دے او الله تعالیٰ ورله نور باغونه ورکړل۔

۳۳ دا متعلق دے دَ اِنَّا بَلَوْنَا هم سره یعنی عذاب دَ اهلِ مکه صرف په دُنیا کښ نه دے بلکه چه توبه نه اوباسی نو په آخرت کښ هم عذاب دے۔ یا عام دے لکه چه اصحاب الجنة ( باغ والو ) لره عذاب دَ دُنیا ورکړے شو په سبب دَ شرک او دَ منع دَ صدقے په نوم دَ الله تعالیٰ او بخل کولو په مسکینانو باندے نو څوک چه دا عمل کوی نو دَ هغوی دَ پاره په دنیا کښ هم عذاب دے او په آخرت کښ هم دے په دے شرط سره چه توبه او نه باسی۔

قاسمی په آخر دَ دے قصه کښ ذکر کړے دی چه په دے سره هغه کسانو باندے هم رد دے چه زکوٰة ادا کولو نه ځان په حیلو سره بچ کوی لکه چه بعضِ علماؤ حیلے دَ اسقاطِ زکوٰة یا اِسقاطِ شفعه دَ پاره لیکلے دی او نسبت دَ جواز ئے احنافو علماؤ ته کوی۔

رَبِّهِمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿۳۴﴾ اَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِيْنَ

دَ رب دَ دوی جنتونه دَ نعمتونو دی . ایا گرځوو به موږ مسلمانان

كَالْمُجْرِمِيْنَ ﴿۳۵﴾ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ﴿۳۶﴾

پشان دَ مجرمانو . څه دلیل دے ستاسو څه رنګه فیصلے کوئے .

اَمْ لَكُمْ كِتٰبٌ فِيْهِ تَدْرُسُوْنَ ﴿۳۷﴾ اِنَّ

ایا تاسو لره کتاب دے چه په هغے کښ لوستل کوئے . یقیناً

لَكُمْ فِيْهِ لَمَا تَخَيَّرُوْنَ ﴿۳۸﴾ اَمْ لَكُمْ

تاسو لره په هغے کښ هغه څیز دے چه تاسو ئے خوښوئے . ایا تاسو لره

۳۴ دَ دے ایت نه دویم باب دے او خلاصه ئے په ابتدا کښ ذکر کړے شویده . روستو دَ ذکر دَ تخویف نه بشارت ذکر کوی او فرق دَ فریقینو ذکر کوی جَنّٰتِ النَّعِيْمِ یعنی داسے باغات چه دَ نعمتونو نه سیوا په کښ بل هیڅ نه وی او فنا دَ هغے به هم نه وی پشان دَ باغونو دَ دنیا والو .

۳۵ په دے کښ رد دَ هغه چا دے چه دَ ایمان والو او کفر والو په عاقبت کښ فرق نه کوی بلکه حال دَ مشرکانو په دُنیا باندے قیاس کوی چه دَ هغوی په دُنیا کښ باغونه وغیره دی نو په اخرت کښ به ئے هم وی .

اَفَنَجْعَلُ همزه دَ استفهام انکاری دے او داسے په سورة صٓ ۲۸ او سورة جاثیه ۲۱ کښ تیر شویدی . كَالْمُجْرِمِيْنَ مجرم هغه دے چه بیکاره خپل گناهونه کوی او توبه نه اوباسی .

۳۶ په دے کښ او روستو ایاتونو کښ طلب دَ دلیل دے دَ مجرمانو نه په نجات دَ دوی باندے او نفی دَ دلیلونو ده . په دے کښ نفی دَ دلیل عقلی ته اشاره ده . مَا لَكُمْ یعنی کوم دلیل عقلی دے ستاسو په نجات باندے . كَيْفَ زجر دے په حکم بے دلیله باندے .

۳۷ ۳۸ په دے کښ نفی دَ دلیل نقلی ده یعنی داسے کتاب چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه وی او په هغے کښ دلیل وی ستاسو په شرک باندے ، نو داسے کتاب تاسو سره نیشته اِنَّ لَكُمْ دا مفعول دَ تَدْرُسُوْنَ دَ پاره په بل صیغه

أَيْمَانٌ عَلَيْنَا بَالِغَةٌ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ إِنَّ

قسمونه دي په موږ باندې رسيدونکي تر ورځ د قيامت پورې چه يقيناً

لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُوْنَ ﴿۳۹﴾ سَلْهُمْ أَيُّهُمْ

ستاسو د پاره هغه ده چه تاسو کومه فيصله کوئ ـ تپوس اوکړه د دوی نه چه کوم يو د دوی نه

بِذٰلِكَ زَعِيْمٌ ﴿۴۰﴾ أَمْ لَهُمْ شُرَكَآءُ

په دې باندې ذمه وار دې ـ آيا دوی لره شريکان شته (د الله سره)

نو پکار وه چه إِنَّ په زور د همزه سره وې أَنَّ ليکن روستو حرف د لام دے د هغې د وجې نه إِنَّ ئې په زير سره راوړے دے يا دا چه مفعول محذوف دے او دا جمله حکايت د مفعول (مدروس) دے ـ
لَمَا تَخَيَّرُوْنَ نه مراد شرك کول يا عقيده د شفاعتِ شرکيه ده دا رنګ په سورة فاطر ۴۰ او سورة روم ۳۵ کښې هم تير شوې دی ـ
۳۹ ـ ۴۰ دا نفي د دليل وحي (وعد الله) ده أَيْمَانٌ عَلَيْنَا قسمونه او عهدونه د الله تعالىٰ د طرف نه چه پوره کول ئې په هغه باندې واجب دی ځکه چه حرف د علىٰ په وجوب باندې دلالت کوی بَالِغَةٌ يا خو او کلک قسمونه په دې کښې احتراز دے د لغو د قسم نه ـ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ د دے متعلق پټ دے يعني وَاصِلَةٌ چه دا قسمونه رسيدونکي وی تر قيامته پورے يعني چه تر قيامته پورے ستاسو د پاره ازادی او معافی وی چه هر څه کوئ نو جائز به وی يا بَالِغَةٌ په معنىٰ د رسيدونکي دے او الى يوم القيامة په بالغة پورے متعلق دے ـ إِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُوْنَ په دے إِنَّ کښې هغه توجيهات دی چه په تير شوی إِنَّ کښې وو ـ مخکښې تخيرون او دلته تحکمون ذکر دے فرق دا دے چه اول کښې مسلك او مذهب مراد دے يعني شرك او کفر بدعات کول او په دويم کښې د هغه مسلك حکم د جواز او عدم جواز او حلال او حرام مراد دے ـ سَلْهُمْ أَيُّهُمْ بِذٰلِكَ په دې کښې زجر دے او نفي د دليل د کفالت ده او ذٰلِكَ اشاره ده مضمون د فنجعل المسلمين کالمجرمين ته يا اشاره ده اثبات د قسمونو ته ـ
زَعِيْمٌ ذمه دار، يا دعوى دار د صحت د دغه دعوے، يا مشر ـ او مراد دا دے

فَلْيَأْتُوا بِشُرَكَآئِهِمْ إِنْ كَانُوا صٰدِقِيْنَ ﴿٤١﴾

پس نو دوی دِ راولی دغه شریکان دَ دوی که چرے دوی رشتینی وی ۔

يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ وَّيُدْعَوْنَ

په کومه ورځ چه لرے به کړے شی پرده دَ پنډۍ نه او او به بللے شی دوی

إِلَى السُّجُوْدِ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿٤٢﴾ خَاشِعَةً

سجدے کولو ته نو دوی به نه لری طاقت ۔ کوزے به وی

أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ۖ وَقَدْ كَانُوْا

سترگے دَ دوی پټ کړے به وی دوی لره ذلت ۔ او یقیناً دوی به

چه عالِم یا مشر ستاسو په دے دعوی کښ شته دے ؟

سلا دا نفی دَ دلیل دَ تقلید ده شرکآءِ یعنی دا سے علماء او پیران وغیره چه هغوی شرک اوکفر جائز کوی اوکنړی او دلیلونه ورسره نیشته او تاسو دَ هغوی بغیر دَ دلیل شرعی نه تقلید کوئے او دا سے په سورة شوری ۲۱ کښ هم شته او هرکله چه دا سے شرکاء دَ دوی وؤ دَ دے وجے نه ئے ورته اُوئیل فَلْيَأْتُوا بِشُرَكَآئِهِمْ لیکن دا سے شرکاء خو میدان دَ حجت او دَ مناظرے ته نشی حاضر یدلے دارنگ په سورة انعام ۱۵۰ کښ هم تیر شوید ی ۔

سلا ۴۲ ۴۳ دا تخویف اخروی دے روستو دَ بیان دَ عدم دلیل نه دَ دوی سره۔ عَنْ سَاقٍ مضاف الیه محذوف دے یعنی ساق دَ الله تعالی نه په دلیل دَ حدیث دَ بخاری سره چه کتاب التوحید کښ راوړے دے چه يَكْشِفُ رَبُّنَا عَنْ سَاقِهٖ او په یکښ مذهب دَ سلف صالحینو ښکاره او صحیح دے چه ساق په معنیٰ حقیقی سره دے او کیفیت دَ ساق مجهول دے او تاویل او تمثیل ئے باطل مسلک دے ۔ او که مضاف الیه محذوف مراد نه کړے شی نو بیا دا دَ ایات الصفات نه نه دے او په یکښ دَ سلف صالحینو نه تاویلات منقول دی لکه چه ابن جریر دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړے دے چه يَوْمِ كَرْبٍ وَّشِدَّةٍ رپاتے په بل مخ )

يُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ وَهُمْ سَالِمُونَ ﴿۴۳﴾

بلل کیدلے شول سجدے ته او دوی په روغ رمټ وو.

فَذَرْنِي وَمَنْ يُكَذِّبُ بِهَٰذَا الْحَدِيثِ ۖ

نو پرېږده ما او هغه څوک چه دروغژن ګڼړی دا خبرے

سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۴۴﴾

خامخا نیسو مونږ دوی په دمه دمه په داسے طریقه چه نه پوهیږی دوی.

وَأُمْلِي لَهُمْ ۚ إِنَّ كَيْدِي مَتِينٌ ﴿۴۵﴾

او مهلت ورکوم زهٔ دوی لره یقیناً نیول زما پاخه دی.

روزرځ دَ غم اودَ سختئ) او بعضو مراد اخستے دے ساق العرش. لیکن هرکله چه صحیح حدیث مرفوع شته نو موقوف روایاتو ته رجوع کول جائز نه دی. وَيُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ دا دعوت دَ توبیخ او دَ ملامته کولو دَ پاره دے، تَعَبُّدًا نه دے او حدیث صحیح کښ راغلے دی چه دا هغه خلق په وی چه په دُنیا کښ الله تعالیٰ ته ئے سجدے او مونځونه کول په ریا کارئے او دَ نوم دَ پاره نو هغوی به قیامت کښ دَ سجدے اراده اوکړی لیکن شا به ئے یو تخته شی. خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ اه ذلت دَ زړه دَ سترګو نه معلومیږی او دارنګ په دُنیا کښ به دوی دَ تکبر دَ وجے نه سترګے دَ حق نه اړولے نو په ورځ دَ قیامت به دَ دوی په سترګو باندے اثر دَ ذلت ښکاره شی. تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ یعنی په دُنیا کښ دوی ټول اندامونه دَ بدن دَ سجدے کولو نه په اخلاص سره. بچ ساتل او دا به ئے خپله بے عزتی ګڼړله نو نن په ورځ دَ قیامت ټول اندامونه ئے په ذلت کښ اخته شول. وَقَدْ كَانُوا يُدْعَوْنَ اه سجود نه مراد سجده دَ اخلاص ده الله تعالیٰ ته یا مونځ کول دی او دَ دعوت نه مراد اذان او اقامت دے لیکن دوی دَ هغے اجابت نه کوؤ یا مراد دَ سجود نه انقیاد دے احکامو دَ الله تعالیٰ او قران اوریدلو ته او مراد دَ دعوت نه عام دعوت او تبلیغ دے او دوی هغه نه دے قبول کړے.

۴۴ ۔ ۴۵ دا تسلی ده رسول صلی الله علیه وسلم ته او ورسره تخویف

أَمْ تَسْـَٔلُهُمْ أَجْرًا فَهُم مِّن مَّغْرَمٍ

ایا ته غواړے ذ دوی نه څه عوض نو دوی ذ وجې ذ تاوان نه

مُّثْقَلُونَ ﴿٤٦﴾ أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ

درانهٔ دی ایا دوی سره غیب (وحی) دے نو دوی

يَكْتُبُونَ ﴿٤٧﴾ فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُن

لیکل کوی (ځ ھغې نه) نو صبر کوه فیصلے ذ رب خپل پورے او مه کیږه ته

---

دنیوی دے منکرینو ته. فَذَرْنِي داکنایه ده یعنی ته ذ دوی نه بے غمه شه ذ دوی فکر ذ عذاب پریږده او پرواه ئے مکوه. الْحَدِيثِ مراد قرآن دے یا هغه مضمون چه په دے سورت کښ ذکر کړے شو. سَنَسْتَدْرِجُهُم استدراج په اصل کښ نقل کول دی ذ یو حال نه بل حال ته په تدریج (په دمه دمه سره) او استعمالیږی په تنزل کښ یعنی ذ اعلی درجے نه خکته درجے ته په دمه دمه منتقل کیږی او دے خیال کوی چه دا ترقی ده او ذ هغې تفصیل په سورة مؤمنون ۵۵ ۵۶ او سورة انعام ۴۴ او سورة آل عمران ۱۷۸ او سورة اعراف ۱۸۲ کښ تیر شویدے. وَأُمْلِي لَهُمْ یعنی دا استدراج ذ دوی ذپاره ذ اکرام ذ وجې نه نه دے بلکه دا خو یو مهلت ورکول دی چه په هغې سره به ئے ګناهونه نور هم زیات شی.

۴۶ ۴۷ په دے ایاتونو کښ رد ذ عذرونو ذ منکرینو دے یعنی دوی دا عذر نشی کولے چه مونږ تکذیب ذ قرآن ذ دے وجې نه کوؤ چه دا نبی زمونږ نه ډیر اجرت غواړی یا ذ دے وجې نه چه مونږ له وحی ذ الله تعالی ذ طرف نه راځی نو مونږ قرآن ته حاجت نه لرو. دا دواړه خبرے نیشته ځکه چه استفهام په أَمْ تَسْـَٔلُهُمْ او أَمْ عِندَهُمُ کښ انکاری دے، په اول ایت کښ اشاره ده چه داعی الی الحق له جائز نه دی چه ذ خلقو نه په دعوت باندے اجرت طلب کوی یا ذ اجرت په طمع سره دعوت کوی ځکه چه ثواب اخروی ضائع کیږی او دا رنګ په مخاطبینو باندے هم بوج راځی نور تفسیر ذ دواړو ایاتونو په سورة طور ۴۰ ۴۱ کښ تیر شویدے. الْغَيْبُ نه مراد وحی ده (پاتے په بل مخ)

كَصَاحِبِ الْحُوْتِ ۘ اِذْ نَادٰى وَهُوَ

په شان د مهی والا کله یې چه اواز اوکړو او دۀ هغه

مَكْظُوْمٌ ﴿٤٨﴾ لَوْلَآ اَنْ تَدٰرَكَهٗ نِعْمَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ

د غم نه ډک . که نه وے رسیدلے دۀ ته نعمت د طرف د رب د دۀ نه

چه دلالت کوی په تکذیب د قران باندے . فَهُمْ يَكْتُبُوْنَ کښ اشاره ده چه که دوی سره وحی وی نو د قران په مقابله کښ دے اولیکی چه مخلوق ته فرق معلوم شی . حاصل دا چه د دوی سره دنیوی او دینی دواړه موانع نیشته .

سـ۴۸ دا تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم لره او امر دے په صبر کولو په انکار د منکرینو او په مصائبو د دعوت او تبلیغ باندے په زمانه د مهلت د منکرینو کښ چه مخکښ ایت کښ ذکر کړے شو . لِحُكْمِ رَبِّكَ حکم په معنیٰ د قضا د رب دے په طریقه د مهلت ورکولو منکرینو ته یا په معنیٰ د امر د رب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته په تبلیغ او په صبر سره او په دے دواړه توجیهاتو کښ لام اجلیه دے یا حکم په معنیٰ د نصرت دے او لام په معنیٰ د اِلیٰ سره دے . وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوْتِ دا منع ده د تشبیه د یونس علیه السلام نه په استعجال کولو کښ چه الله تعالیٰ ورته امر نه وو کړے چه ته د دے قوم نه او زه او هغه په خپل اجتهاد سره د هغوی نه لاړو او دے ته یې ظلم وئیلے دے په خپله دعا کښ چه اِنِّیْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ دا گناه نه دے تفصیل یې سورة الانبیاء کښ تیر شوید ے . اِذْ نَادٰى وَهُوَ مَكْظُوْمٌ نداء نه مراد هغه دعا ده چه سورة انبیاء سـ۸۷ کښ ذکر شویده . دا وجه د تشبیه نه ده بلکه دا صفت د صاحب الحوت یې د دے وجه نه ذکر کړو چه هغه په خپل خطایې باندے پوخ نه وو بلکه پښیمانی یې ښکاره کړے وه بله وجه د دے د ذکر کولو دا وه چه ترغیب دے تضرع او دعا کولو ته پشان د یونس علیه السلام .
مَكْظُوْمٌ كظم په اصل کښ بندولو ته وئیلے کیږی لکه الكاظمین الغيظ بیا مکظوم نه مراد دلته محبوس دے په خیټه د مهی کښ یا مراد د ډیره

لَنُبِذَ بِالْعَرَآءِ وَهُوَ مَذْمُوْمٌ ﴿٤٩﴾ فَاجْتَبٰهُ

خامخا غورځولے شوے به دے په ډاګه او دے به وے بدحاله. نو غوره کړو دهٔ لره

رَبُّهٗ فَجَعَلَهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٥٠﴾ وَاِنْ يَّكَادُ

رب دَ دهٔ نو اوګرځوئے دے دَ نیکانو نه . او یقینًا نزدے دی

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ بِاَبْصَارِهِمْ

کافران چه اورسوی تاته (مصیبت) په نظرونو خپلو سره

لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُوْلُوْنَ

هر کله چه دوی واوریدو قران او وائی دوی

ډک دَ غم نه دومره ډک چه دَ خوشحالئ لارے بندے شی.

ف۴۹ تَدٰرَكَهٗ فعلِ ماضی مذکر ده دَ باب تفاعل نه دَ پاره دَ مبالغے او نعمت مؤنث غیرحقیقی دے دَ دے وجے نه فعل ئے مذکر راوړو. نِعْمَةٌ نکره دَ پاره دَ عظمت ده مِنْ رَّبِّهٖ کښ هم تاکید دے او مراد دَ نعمة نه نبوت دَ هغه او اجابت دَ دُعا دَ هغه او حفاظت دَ هغه دے.

وَهُوَ مَذْمُوْمٌ دا حال دے قید دے دَ پاره دَ نبذ یعنی که دَ الله تعالی احسان نه وے نو په بد حالت کښ به غورځولے شویوے او سورة صافات ف۱۴۵ کښ نبذ دَ هغه ذکر کړے لیکن صرف حال دَ مرض وو مذموم نه وو.

ف۵ دا تفریع ده په ندا او کظم نو هغه سبب اوګرځیدو دَ پاره دَ اجتبا دَ هغه نو دا حال ئے ذکر کړو دَ پاره دَ ترغیب دُعا کولو ته چه دا سبب دَ اجتبا دے او اجتبا سبب دَ صالحیت دے مراد دَ اجتبا او صلاحیت نه نبوت نه دے ځکه چه دے خو دَ مخکښ نه نبی وو بلکه مراد دا دے چه وحی ورته دوباره شورو شوه او توفیق دَ صبر ئے ورکړو او توبه ئے ورله قبوله کړه او دَ هغه قوم لره ئے توفیق دَ ایمان او توبے ورکړو.

إِنَّهُ لَمَجْنُونٌ ﴿٥١﴾ وَمَا هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ

| یقیناً دے لیونے دے. | او نه دے دا مګر | نصیحت دے |
|---|---|---|

سله دا زجر دے منکرینو ته او تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته
په حفاظت دَ هغه سره دَ سترګو دَ منکرینو نه او دا آیت متعلق دَ سله سره.
وَإِنْ مخفف دے دَ مثقل نه په اصل کښې وَ إِنَّه دے. یَکَادُ دا لفظ دلالت
کوی چه دا کار دوی کولے نشی دَ وجے دَ حفاظت دَ الله تعالیٰ نه خپل نبی لره.
لَیُزْلِقُوْنَکَ ابن قرطبی دَ دے په معنیٰ کښې دولس اقوال لیکلی دی. زلق
په اصل کښې لرے کول او خوټول ته وائي او دا رنګ نفوذ (و رننوتلو)
ته و ئیلے شی. او دَ دے په تفسیر کښې دوه توجیهات مشهور دی یو توجیه
دا ده چه دَ قرآن دَ اوریدلو په وخت کښې دوی ډیر غصه کیږی نو مطلب
دا چه دَ غصے او دَ غضب په سترګو باندے تا ته ګوری تا باندے رعب
او دباؤ اچوی. دویمه توجیه دا ده چه تا لره دَ نظره کوی او نظر بازخلق
راولی دَ دے دَپاره چه تا دَ نظره کړی نو بیمار به شے او قرآن بیانول به پریږدے او دا دلیل دے
چه نظر لګیدل حق دی او احادیث صحیح پدے باره کښې ډیر دی ابن کثیر په خپل تفسیر
کښې دَ نظر په باره کښې ډیر احادیث راجمع کړے دی او په احادیثو کښې دَ دے علاج هم
ذکر دے. لکه رقیه (دم اچول) په معوذتینو سره (سورة فلق او سورة الناس) لکه چه حدیث
ابن ماجه باب من استرقی من العین کښې ذکر دے. او بله رقیه په مسند احمد کښې ذکر ده
(بِاسْمِ اللهِ أَرْقِيْكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيْكَ مِنْ كُلِّ حَاسِدٍ وَعَيْنٍ اَللهُ يُشْفِيْكَ) او دا رنګ دَ
چا په باره کښې ئے ګمان راشی چه دے سړی دَ نظره کړے دے نو هغه سړی ته دے
امر اوکړی چه مخ، لاس او زنګنان او داخل دَ خپل ازار او وینځی او هغه
اوبه په نظر کړے شوی بنده باندے چړکاؤ کړے شی دا هم دَ ابن
ماجه او نسائی په حدیث کښې راغلے دی.

او ابن قتیبه په مختلف الحدیث کښې لیکلی دی چه دَ نظر دَ لګیدلو وجه دا ده چه دَ
بعض سړی په سترګو کښې الله تعالیٰ څه جراثیم کیخودلے وی هر کله چه
دے خپلے سترګے څه څیز ته مخامخ کړی او دَ هغه څیز نه خو شحالی او
تعجب ښکاره کړی نو دا جراثیم هغه بنده یا څیز ته اورسیږی او هغه بنده
بیمار شی یا هغه څیز متأثره شی نو معلومه شوه چه دَ اصابة العین عقیدة الخ

لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۵۲﴾

ډ پاره ډ ټولو خلقو ۔

صرف تعبدی نه ده بلکه ډ علم طب سره په اعتبار ډ اسباب محسوسه هم مناسبت لري ۔
وَيَقُوْلُوْنَ اِنَّهٗ لَمَجْنُوْنٌ یعنی هرکله چه ډ دوی ډ نظر اثر په نبی صلی الله علیه وسلّم باندے او نه غورځیدی نو بیا دوی حکم کوی چه دا مجنون دے او ډ دے خبرے جواب ئے ډ سورت په اول کښ ذکر شوے وو ۔
سله دا ذکر ډ صداقت ډ قرآن دے او مستلزم دے صداقت ډ رسول لره او اَلْعٰلَمِيْنَ نه مراد جن او انس دی لکه سورة فرقان سلے کښ وو او دا احتمال هم شته چه ضمیر ډ هُوَ نبی صلی الله علیه وسلّم ته راجع شی او ذکر په معنی ډ فاعل سره شی او دا جواب دے ډ هغوی ډ قول چه اِنَّهٗ لَمَجْنُوْنٌ ۔

الحمد لله ختم شو تفسیر ډ سورة قلم په توفیق ډ الله تعالیٰ

| سُوْرَةُ الْحَآقَّةِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۵۲ | رُكُوْعَاتُهَا ۲ |
|---|---|---|---|

اَلْحَآقَّةُ ﴿١﴾ مَا الْحَآقَّةُ ﴿٢﴾ وَمَآ اَدْرٰىكَ

افت يقيني راتلونكے ، څه لوئے دے يقيني افت راتلونكے - او څه خبر پوهه كړے يے ته

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الحاقة

ربط دَ دے سورت دَ سورة القلم سره په ډير وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه مخكښ دواړه سورتونو كښ اثباتِ توحيد او صداقتِ رسول ذكر شو نو په دے سورت كښ تخويف دنيوى او اخروى ذكر كوى دَپاره دَ منكرينو - دويمه وجه دا چه مخكښ درے اصول ذكر شول توحيد، رسالت، قرآن.اوس څلورم اصل ذكركوى يعنى اثبات دَ قيامت - دريمه وجه دا ده چه په هغه سورت كښ دَ تخويف دنيوى يو نمونه ذكر شوه نو په دے سورت كښ دَ تخويف دنيوى پنځه نمونے ذكركوى . څلورمه وجه دا چه په هغه سورت كښ ذكر وو" لعذاب الآخرة اكبر" نو په دے سورت كښ دَ هغے هيبت شان ذكركوى په ذكر دَ درے نومونو سره الحاقه، الواقعه، القارعه . پنځمه وجه دا چه په هغه سورت كښ اولّ او اخرّ اصداقت دَ رسول او دَ قرآن ذكر شو نو دَ دے سورت په اخر كښ به دا دواړه ذكر كوى -

دعوىٰ دَ سورت - تخويف دے په ذكر دَ پنځه قومونو تكذيب كوونكو او په ذكر دَ احوالو اواهوالو (هيبتونو) دَ قيامت ، سره دَ اثبات دَ صداقت دَ رسول او قرآن نه په باره دَ اخبار وركولو كښ دَ احوالو دَ قيامت نه -

او دعوىٰ دَ توحيد په ۵۲ كښ ده او درے اسماء حسنىٰ دَ الله تعالىٰ ذكر كوى - الله ، رب ، عظيم اوردَ شرك فى العلم په ۴۹ كښ ذكر دے -

خلاصه دَ سورت - ذكر دَ عظمت شان دَ قيامت په ۱، ۲، ۳ كښ

مَا الْحَاقَّةُ ﴿٣﴾ كَذَّبَتْ ثَمُودُ وَعَادٌ بِالْقَارِعَةِ ﴿٤﴾

چه څه دے یقیني آفت راتلونکے۔ دروغژن ګڼړلے وو ثمودیانو او عادیانو آفت ټکوونکے د زړونو۔

او تخویف په نزول دَ عذاب په منکرینو دَ قیامت ذکر کوی چه هغه پنځه قومونه مشهور وو دَ سَلا نه تر سِلا پورے۔ بیا ذکر کوی احوال او هیبتونه دَ قیامت درے قسمه۔ اول قسم احوال دَ فنا دَ عالم دی تر سِلا پورے۔ بیا دویم قسم احوال دَ قیام دَ قیامت دی په سِلا سِلا کښ اول قسم اُوه او دویم درے احوال دی نو مجموعه لس شول۔ بیا دریم قسم او په هغے کښ دَ اصحاب یمین لس احوال تر سِلا پورے بیا دَ اصحاب الشمال احوال تر سِلا پورے ذکر کوی۔ بیا ذکر دَ علتونو دَ عذاب په سِلا سِلا کښ دے۔ بیا ذکر کوی صداقت دَ رسول او دَ کتاب په یو شهادت سره او ذکر کوی اُوه اوصاف دَ هغوی نفیًا او ثبوتًا او په آخر کښ امر په تسبیح سره چه دعویٰ دَ توحید ده۔

**تفسیر** سِلا سِلا سِلا په دیکښ اثبات دَ قیامت دے په صفت دَ الحاقة سره دے کړے نو دا اشاره ده زیات هیبت دَ هغے ته۔ قیامت ته دَ الحاقة وئیلو دیر وجے دی اوله وجه هغه ساعت چه یقینًا بلاشك واقع کیدونکے دے۔ دویمه وجه هغه حالت چه په هغے کښ یقیني څیزونه واقع کیږی یعنی بعث، حشر، حساب کتاب میزان وغیره۔ دریمه وجه هغه ساعت چه په هغے کښ حقیقت دَ اعمالو پیژندلے کیږی۔ څلورمه وجه هغه حالت چه چالره حق دَ جنت ورکوی او چالره حق دَ جهنم ورکوی۔ (ترکیب عربی) الحاقة مبتدا ده او مَآ دویم مبتدا ده او دویم الحاقة خبر دَ دویمے مبتدا دے نو مبتدا دویم سره دَ خبر نه دا جمله خبر شو دَ پاره دَ مبتدا اولے۔ وَمَآ استفهامیه مبتدا اَدْرٰك فعل ماضی ضمیر فاعل پټ دے او كَ مفعول اول دے او مَا الْحَاقَّةُ مبتدا او خبر جمله اسمیه مفعول ثانی دَ فعل دے او فعل سره دَ فاعل او دَ دواړه مفعولو نو نه خبر دے دَ مَآ دَ پاره او حرف دَ مَآ اول او دریم دَ پاره دَ اظهار دَ عظمت او دَ هیبت دے۔ وَمَآ اَدْرٰكَ یحیٰ بن سلام او سفیان بن عیینه نه روایت دے چه کوم ځائے په قرآن کښ وما ادراك ذکر دے نو ورپسے دَ هغے علم ورکړے شوے وی او کوم ځائے چه ما یدریك دے نو دَ هغے علم ئے نه دے ورکړے سِلا روستو دَ اثبات دَ قیامت نه دَ تخویف دنیوی نمونے ذکر کوی (پاتے په بل مخ)

فَاَمَّا ثَمُوْدُ فَاُهْلِكُوْا بِالطَّاغِيَةِ ﴿٥﴾

پس هرچه ثمودیان وو نو هلاک کړے شول په سخته چغه .

وَاَمَّا عَادٌ فَاُهْلِكُوْا بِرِيْحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ ﴿٦﴾

او هرچه عادیان وو نو هلاک کړے شول په سیلئ تیزے دَ حد نه تیروونکے.

چه دَ تکذیب دَ وجے نه په هغوی باندے قسما قسم عذابونه راغلی وو په دے ایت کښ دوه قومونه ذکر شول . اَلْقَارِعَةِ دا هم نوم دَ قیامت دے په دیکښ دوه وجے دی اوله وجه دا چه قارعه دَ قرع نه ده سخت ټکولو ته وئیلے کیږی نو قیامت په سبب دَ هیبتونو سره زړونو لره سخت ټکوی .
دویمه وجه دَ مبرد نه نقل ده چه دا دَ قرعه نه ماخوذ دے یعنی دَ قرعه پشان به څوک کامیاب شی او څوک به ناکام شی . بل احتمال دا دے چه القارعه نه مراد هغه عذابونه دی چه په عاد او ثمود باندے په دنیا کښ راغلی وو نو هرکله چه دَ دوی انبیاؤ دوی لره په هغه عذابونو سره تخویف ورکړو نو دوی تکذیب اوکړو . بیا ثمود اګرچه په زمانه کښ روستو وو دَ عادیانو نه لیکن دَ دوی ملک (وطن) عربو ته نزدے وو چه هغے ته حجر او وادی القری وئیلے کیدله او اوس ورته مدائن صالح وئیلے شی دَ دے وجے نه ئے مخکښ کړل په ذکر کښ چه مشرکین دَ هغوی دَ احوالو نه ښۀ عبرت اخستلے شی .
۵ بِالطَّاغِيَةِ دا صفت دَ موصوف محذوف دے چه هغه الصیحة دے او هغه دَ حد نه تیره شوے چغه وه لکه په سورة قمر ۳۱ کښ ذکر وه یا موصوف دَ دے الفعلة الطاغیه دَ هغه کارونه چه حد نه ورتیر وو یعنی کفر او شرک او ناقه (اوښه) وژل او تکذیب دَ قیامت او تکذیب دَ رسول چه صالح علیه السلام وو نو با سببیه ده .
۶ تر ۸ په دے کښ ذکر دَ عذاب دَ قوم عاد دے او احوال دَ عذاب په دوی باندے اته ذکر کوی . په اول ایت کښ درے احوال دی . ا هلاک په سیلئ ، صرصر ، عاتیة . صَرْصَرٍ ماخوذ دے دَ صِر نه برد (یخنی او کلئ) نه یعنی سخته یخه ځکه چه په سخت موسم دَ ژمی کښ دا عذاب راغلے وو .

سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ سَبْعَ لَيَالٍ وَّثَمٰنِيَةَ

او چلوله هغه په دوی باندے اُوه شپے او اته

أَيَّامٍ حُسُومًا فَتَرَى الْقَوْمَ فِيهَا صَرْعَىٰ

ورځے پرله پسے نو لیدلو تا دغه قوم په هغې کښ پرمخے پراته

كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ﴿۷﴾

گویا چه دوی ویخونه دَ کجورو غورځیدلو دی۔

فَهَلْ تَرَىٰ لَهُمْ مِّنْ بَاقِيَةٍ ﴿۸﴾

نو آیا وینے ته دوی لره چه څوک ترے پاتے شوے وی۔

یا سخت آواز کوؤنکے ده۔ یا په مساماتو (رگونو) دَ بدن کښ ورننوتونکے ده۔ عَاتِيَةٍ دَ حد نه زیاته وه په الوتلو کښ۔ یا دَ عادیانو دَ طاقت نه ورتیره وه چه هغوی ترینه په هیڅ طریقے سره نشو بچ کیدلے لکه سورة ذاریات ۴۲ کښ تیر شویدی۔ یا دا چه دَ هغه ملائکو دَ قابو نه ورتیره وه کوم چه په هواګانو باندے مقرر دی۔ او په دویم آیت کښ څلور احوال ذکر دی ۱ سَخَّرَهَا ۲ حُسُومًا ۳ فَتَرَى الْقَوْمَ اه ۴ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ اه۔

سَبْعَ لَيَالٍ اه بقاعی وئیلی دی چه دَ شوال دَ میاشتے په آخری اتو ورځو کښ چه شروع ئے دَ ورځ دَ چارشنبے (دَ شورو ورځ) نه شوے وه او دَ بلے چارشنبے په ماښام باندے اودریدله۔ حُسُومًا په دے کښ ډیر اقوال دی پرله پسے، دَ ویخه ویستونکے، پرے کوؤنکے، همیشه، سپیره او بے خیره په باره دَ دوی کښ۔ او دا لفظ منصوب دے بنا په حالیت باندے یا مفعول مطلق دے دَ فعل محذوف یا مفعول له دے. فِيهَا صَرْعَىٰ ضمیر راجع دے شپو او ورځو ته، یا دَ دوی کورونو ته، یا ریح ته، صَرْعَىٰ جمع دَ صریع ده په زمکه باندے پرمخے غورځولے شوی، مراد دا چه مړه شو۔

أَعْجَازُ نَخْلٍ اعجاز جمع دَ عجز ده دَ تنے لاندنی حصے ته وئیلی کیږی (موندان) یعنی دوی په غټ والی کښ پشان دَ موندانو دَ کجورو وو. خَاوِيَةٍ ډډ دے چه مینځ ئے وینو او چینجو خوړلے وی۔ (یا تے په بل مخ)

وَجَآءَ فِرْعَوْنُ وَمَنْ قَبْلَهٗ وَالْمُؤْتَفِكٰتُ

او راغی فرعون او هغه څوک چه دَده نه مخکښ وو او الټه اړولے شوے کلی

بِالْخَاطِئَةِ ﴿۹﴾ فَعَصَوْا رَسُوْلَ رَبِّهِمْ

په غټ گناه سره . نو نا فرمانی ئے اوکړه دَ رسول دَ رب دَ دوی نه

یا پریوتلے په زمکه بانــدے اولفظ دَ نخل مذکر او مؤنث دواړه استعمالیږی دَ دے وجے نه ئے دلته صفت مؤنث ذکر کړو او په سورة قمر ت۲ کښ صفت مذکر ذکر کړے دے. او په دریم ایت کښ دَ دوی یو حال ذکر دَ چه هغه عدم بقاءِ دَ هیڅ یو شخص ده یعنی بیخ کندی ئے او شوه . بَاقِيَةٍ مصدر دے په معنٰی دَ بقاء سره یا اسم فاعل دے صفت دَ موصوف محذوف یعنی نفس باقیة . او دَ دے نه مستثنٰی دی هود علیه السلام او مؤمنان دَ هغه دَ قوم ځکه چه هغوی په کذبت کښ داخل نه وو دَ دے وجے نه په لفظ کښ حرف دَ استثناء ته حاجت نیشته .

س۹ په دے ایت کښ دَ تخویف دنیوی دوه نورے نمونے ذکر کوی قــوم فرعون او قوم لوط (علیه السلام) وَجَآءَ په دے لفظ کښ زیاته مبالغه ده په نسبت دَ اخطاء او کذّب سره . وَمَنْ قَبْلَهٗ تیر شوی مکذبین مراد دی چه دَ هغوی علم دَ الله تعالٰی سره دے یا صرف قوم دَ شعیب علیه السلام مراد دے . وَالْمُؤْتَفِكٰتُ هغه کلی چه اَپوته کړے شو په وخت دَ عذاب کښ لکه چه دَ هغے باره کښ لوستلے شوی دی جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا او دا کلی دَ قــوم دَ لوط علیه السّلام پنځه کلی وو او ابن کثیر دَ دے نه ټول مکذبین مراد کړے دی چه دَ هغوی په اَبادو باندے عذابونه راغلی وو .

بِالْخَاطِئَةِ مصدر دے یا صفت دے دَ فعلةٌ او حصلةٌ . او مراد دَ مفرد نه جنس دے یعنی ډیر گناهونه دَ کفر او شرک او نا ریته استعمالول او نور خبائث دا هغه کارونه دی چه هر دَ عقل خاوند دے ته غلط او خطا وائی . معلومه شوه چه دَ خطاء اطلاق کله په قصداً گناه باندے کیږی .

فَأَخَذَهُمْ أَخْذَةً رَّابِيَةً ﴿۱۰﴾ إِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَآءُ

نو اونیول ئې دوی په نیولو سختو سره. یقیناً موږ کله چه د حد نه تیر شو اوبه

حَمَلْنَاكُمْ فِي الْجَارِيَةِ ﴿۱۱﴾ لِنَجْعَلَهَا لَكُمْ

سواره کړئې موږ تاسو په روانې کشتۍ کښې د دې د پاره چه اوګرځوو دا ستاسو د پاره

تَذْكِرَةً وَتَعِيَهَا أُذُنٌ وَاعِيَةٌ ﴿۱۲﴾

نصیحت او یاد او ساتی دې لره غوږونه یاد وونکی.

سنا دا متعلق دے دَ ټولو مکذبینو سره یعنی عاد، ثمود، فرعون، قوم لوط یا مراد دَ دے نه صرف فرعون او قوم لوط دے او رَسُوْلَ جنس دے مراد دَ دینه ګنړ رسولان دی اشاره ده چه دغه خلقو په تکذیب او په ګناهونو کولو کښې صرف دَ عقل خلاف نه وؤ کړے بلکه دَ نقل او دَ وحی نه هم عاصیان وؤ. فَأَخَذَهُمْ فَا سببیه ده یعنی دغه عصیان سبب اوګرځید دَ پاره دَ عذاب دَ دوی. رَابِيَةً زیات عذاب دَ دوی په نورو عذابونو باندے ځکه دَ دوی جرمونه هم دَ نورو نه زیات وؤ یا رابیه په معنیٰ دَ سخت ده.

سلا سلا. دا بنځمه نمونه دَ عذاب دنیوی ده او اشاره ده عذاب دَ قوم نوح علیه السلام ته، طَغَا الْمَآءُ دَ حد دَ عامو اوبو نه ورتیرے شوے یا ورتیرے شوے دَ قابو کولو دَ ملائکو نه تر دے پورے چه غرونه پکښې پټ شول. حَمَلْنَاكُمْ مراد دَ دے نه اباءکم دے یعنی نوح علیه السلام سرهٔ دَ نورو ملګرو ته لیکن احسان په پلارانو باندے دا په اولاد باندے احسان وی ځکه موجوده انسانانو ته خطاب اوکړے شو. لِنَجْعَلَهَا ضمیر هغه کشتۍ ته راجع دے لیکن په اعتبار دَ امثالو دَ هغه کشتۍ سره، یا دا ضمیر راجع دے دغه واقعے ته یعنی غرق کول دَ منکرینو او نجات دَ مؤمنانو. تَذْكِرَةً په روستنو کشتو سره کشتۍ دَ نوح علیه السلام یا دیږی یا په دغه واقعے سره مسئله دَ توحید یا دیږی او دا رنګ یدے سره عذاب دَ منکرینو او نجات دَ مؤمنانو یادیږی. وَتَعِيَهَا أُذُنٌ وَاعِيَةٌ دا دلیل دے چه ضمیر دَ هَا په مخکښې جمله کښې هم واقعے او قصے ته راجع دے ځکه چه وعی صفت دَ کشتۍ نشی کیدے. وَتَعِيَهَا ماخوذ دے دَ وعی نه او وعی حفظ دَ څیز په نفس کښې او ایعاء حفظ راتلے په بل مخ)

فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ نَفْخَةٌ وَّاحِدَةٌ ﴿١٣﴾

نو کله چه پوکے اوکړیشي په شپیلۍ کښ پوکے یو

وَّحُمِلَتِ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً

او پورته کړیشي زمکه او غرونه نو اوبه ټکولے شي په ټکولو

وَّاحِدَةً ﴿١٤﴾ فَيَوْمَئِذٍ وَّقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴿١٥﴾

په یو ځل نو په دغه ورځ به واقع شي واقع کیدونکے آفت

دَ خیز په لوځ کښ. "أُذُنٌ وَّاعِيَةٌ" هغه غوږ ته وئیلے کیږی چه دَ الله تعالیٰ کلام اوری په هغے ځان پوهه کوی اومحفوظ ئے ساتی اوعمل وربانده کوی. نکره ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو چه نکره دلالت کوی په قلت بانده او "أُذُنٌ وَّاعِيَةٌ" قلیل وی. لیکن دغه لږ دَ الله تعالیٰ په نیز بانده پیشان دَ غټ جماعت وی.

سـ۱۳ تراوسه هیبت اوعظمت دَ قیامت ذکر شو اوس کیفیات او احوال ذکرکوی چه درے قسمه دی. اول قسم حالات دَ فنا دی او هغه اُوه ذکر کوی ترسـ۱۸ (نیم ایت) پورے. په دے سـ۱۳ ایت کښ یو حال ذکر دے چه نفخه وهل دی اومراد دَ دے نه اوله نفخه ده دَ پاره دَ فنا دَ عالم.

"نَفْخَةٌ" دا مؤنث غیرحقیقی دے دَ دے وجے نه فعل ورسره مذکر ذکر کړے دے. "وَّاحِدَةٌ" دا ئے په دے وجه اُوئیل چه په دغه وخت کښ نفخه بیا بیا نه وهلے کیږی هاں څلویښت کاله (په یو روایت کښ دی) روستو به دویمه نفخه وهلے کیږی.

سـ۱۴ په دے کښ دوه حالتونه دَ دوؤ څیزونو (زمکه او غرونه) ذکرکوی پورته کول دَ خپل خپل ځائے نه اوټکیدل اوهموار کیدل دَ یو بل سره.

"دَكَّةً" ماتولو او ټکولو ته وئیلے کیږی او دا رنګ هموارېدلو ته هم وئیلے کیږی یعنی اول به او ټکولے شی بیا به دَ یو بل سره هموار کړے شی نو ټول به یو میدان ښکاری.

سـ۱۵ په دے ایت کښ څلورم حال دے او نوم دَ قیامت ئے په الواقعه سره ایښے دے لکه چه سورة الواقعه کښ تیر شو یدے.

وَانْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَهِيَ يَوْمَئِذٍ وَّاهِيَةٌ ﴿١٦﴾

او اوبه چوی اسمان نو هغه به په دغه ورځ کمزورے وی

وَّالْمَلَكُ عَلٰٓى اَرْجَآئِهَا ؕ وَيَحْمِلُ عَرْشَ

او ملائک به په غاړو دَ هغې ياندے وی۔ او اوچتوی به عرش

رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمٰنِيَةٌ ﴿١٧﴾

دَ رب ستا پورته دَ دوی نه په دغه ورځ اَتهٔ.

په يَوْمَئِذٍ کښې تنوين عوض دے دَ جملې نه يعني يَوْمَ نُفِخَ وَحُمِلَتِ الْاَرْضُ وَالْجِبَالُ وَقَعَتِ الْقِيَامَةُ نو معلومه شوه چه دامخکښې تيرشوی علامات ورځ دَ قيامت اوحالات دَ فنا کيدلو دَ دُنيا وو۔

سلا په دے کښې پنځم اوشپږم حال ذکر دے۔ انشقاق دَ اسمان، او وهي دَ هغې۔ انشقاق نه مراد دَ هغې ټکړے کيدل او شليدل دی او ابن جريج نه روايت دے چه مراد دَ دے نه ډيرے دروازے جوړيدل دی لکه په سورة نبا ١٩ کښې ذکر دی او په دے انشقاق سره به دَ اسمان نه ملائک راکوز شی لکه په سورة فرقان ٢٥ کښې دی او السَّمَآءُ مفرد اسم جنس دے په معنی دَ جمع سره دے وَّاهِيَةٌ کمزورے يعني بخيله به نه شی ټينګيدے۔يا شليدلے او بے کاره به وی.

ﻋ١ په دے کښې اُوم حال ذکر دے چه ملائک به په غاړو دَ اسمان پاندے وی هغه غاړے چه روغے وی۔ او مَلَكُ اسم جنس مراد ترينه ټول ملائک سماويه دی حسن بصری نه نقل دے چه اَرْجَآءِ دروازے دَ اسمان دی او دا حال دَ ملائکو ظاهرًا دلالت کوی چه ملائک اسمانی دَ مرکيدلو نه مستثنیٰ دی دَ سورة زمر ٦٨ او سورة نمل ٨٧ په استثناء کښې داخل دی (والله اعلم)۔ وَيَحْمِلُ عَرْشَ اه دَ دے ځائے نه دويم قسم حالات شروع شو او هغه درے دی اول دا دے، فَوْقَهُمْ دا صريح نص دے چه عرش دَ الله تعالیٰ پورته دے (او هُمْ ضمير ټول مخلوق ته راجع دے) چه په اطراف دَ اسمان پاندے به ولاړ وی. يَوْمَئِذٍ او دَ احاديثو دَ ظاهری الفاظو نه معلوميږی چه اوس هم دَ ملائکو (حملة العرش) دا عدد دے او په دغه ورځ به هم وی. ثَمٰنِيَةٌ اته اشخاص دی او دا دَ احاديث مرفوعه صحيحه نه (پاکے په بل مخ)

يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُونَ لَا تَخْفٰى مِنْكُمْ خَافِيَةٌ ﴿۱۸﴾

په دغه ورځ پیش به کړے شئ تاسو نه پټیږی ستاسو نه هیڅ پټیدونکے

فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ ۙ فَيَقُوْلُ

نو هغه څوک چه ورکړیشی عملنامه د هغه په ښی لاس د هغه کښ نو وائي به

هَآؤُمُ اقْرَءُوْا كِتٰبِيَهْ ﴿۱۹﴾ اِنِّيْ ظَنَنْتُ

واخلئ او لولئ عملنامه زما یقینًا ما عقیده لره

معلومیږی او حدیث د ابوداؤد کښ راغلی دی چه د حملة العرش د ملائکو نه د یو ملك صفت دا دے چه د ترمے د غوږ نه تر اوږے پورے د اووه سوؤ کالو نو مسافت دے - او د ابن عباس رضی الله عنهما موقوف روایت کښ وارد دی چه اته صفونه دی او بل روایت کښ دی اته جنسونه د ملائکو دی (والله اعلم) -

ف۱۸ په دیکښ دوه حالتونه نور ذکرکوی یو عرض او بل عدم خفاء -

تُعْرَضُوْنَ دا عرض د پاره د حساب دے او عرض رب تعالیٰ ته دے په دلیل د سورة کهف ف۴۸ سره - خَافِيَةٌ مراد د دے نه نفس خافیه او خصلت خافیه دے یعنی هیڅ نفس او هیڅ عمل د تاسو نه به نشی پټیدلے بلکه د حساب د پاره به په ډاګه شی -

ف۱۹ د دے ایت نه دریم قسم احوال د قیامت شورو دی چه هغه تقسیم د صحفو دے او تقسیم د خلقو دے دوه قسمونو ته اول قسم اصحاب الیمین او د دوی لس حالات (د بشارت) ذکر کوی. فَيَقُوْلُ الخ یمین په نیز د عربو دلیل د خوشحالئ وی نو دے هم د ډیرے خوشحالئ د وجے نه چه چا ته مخامخ شی نو دا ورته وائي هَآؤُمُ اقْرَءُوْا. هَاؤُم په معنیٰ د راشئ، او نیسئ دے - د کِسائي نه روایت دے چه هاء په معنیٰ د اخستلو دے لکه په حدیث د ابواب الربوا کښ راغلی دی الا هاء وهَاءَ او په وخت د پیوست والی د میم کښ مفرد او تثنیه او جمع یکښ یو شان وی او بل قول دا دے چه د هَاؤُم مجموعه یو کلمه ده چه عرب ئے د خوشحالئ په وخت کښ ذکر کوی - او بل قول دا دے چه هَا د تنبیه د پاره ده

اَنِّىْ مُلٰقٍ حِسَابِيَهْ ﴿۲۰﴾ فَهُوَ فِىْ عِيْشَةٍ

چه زهٔ به مخامخ کیږم دَ خپل حساب سره. نو هغه به په ژوند

رَّاضِيَةٍ ﴿۲۱﴾ فِىْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴿۲۲﴾ قُطُوْفُ

خوشحاله کښې وی په جنت اوچت کښې چه غوږچکو ته

فُهَا دَانِيَةٌ ﴿۲۳﴾ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا هَنِيْٓـئًا بِمَآ

دَ هغې نژدے دی. خورئ او څښئ په خوشحالئ سره په سبب دَ هغه عملونو

او ام امر دے دَ اَمَّ يَؤُمَّ نه په معنیٰ دَ قصد سره. كِتَابِيَهْ منصوب دے په هاؤم يا په اقرؤا سره او هَا په دے کښې دَ سکته دَ پاره ده او په نیز دَ عامو قراؤ صاحبانو دا ها په وصل او وقف دواړو کښې لوستلے کیږی.

سنٹ دا سبب دے دَ نجات او دَ خوشحالئ. يعنی عقیده دَ بعث بعد الموت او ویره دَ حساب نه سبب دَ نجات دے ظَنَنْتُ ظن په معنیٰ دَ یقین دے ځکه چه په ګمان سره عقیده نه ثابتیږی او دَ مجاهد نه روایت دے چه ظن په باره دَ آخرت کښې چه مستعمل شی نو په معنیٰ دَ یقین سره وی او په باره دَ دنیا کښې په معنیٰ دَ شک سره وی او ضحاک وئیلی دی چه ظن په قرآن کښې دَ مؤمن دَ طرف نه یقین دے او دَ کافر دَ طرف نه شک دے.

سلٹ رَّاضِيَةٍ (سوال) راضی خو صاحب دَ هغه ژوند دے نو دَ ژوند په صفت کښې راضیةٌ څه رنګ اُوئیلے شو؟ (جواب) په ډیرو وجوهو سره دے اول دا چه دا اسم فاعل ذوکذا سره مسمّٰی دے لکه لابن او تامر ذو لبن او ذو تمر يعنی عيشةٌ ذات رضًا. دویم دا چه فاعل په معنیٰ دَ مفعول سره دے لکه دافق په معنیٰ دَ مدفوق سره دے يعنی عيشةٌ مرضيةٌ. دریم دا چه دا اسناد مجازی دے يعنی عيشةٌ راضٍ صاحبها لکه په عذاب اليم کښې مشهور قول سره ذکر دی. او خوشحالی دَ هغه ژوند په حدیث صحیح کښې ذکر ده چه دوی باندے مرګ او مرض سختی او غم او بوډا والے نه راځی.

سلٹ ۲۳ عَالِيَةٍ يو معنیٰ دا چه په هغې کښې بنګلے او درجے اوچتے دی لکه په سورة زمر سنٹ کښې او په حدیث صحیح کښې دی چه په رپاتے په بل (

أَسْلَفْتُمْ فِى الْاَيَّامِ الْخَالِيَةِ ﴿۲۴﴾ وَاَمَّا مَنْ

چه لیږلے دی تاسو په ورځو تیرو شوؤ کښې . او هغه څوک چه

اُوْتِىَ كِتٰبَهٗ بِشِمَالِهٖ ۙ فَيَقُوْلُ يٰلَيْتَنِىْ

ورکړے شی عملنامه دَ هغه په کس (کینړ) لاس دَ هغه کښې، نو وائی به هائے ارمان

لَمْ اُوْتَ كِتٰبِيَهْ ﴿۲۵﴾ وَلَمْ اَدْرِ مَا حِسَابِيَهْ ﴿۲۶﴾

چه نه وے راکړے شوے عملنامه زما . او نه پوهیدلے چه څه به وی حساب زما .

جنت کښې نتل درجے دی دَ هر دوه درجو په مینځ کښې دومره فاصله ده لکه په مینځ دَ آسمان او زمکه کښې . دویمه معنیٰ دا چه دَ هغے شان په نفسونو او زړونو کښې اوچت دے . قُطُوْفُ جمع دَ قطف ده هغه میوے چه راټولولے شی . دَانِيَةٌ په هرحالت کښې به نزدے وی ملاست او ناست او اولاړ او تکیه وهونکی ټولو ته به برابر وی لکه په سورۃ رحمٰن ۵۴ کښې دی .

۲۴ دلته يُقَالُ لهم پټ دے او مفعول دَ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا پټ دے دَ پاره دَ تعمیم . هَنِيْٓـًٔا هغه خوراک چه په هغے کښې هیڅ نقصان او ضرر نه وی او فائدے پکښې ډیرے وی . بِمَآ اَسْلَفْتُمْ اه (سوال) په حدیث صحیح کښې راغلی دی چه هیڅوک جنت ته په خپل عمل سره نشی داخلیدلے او په دے ایت کښې عمل ئے سبب گرځولے دے ؟ (جواب) دَ دے تفصیل په سورۃ اعراف ۴۳ کښې تیر شویدے حاصل دا دے چه حقیقی سبب خو رحمت دَ الله تعالیٰ دے او عمل سبب ظاهری دے او قرآن کریم خو اکثر ظاهری او غټ امور بیانوی نو سبب ظاهری ئے ذکر کړو او حدیث کښې خو اکثر حکمتونه او پټ امور ذکر کیږی نو په هغے کښې سببِ خفیّه حقیقیه ذکر کړے دے .

۲۵ سے ۲۶ دا تخویف دے په ذکر دَ احوالو دَ اصحاب الشمال په لنډ طریقو سره . او په دے کښې درے افسوسونه ارمانونه ذکر کوی ځکه چه هغه ورځ دَ حسرت ده . اول افسوس په عملنامه ورکولو باندے ځکه چه هغه به دَ دهٔ دَ ناکاره عملونو نه ډکه وی نو دا افسوس په حقیقت کښې په هغه ناکاره عملونو کولو باندے دے . دویم افسوس په ښکاره کیدلو دَ عاقبت دَ عملونو دے

يٰلَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ ﴿٢٧﴾ مَآ اَغْنٰى عَنِّىْ

هائے ارمان چه دا مرګ وے ختموونکے ما لره - هیڅ فائده رانکړه ما لره

مَالِيَهْ ﴿٢٨﴾ هَلَكَ عَنِّىْ سُلْطٰنِيَهْ ﴿٢٩﴾ خُذُوْهُ

مال زما - برباده شوه زما نه زورآوری زما - او نیسئ دے

فَغُلُّوْهُ ﴿٣٠﴾ ثُمَّ الْجَحِيْمَ صَلُّوْهُ ﴿٣١﴾ ثُمَّ

نو ستی ته ئے طوق واچوئے، بیا په جهنم کښ ورننباسئ دے، بیا

فِىْ سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُوْنَ ذِرَاعًا

په هغه زنځیر کښ چه اوګد والے دَ هغې اوّیا ګزه دے

چه هغې ته حساب وټیلے شوید ے - او دریم افسوس په باره دَ دوباره ژوندی کیدلو کښ دے یعنی ارمان دے چه په مرګ سره دَ ژوند سلسله دَ همیشه دَپاره ختم شوے وے نو دَ هغه خپز تمنا به اوکړی چه په دُنیا کښ ورته دَ هر څه ته بد بنکاره کیدلو -

٢٨ ،٢٩ دا حال دَ مالدار او اقتدار والا دے چه مال او اقتدار دواړه ورله هیڅ فائده ورنکړه مَا نافیه یا استفهام انکار یه دے - سُلْطَانِيَهْ بادشاهی او غلبه په غریبانو باندے په دُنیا کښ یا مراد دَ دے نه حجتونه او دلیلونه دَ شرک او بدعاتو دی چه په هغې باندے اهل باطل په دُنیا کښ دهوکه شوید ی -

٣٠ ،٣١ ،٣٢ پدیکښ ذکر دَ عذاب دَ باطل پرستو دے په ډیر اهانت او تذلیل سره - او په دے کښ يُقَالُ لِلْمَلٰئِكَةِ پټ دے - خُذُوْهُ مراد دَ دے قید کول دی په زور سره - فَغُلُّوْهُ لاسونه او خپے دَ ستی سره تړل یا طوقونه دَ دوی په ستی کښ اچول لکه په سورة غافر ١٧ کښ دی - ثُمَّ الْجَحِيْمَ دا ئے مخکښ ذکر کړو دَ پاره دَ تخصیص یعنی سیوا دَ جحیم نه دَ دوئ بل ځائے نیشته یا دا دَ پاره هیبتِ شان دَ هغې - صَلُّوْهُ دَ صَلْیٌ نه ماخوذ دے په اور کښ دننه کول دَ پاره دَ وریتو لو - سَبْعُوْنَ ذِرَاعًا اندازه دَ ذراع الله تعالیٰ ته معلومه ده او سبعون هم دَ زیاتوالی دَ پاره راپاتے په یل مخ)

فَاسْلُكُوْهُ ﴿٣٢﴾ اِنَّهٗ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ

اوېزان کړئ دهٔ لره . يقيناً دهٔ نه لرلو ايمان په الله تعالیٰ

الْعَظِيْمِ ﴿٣٣﴾ وَلَا يَحُضُّ عَلٰى طَعَامِ

لوئ شان والا باندے او نه ئې ورکوله تيزی په خوراک دَ

الْمِسْكِيْنِ ﴿٣٤﴾ فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هٰهُنَا

مسکين باندے . نو نيشته دهٔ لره نن دلته کښ

استعمالیږی صرف اویا مراد نه دی په دلیل دَ حدیث دَ ترمذی او دَ احمد (چه حسن حدیث دے) چه یوه غټه ټکړه دَ ټانبې به دَ اسمان نه زمکے ته اوغورځولے شی نو دَ شپے نه به مخکښ زمکے ته اورسیږی حال دا دے چه دا مسافت دَ پنځه سوه کالو دے او دا دَ دغه زنځیر دَ یو سر نه ورپریخودے شی نو څلویښت کاله به مزل اوکړی او حال دا چه دَ زنځیر بل سر ته به نه وی رسیدلے . فَاسْلُكُوْهُ سلک هغه تار دے چه دَ مرے (مشکترے) په تنګ سوری کښ په تکلیف سره داخلیږی .

٣٣-٣٤ په دے کښ دوه علتونه دَ عذاب ذکر کوی اول علت حق دَ الله تعالیٰ ضائع کول په کفر او شرک سره که هرقسم شرک وی او په لفظ العظیم (په صفت دَ الله تعالیٰ کښ) سره اشاره ده چه جرم دَ کافر ډیر غټ دے ځکه چه دَ العظیم ذات په حق کښ نقصان کوی او دویم حق دَ بندګانو (مسکینانو) بربادول دی دا وصف دَ کافرانو دے چه هغوی په مسکینانو پورے مسخرے کوی لکه سورة یٰس ۴۷ دارنګ حق دَ مسکین هغه مال دے چه په نوم دَ الله تعالیٰ ورکړے شی او نوم دَ غیرالله پکښ شریک نه وی او مشرک پدا سے طعام باندے تیزی نه ورکوی بلکه هغه په نذر دَ غیرالله او په طعام دَ رسمونو او بدعاتو باندے تیزی ورکوی . وَلَا یَحُضُّ یعنی ځان ته او بل چاته تیزی او ترغیب نه ورکوی او پدے کښ مبالغه ده دَ بخل دَ دوی چه ورکول خو لرے خبره ده ترغیب هم نه ورکوی او دا سے په سورة ماعون ۳ کښ هم دی . طَعَامِ په معنیٰ دَ اطعام سره دے یا اطعام په طور دَ مضاف سره محذوف دے .

حَمِيْمٌ ﴿٣٥﴾ وَّلَا طَعَامٌ اِلَّا مِنْ غِسْلِيْنٍ ﴿٣٦﴾

مخلص دوست ، او نه خوراک مګر د زخمونو د وینو زوۀ نه .

لَّا يَاْكُلُهٗۤ اِلَّا الْخَاطِئُوْنَ ﴿٣٧﴾ فَلَاۤ اُقْسِمُ

نه به خوری هغه مګر ډیر ګنهګاران - نو داسې نه ده ! قسم کوم

بِمَا تُبْصِرُوْنَ ﴿٣٨﴾ وَمَا لَا تُبْصِرُوْنَ ﴿٣٩﴾ اِنَّهٗ

په هغه څه چه تاسو یې وینئ ، او په هغه څه چه تاسو یې نه وینئ ، یقیناً دا

۳۵ ـ ۳۶ ـ ۳۷ دا تفریع ده په علتونو سابقو بانـدے یعنی ضائع کول دَ حقوقو دَ الله تعالیٰ او دَ عبادو سبب دے دَ یواځے والی چه هیڅ دوست به یې پاتے نشی او سبب دے دَ انقطاع د روزئے ـ حَمِیْمٌ هغه دوست قریب چه په وخت دَ تکلیف دَ دوست کښې په هغه باندے ګرمِ دَ غم راځی ـ غِسْلِیْنٍ هغه وینې او اوبه چه بهیږی دَ زخمونو دَ اهلِ نارو نه ـ (سوال) په سورة غاشیه ۷ کښې حصر دَ طعام دَ دوی په ضریع کښې کړے دے او دلته یې حصر په غسلین کښې کړے دے ؟ (جواب) اول دا دے چه ضریع دَ افرادو دَ غسلین نه دے لکه چه قرطبی یو احتمال ذکر کړے دے دویم دا چه دا په اعتبار دَ اقسامو دَ مجرمانو سره جدا جدا حصر کړے دے ـ دریم دا چه دا په اعتبار دَ مختلف اوقاتو سره دے ـ اَلْخَاطِئُوْنَ دا دَ خطیئه نه ماخوذ دے ګناه ته وئیلے شی دَ خطا نه ماخوذ نه دے او الف لام په دے کښې دَ پاره دَ عهد دی نو مراد دَ دینه مشرکان او کافران دی ـ

۳۸ ـ ۳۹ تفسیر دَ قسم په ابتدا دَ سورة یٰس کښې او تفسیر دَ لَآ اُقْسِمُ په سورة واقعه کښې تیر شوے دے او ما تبصرون او ما لا تبصرون ټولو مشاهداتو او مغیباتو ته شامل دی که امور دنیوی دی او که اخروی او که محسوسات دی او که معقولات دی او که اجسام دی او که ارواح بشر دی او که جن وغیره دی ـ او ربط دَ دے دَ ماقبل سره دا دے چه په قیامت باندے دَ یقین کولو دَ پاره ایمان په قرآن باندے ضروری دے او دا رنګ دَ خاطئون (مکذبینو) دَ سوال جواب دے چه هغوی وائی دا قول دَ شاعر یا دَ کاهن دے ـ

او مناسبت دَ دے قسم دَ جواب قسم سره په څو وجوهو سره دَ رپاتے په بل مخ)

لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ ﴿٤٠﴾ وَّمَا هُوَ بِقَوْلِ

خامخا پيغام دے دَ رسول عزت والا ، او نه دے دا ویینا

شَاعِرٍ ۭ قَلِيْلًا مَّا تُؤْمِنُوْنَ ﴿٤١﴾ وَلَا بِقَوْلِ

دَ شاعر . ډیر لږ ایمان راوړئ تاسو ، او نه ده دا ویینا

اوله وجه دا چه دا ټول کائنات ظاهري او معنوي دَ قران په صداقت باندے دلالت کوي چه دا کلام دَ الله تعالیٰ دے دویمه وجه دا چه قران کښ ذکر دے دَ دواړه قسمه څیزونو، محسوسات او مغیبات او دَ هغې احکام ئے بیان کړیدي چه دا کار شاعر او کاهن نشي کولے. دریمه وجه دا ده لکه چه څیزونه دوه قسمونه دي بعض تاسو ته ښکاریږي او بعض ستاسو دَ نظر نه پټ دي لیکن تاسو ئے منئ نو دا رنګ قران وحي ده دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه اګرچه تاسو ته دَ دے کیفیت غائب دے لیکن پکار ده چه تاسو ئے او منئ.
سے دا جواب قسم دے لَقَوْلُ مراد دَ قول نه تلاوت کول دي یا په معنیٰ دَ وحي ده او اضافت دے مفعول ته او مراد دَ رَسُوْلٍ نه رسول بشري دے یعني رسول الله صلی الله علیه وسلم. او په سورة تکویر ۱۹ کښ مراد دَ رسول نه جبرئیل علیه السّلام دے په قرینه دَ روستو صفتونو ذکر کړے شوۇ سره. کریم کرم دَ هر څیز اجتماع دَ کمالاتو لائقو ته وئیلے کیږي چه په هغه کښ وي نو دَ بشریت ټول کمالات په محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم کښ جمع کړے شوے وۇ.
سے سے شعر هغه کلام مقفّیٰ دے چه مقصد پکښ وزن وي او اکثر مشتمل وي په مبالغاتو یا په دروغو باندے او کهانت خبرونه ورکول دَ غیبو دي په دعویٰ دَ علم غیب سره په ذریعه دَ نجومو یا دَ حساب سره او سبب دَ هغې شیاطین وي لکه چه په سورة شعراء کښ ذکر شویدي او په هغې خبرونو کښ اکثر دروغ وي او په دے قران کښ خو ټولے خبرے رشتیا دي او دا رنګ پدے کښ دَ شیطانانو قباحتونه هم ذکر شویدي نو معلومه شوه چه دا قران شعر او کهانت نه دے نو دا نبي شاعر او کاهن نه دے.
قَلِيْلًا مَّا دا مفعول مطلق دے دَ روستو فعل دَ پاره په تقدیر دَ موصوف

كَاهِنٍ ؕ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴿۴۲﴾ تَنزِيلٌ

دَ تیرویتی - ډیر لږ نصیحت اخلئ تاسو - نازل کړے شوید ے

مِّن رَّبِّ الْعٰلَمِينَ ﴿۴۳﴾ وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا

دَ طرف دَ رب دَ عالمینو نه - او که چرے دهٔ جوړ کړے وے په مونږ باندے

بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ ﴿۴۴﴾ لَأَخَذْنَا مِنْهُ

څه خبرے دروغ - نو ضرور نیولے به وُ مونږ دَ دهٔ

سره او ما دَ پاره دَ تاکید دَ قلّت دے او ظرف دے او لږ ایمان نه مراد ایمان لغوی دے چه الله تعالیٰ لره خالق ګڼړی او لږ وخت نه مراد دا چه په سختئ کښې ورته فریاد ونه کوی او دا ایمان شرعی نه دے - (فائده) په اول آیت کښې نفی دَ ایمان او دویم کښې نفی دَ تذکر ذکر کړے ده وجه دا ده چه په کلام دَ شاعر باندے عادةً عقیده او یقین نه حاصلیږی صرف تفریح دَ ذهن ورباندے راځی نو ایمان ورباندے نه حاصلیږی او په خبرو دَ کاهن باندے خلق تصدیق او یقین خو کوی لیکن په هغې کښې تذکیر او نصیحت مقصد نه وی نو دَ هر یو سره ئې دَ هغې مناسب لفظ ذکر کړے دے.

ف۴۳ دا خبر دے دَ مبتدا محذوف، رَبِّ الْعَالَمِينَ په دیکښې اشاره ده چه په دے قرآن سره دَ الله تعالیٰ په ربوبیت باندے ایمان او یقین حاصلیږی او دا رنګ دا دَ ټول عالم دَ پاره کتاب دے په یو قوم او زمانه پورې خاص نه دے.

ف۴۴ ۴۵ ۴۶ ۴۷ په دے کښې هم اثبات دَ صداقت دَ رسول او دَ قرآن دے په بله طریقې سره. بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ دَ بَعْضَ اطلاق په یو باندے هم کیدلے شی او أَقَاوِيلِ لفظ کښې تصغیر او تحقیر دے. لَأَخَذْنَا مِنْهُ بِالْيَمِينِ، أَخَذْ په معنیٰ دَ انتقام دے او مِنْهُ په خپله معنیٰ سره دے او الْيَمِينِ په معنیٰ دَ قوت او قدرت سره دے یا اخذ په معنیٰ دَ قطع سره دے او بَا په بالیمین کښې زیاتی ده او مراد دَ الیمین نه ښے لاس دے لکه چه بادشاهان باغیانو ته سزا ورکوی نو اول ترینه ښے لاس پریکوی بیا ئې دَ مخ نه په سټ باندے اُوهی یا مراد دَ دے نه تړل دَ ښی لاس دی (پاتے به بل مخ)

بِالْيَمِيْنِ ﴿٤٥﴾ ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِيْنَ ﴿٤٦﴾

خو لاس بیا به خامخا پریکړې وې موږ د ده نه رګ د سټ.

فَمَا مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ عَنْهُ حٰجِزِيْنَ ﴿٤٧﴾

نو نه به وې ستاسو نه هیڅوک دهٔ لره بچ کوونکې.

وَاِنَّهٗ لَتَذْكِرَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٨﴾ وَاِنَّا لَنَعْلَمُ

او یقینًا دا (قران) خامخا نصیحت دے د پاره د متقیانو. او یقینًا موږ خامخا پوهیږو

د کارونو کولو نه . اَلْوَتِيْنَ دا نوم د هغه رګ دے چه د سر نه تر زړه پورې رسیدلے دے یا رګ د ملا دے . حٰجِزِيْنَ خبر د ما دے او من احد ئې اسم دے یا منکم خبر دے او حاجزین په حالت د جر کښ صفت د من احد دے او دا عبارت دلالت کوي په استغراق د نفي باندے او حاصل دا دے که چرے دے پیغمبر په الله تعالی باندے یو خبره په دروغه جوړه کړے وے نو الله تعالی به دهٔ لره فی الحال هلاک کړے وے لیکن الله تعالی هغه لره تر مرګه پورے د دا سے هلاکت نه بچ اوساتلو د بدن نه ئې دا سے هیڅ ټکړه نه ده جدا شوے چه په هغې سره ور باندے مرګ راغلے وی او نه د بل چا د لاس نه قتل کړے شو یدے نو معلومه شوه چه دے رښتنے پیغمبر دے او دا طریقه د استدلال خاص ده د پاره د صداقت د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم دا د هر یو دروغژن (دعویدار د نبوت) په باره کښ نه ده د دے وجې نه ضمیر د تقول صرف دهٔ ته راجع کړے دے که چرے دا دلیل عام وے نو دا سے به ئې وئیلے وے چه لَوْ تَقَوَّلَ اَحَدٌ عَلَيْنَا ، نو اعتراض د مرزا غلام محمد قادیانی باطل دے چه هغه وئیلے دی که چرے زهٔ دروغژن وے نو زه به ئې دا سے طریقے سره هلاک کړے وے نو جواب ئې دغه دے چه ذکر کړے شو او د دے وجې نه مسیلمة الکذاب او اسود عنسی دروغژن دعویدار د نبوت وو لیکن هغوی هم په دا سے طریقے سره نه دی هلاک کړے شوی .

ف۴۸ اِنَّهٗ ضمیر راجع دے قران ته یا رسول ته او تخصیص د متقیانو د

أَنَّ مِنكُم مُّكَذِّبِينَ ﴿٤٩﴾ وَإِنَّهُ لَحَسْرَةٌ

چه شته ستاسو نه تکذیب کوؤنکی - او یقیناً دا (قرآن) خامخا افسوس دے

عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿٥٠﴾ وَإِنَّهُ لَحَقُّ الْيَقِينِ ﴿٥١﴾

په کافرانو باندے - او یقیناً دا (قرآن) خامخا یو بن یقینی دے -

فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴿٥٢﴾

نو پاکی وایه د نوم د رب ستا چه لوئے شان والا دے -

دے وجے نه دے چه انتفاع خاص ده په دوی پورے لکه چه په تفسیر دَ هدًی للمتقین کښ تیر شویدی -

۴۹ دا زجر دے روستو دَ اثبات دَ صداقت دَ قرآن نه مِنکُم کښ اشاره ده چه بعض مصدقین دی - وَاِنَّا لَنَعْلَمُ دا علم دَ الله تعالیٰ مخکښ دَ انزال دَ قرآن او روستو دَ هغے نه په دواړه حالتونو کښ یو شان دے -

۵۰ ۵۱ وَاِنَّهٗ ضمیر راجع دے تکذیب ته او حسرة په معنیٰ دَ پښیمانتیا سره دے یا ضمیر قرآن ته راجع دے یعنی هر کله چه ثوابونه دَ قرآن والو په ورځ دَ قیامت کښ اُوینی نو ارمانونه به اوکړی لکه په سورة انعام ۲۷ کښ او سورة حجر ۲ کښ - وَاِنَّهٗ لَحَقُّ الْیَقِیْنِ، دا ضمیر راجع دے قرآن ته یا حسرة ته په معنیٰ دَ تحسّر سره - لَحق الیقین په دیکښ اضافت دَ صفت دے موصوف ته یعنی امر یقینی واقعی، او ثابت دے - او په دے قید کښ فائده دا ده چه بعض وخت دَ انسان یقین راشی په باطل څیز باندے نو هغه ته حق الیقین نشی وئیلے کیدے او دا مرتبه دَ علم الیقین نه اوچته او دَ عین الیقین نه کوزه ده -

۵۲ دا سے تیر شویدے په سورة واقعه ۷۴ ۹۶ کښ او بآ په باسم کښ زیاتی دَ پاره دَ تاکید دَ او مراد دَ اسم نه جنس اسماء حسنیٰ او صفات دَ الله تعالیٰ دی یعنی دَ الله تعالیٰ دَ اسماء او صفتونو تنزیه او پاکی وئیل دَ هر شریک او هر قسم عیبونو نه فرض ده او دا دعوے توحید تفریع ده په اثبات دَ صداقت دَ رسول او دَ قرآن باندے اشاره ده چه مقصد دَ قرآن او رسالت صرف توحید دے -

ختم شو تفسیر دَ سورة الحاقة په حمد دَ الله تعالیٰ سره -

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة المعارج

**ربط دَ دے سورت** دَ مخکښې سورت سره په ډیرو وجو سره دے اوله وجه داده چه په هغه سورت کښې ذکر شو عظمتِ شان دَ عذاب دَ قیامت نو په دے سورت کښې زجر دے په هغه چا باندے چه سوال کوی دَ دغه عذاب په باره کښې. دویمه وجه داده چه په هغه سورت کښې اوصاف دَ منکرینو ذکر کړل نو په دے سورت کښې اوصاف دَ مؤمنانو ذکر کوی۔ دریمه وجه داده چه په هغه سورت کښې بعضِ علتونه دَ عذاب ذکر کړے دی نو په دے سورت کښې نور علتونه ذکر کوی۔

**دعویٰ دَ سورت** زجر دے منکرینو ته او تخویفِ اخروی دے په ذکر دَ احوالو دَ قیامت او بشارت دے په نجات سره په ذکر دَ اوصافو دَ مؤمنینو سره۔

**خلاصه دَ سورت** اول زجر دے په استهزاء دَ عذاب سره، سره دَ ذکر دَ عظمت دَ عذاب نه په پنځه طریقو سره او تسلی ده تر ۵ پورے او ذکر دَ پنځه احوالو دَ قیامت تر ۱۱ پورے دے بیا ذکر دَ فدیه ورکولو دے په پنځه څیزونو سره تر ۱۴ پورے بیا ذکر دَ هیبتِ شان دَ اور دَ جهنم او اوصاف دَ اور والو چه مجموعه لس دی تر ۲۱ پورے بیا ذکر دَ لس صفاتو دَ مؤحدینو دے سره دَ بشارت نه تر ۳۵ پورے بیا زجر دے سره دَ ذکر دَ پنځه حالاتو دَ منکرینو نه تر ۴۲ پورے او اختتام دَ سورت دے په تخویفِ اخروی سره په پنځه حالاتو سره۔

**تفسیر ۱ ـ ۲** دا زجر دے په استعجال دَ عذاب سره لکه په سورة حج

لَيْسَ لَهٗ دَافِعٌ ﴿٢﴾ مِّنَ اللّٰهِ ذِي الْمَعَارِجِ ﴿٣﴾

چه نیشته هغې لره هیڅوك اړونكے، دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه چه اسمانونو والا دے ،

تَعْرُجُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ اِلَيْهِ فِيْ يَوْمٍ

ورخیږی ملائیک او روح هغه ته په ورځ کښې

كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ ﴿٤﴾

چه دے مقدار (اندازه) دَ هغې پنځوس زره کلونه ۔

سے او سورۃ انفال سے کښې اودَ سوال نه مراد دُعا غوختل دی په قرینه دَ دغه دوه ایاتونو سره او په قرینه دَ حرف بآء (ربحذا پ کښې) سره. سَآئِلٌ نکره کښې اشاره ده چه هرځوک چه دا سوال کوی نو لایق دَ زجر دے وَاقِعٍ یقینی راتلونکے دے یا تیار دے ۔ لِّلْكٰفِرِيْنَ متعلق دے په محذوف پورے یعنی خاص لهم یا متعلق دے په واقع پورے چه په معنی دَ تیار سره واخستلے شی. یا متعلق دے په سائل پورے ۔ دا دَ عذاب پنځه احوال ذکر شول.عذاب، واقع ، للكافرين، ليس له دافع ، من الله ۔

سے متعلق دے په سأل یا په واقع پورے یا متعلق دے په دافع پورے. الْمَعَارِجِ مفسرینو ډیر اقوال ذکر کړے دی ۱ اسمانونه ۲ مراتب دَملائکو ۳ لوئے درجات ۴ لوئے انعامات دَ الله تعالیٰ ۵ عظمت او اوچت والے۔

سے وَالرُّوْحُ دا عطف خاص دے په عام باندے اومراد دَ دے جبرئیل علیه السلام دے او دا مشهور قول دے یا مراد دَ دے نه ارواح دَ مړو دی (دَ نیکانو) چه اُوم اسمان ته ورخیژی ۔ فِيْ يَوْمٍ دا متعلق دے دَ تعرج سره یا متعلق دے دَ واقع سره. خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ په اول توجیه سره دا مقدار دَ وخت دَ عروج دَ ملائکو دے دَ اسفل سافلین نه تر عرش عظیم پورے دا قول ابن کثیر دَ ابن ابی شیبه نه نقل کړے دے او په سورۃ سجده سے کښې (چه مقدار دَ عروج مراد وی) نو هغه دَ دے زمکے نه تر اول اسمان پورے مقدار دَ عروج دے او په دویم توجیه سره دا مقدار دَ ورځ دَ قیامت دے او دا منقول دے دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه او دا مقدار په کتاب الزکوٰۃ کښې مسلم او (رپاتے په بل مخ)

فَاصْبِرْ صَبْرًا جَمِيلًا ﴿۵﴾ إِنَّهُمْ يَرَوْنَهُ

تو صبر کوه صبر ښائسته - یقیناً دوی وینی دا

بَعِيدًا ﴿۶﴾ وَنَرَاهُ قَرِيبًا ﴿۷﴾ يَوْمَ تَكُونُ

لرې او وينو مونږ دا نزدې - په کومه ورځ چه شي به

السَّمَاءُ كَالْمُهْلِ ﴿۸﴾ وَتَكُونُ الْجِبَالُ

اسمان پشان د تانبې ویلې کړې شوې او شي به غرونه

كَالْعِهْنِ ﴿۹﴾ وَلَا يَسْأَلُ حَمِيمٌ حَمِيمًا ﴿۱۰﴾

پشان د رنګينې ورېځې - او تپوس به نشي کولې يو دوست د بل دوست نه -

ابوداؤد او نسائي په حديث صحيح مرفوع کښ ذکر کړې دے او په سورة سجده ۵ کښ (چه مقدار د ورځ د قيامت مراد شي) نو تطبيق دا دے چه د ورځ د قيامت پنځوس مقامات دي او هر مقام زر کاله دے او داخطيب شربيني په السراج المنير کښ د يمان نه نقل کړے دے. او په دے کښ دوه قولونه نور هم شته ليکن ضعيف دي.

۵ دا تسلي ده او متعلق ده د سأل سره يعني د اسوال د دوی په طريقه د استهزاء سره دے نو د هغې په مقابله کښ صبر پکار دے.

صَبْرًا جَمِيلًا هغه صبر دے چه په هغې کښ مخلوق ته شکوه نه وي نو مخلوق ته نه معلوميږي چه خاوند د مصيبت څوک دے او دا خُلق حسن دے د جهاد او قتال سره ئې منافات نيشته نو دا امر منسوخ نه دے.

۶ ۷ بَعِيدًا مراد د دے نه د عقل نه لرے والے دے يعني انکار کوي د قيامت نه يا د زمانے لرے والے د او قَرِيب نه مراد د عقل سره مناسب يا د زمانے په لحاظ سره نزدے دے ځکه چه هر راتلونکے قريب وي.

۸ ۹ ۱۰ يَوْمَ متعلق دے په نراه پورے او دا اهوال (هيبتونه) د قيامت دي. السَّمَاءُ مراد د دے نه ټول اسمانونه دي الْمُهْلِ د ګرم تيلو ويخ (خيرې) او تانبه ويلې کړے شوې. او وينې زوې د زخمونو. دا سے په سورة کهف ۲۹ او سورة دخان ۴۵ کښ هم تير شويدي. كَالْعِهْنِ هغه وړئ چه

يُّبَصَّرُوْنَهُمْ ۭ يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِيْ

توَل به خو دے کیږی دوی ته - ارمان به کوی مجرم چه فدیه ورکړی

مِنْ عَذَابِ يَوْمِىٕذٍۭ بِبَنِيْهِ ⑪ وَ

دَ عذاب دَ دغه ورځ نه په ځامنو خپلو سره ، او

صَاحِبَتِهٖ وَاَخِيْهِ ⑫ وَفَصِيْلَتِهِ الَّتِيْ

په ښځې خپلې سره او په ورور خپل ، او په خاندان خپل هغه چه

تُـْٔوِيْهِ ⑬ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ۙ ثُمَّ

دهٔ لره یې ځائے ورکوؤ ، او هغه څوک چه په زمکه کښې دی ټول ، بیا

مشتمل وی په ډیر رنګونو باندے نوغرونه هم مختلف رنګونو والا دی نو په وخت دَ فنا به دَ رنګینئ وړے پشان شی -

وَلَا يَسْـَٔلُ حَمِيْمٌ حَمِيْمًا یعنی هر انسان به په خپل ځان باندے مشغول وی نو دَ بل دَ حال تپوس کولو ته په فراغت نه موقع او دا رنګ دوستانے به هم منقطع شی لکه سورة زخرف ٦٧ او دا رنګ په سورة المؤمنون ١٠١ کښې او سورة عبس ٣٤ کښې هم دی -

١١ يُّبَصَّرُوْنَهُمْ ضمیر دَ نائب فاعل او مفعول دواړه کافرانو ته راجع دی او په دیکښې ډیر هیبتِ شان ته اشارة ده یعنی دا دوستان به یو بل ته ګوری او حال دا چه دَ یو بل تپوس به نه شی کولے - یا ضمیر دَ نائب فاعل راجع دے مؤمنانو ته او ضمیر مفعول راجع دے کافرانو ته یا ضمیر اول تابعدارانو ته راجع دے او دویم ضمیر متبوعینو ته راجع دے زیچه تابعداری ئے په ګناهونو کښې کړے وی) - لَوْ يَفْتَدِيْ دَ عذاب نه فدیه ورکوی دَ پاره دَ بچ کیدلو او هر کله چه بچ کیدلو کښې تلوار ر تادی کول) مقصود وی نو اول به په فدیه کښې ځامن پیش کوی چه هغه ډیر محبوب او قریب دی نو اَعَزُّ الخ او اَقْرَبَ فَالْاَقْرَبَ په ترتیب سره ذکر کوی -

١٢ ١٣ ١٤ انسان طبعی طور سره عار ګنړی چه خپله ښځه په فدیه کښې ورکړی لیکن دَ قیامت سختی دومره زیاته ده چه مجبوراً به خپله ښځه (باقے په بل مخ)

يُنْجِيْهِ ⑭ كَلَّا ؕ اِنَّهَا لَظٰى ⑮ نَزَّاعَةً

بچ کړی خپل ځان لره. هیچیرے نشی کیدے۔ یقیناً دا اُور لمبے دی ، راخکونکے دے

لِّلشَّوٰى ⑯ تَدْعُوْا مَنْ اَدْبَرَ وَتَوَلّٰى ⑰

څرمن د انداموتو لره۔ آواز به کوی هغه چاته چه شا کړیده او مخ ئے گرځولے دے

وَجَمَعَ فَاَوْعٰى ⑱ اِنَّ الْاِنْسَانَ خُلِقَ

او مال ئے جمع کړیوؤ نو په لوخوکښ ئے کیخودلے وؤ۔ یقیناً انسان پیدا کړے شوید ے

هم قد په کښ ورکوی وَاَخِيْهِ رور هم سبب دَ نصرت دے دَ سختۍ په وخت کښ۔ وَفَصِيْلَتِهِ فصیله په اصل کښ ټکړے دَ بدن ته وئیلے شی او مراد ترینه نزدے خاندان دے یا مراد ترینه مورده وَمَنْ فِي الْاَرْضِ په دے کښ قبیلے او دوستان ټول داخل دی۔ ثُمَّ يُنْجِيْهِ دا معطوف دے په یفتدی باندے او دلالت کوی په جواب دَ یودُّ باندے یعنی فیفیده الافتداء لکه وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُوْنَ کښ جواب په فاء سره دے.

۱۵ تا ۱۶ كَلَّا ردعیه دے په دیکښ انکار دَ نجات دے لَظٰى هغه اور چه دَ هغے لمبے ډیرے او تیزے وی او دا دَ جهنم دَ یو طبقے نوم دے. نَزَّاعَةً منصوب دے په حالیت سره یا په اختصاص سره لِلشَّوٰى جمع دَ شواة ده لاس او خپے او سر او څرمنے او پلے او پیوند و توته وئیلے کیږی نو شامل دے ټول بدن ته.

۱۷ تا ۱۸ تَدْعُوْا دُعاء په معنٰی دَ آواز کولو سره مشهور معنٰی ده او په معنٰی دَ هلاکولو سره هم کیدیشی۔ اَدْبَرَ وَتَوَلّٰى فرق په مینځ دَ دواړو کښ په ډیرو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه ادبار په شا گرځولو او تولّی په مخ اړولو سره دے۔ دویمه وجه ادبار په زړه سره او تولی په عمل سره۔ دریمه وجه ادبار په گناه کښ مشغول کیدل او تولی دَ اطاعت نه اعراض کول دی۔ څلورمه وجه ادبار دَ توحید دَ آوریدلو نه شا گرځول لکه په سورة اسراء ۴۶ کښ او تولی دَ رسول او دَ قرآن نه مخ اړول لکه سورة نساء ۶۱ او سورة نور ۴۸ کښ. وَجَمَعَ مراد دا چه توجه دَ ده صرف مالونه دَ دُنیا او دَ هغے جمع کولو ته ده چه ډیر شی لکه په سورة همزه ۲ کښ. فَاَوْعٰى په لوخی کښ کیخودل اشاره ده خزانه کول او دَ الله تعالٰی په لار کښ نه خرچ کول یعنی حریص دَ دنیا او بخیل هم دے۔

هَلُوْعًا ﴿۱۹﴾ اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوْعًا ﴿۲۰﴾ وَّاِذَا مَسَّهُ

ډیر حرصناک ، کله چه او رسیږی ده ته مصیبت نو فریاد ونه کوی ، او کله چه او رسیږی ده ته

الْخَيْرُ مَنُوْعًا ﴿۲۱﴾ اِلَّا الْمُصَلِّيْنَ ﴿۲۲﴾ الَّذِيْنَ

خیر نو منع کول کوی ، لیکن مونځ گذاران ، هغه کسان چه

هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ دَآئِمُوْنَ ﴿۲۳﴾ وَالَّذِيْنَ

هغوی په خپلو مونځونو باندے همیشوالے کوی ، او هغه کسان

۱۹ تا ۲۱ دا نور صفاتِ قبیحه دَ اهل نار دی خُلِقَ اشاره ده چه دا صفات په دے انسان کښ طبعی او خلقی دی او مراد دَ انسان نه کافر دے په قرینه دَ اِلَّا الْمُصَلِّيْنَ سره . هَلُوْعًا دَ هلع نه دے سخت حرص او سپک والی ته وئیلے شی چه په حالت دَ خیر او دَ شر کښ نامناسبه کارونه کوی او دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه یو روایت دے چه تفسیر دَ هلوع روستو دواړه آیاتونو کښ دے . جَزُوْعًا په تکلیف او غم او ماتم کښ هر وخت فریاد ونه او ژړا کانے کوی هیڅ صبر او شکر دواړه پکښ نیشته او ایمان خو عبارت دے دَ صبر او شکر نه .

۲۲ دا صفتونه په مقابله دَ تیرشوے ناکاره صفتونو کښ دی او هر کله چه صلوٰة مشتمل دے په توحید قولی او عملی باندے او دا رنګ صلوٰة سبب دَ فرق دے په مینځ دَ کفر او دَ ایمان کښ دَ دے وجے نه دا ئے اول ذکر کړو .

(سوال) په مقام دَ مدح کښ دَ صلوٰة سره اقامت ذکر کیږی او دلته نه دے ذکر کړے ؟

(جواب) دلته په مابعد صفتونو کښ معنیٰ دَ اقامة الصلوٰة ذکر کړے شوی ده دَ دے وجے په طور دَ مدح سره ذکر شوی دے .

۲۳ دوام په معنیٰ دَ همیش والی دے یعنی هیڅ وخت ئے نه قضا کوی هر مونځ په خپل وخت کښ کوی او دَ دوام معنیٰ په سکون سره هم کړے شوی ده یعنی چه په مونځ کښ بے ځایه حرکتونه نه کوی .

فِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ ﴿۲۴﴾ لِّلسَّآئِلِ

چه په مالونو دَ دوی کښې حصه ده مقرر ، دَپاره دَ غوښتونکی

وَالْمَحْرُوْمِ ﴿۲۵﴾ وَالَّذِيْنَ يُصَدِّقُوْنَ

او دَ بے نصيبه ، او هغه کسان چه تصديق کوی

بِيَوْمِ الدِّيْنِ ﴿۲۶﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ مِّنْ عَذَابِ

دَ ورځ دَ جزاء ، او هغه کسان چه دوی دَ عذاب

۲۴ ۲۵ دَ عبادتِ بدنيه نه روستو عبادتِ ماليه ذکر کوی۔ مَّعْلُوْمٌ مراد دَ دے نه تقرر شرعی دے يرا بره خبره ده که فرض وی اوکه واجب وی په حقوق الله کښې وی اوکه په حقوق العباد کښې وی نو دا عام دے۔

سَآئِلِ هغه دے چه خپل حاجت ښکاره کوی او مَحْرُوْمِ هغه دے چه حاجت نه ښکاره کوی نو اکثر محروم ته ورکيدل نشی کيدلے۔ او داسے په سورة ذاريات ۱۹ کښې هم تير شويدی۔ په سورة ذاريات کښې صرف حق ذکر کړے دے نو نفلی صدقاتو ته شامل دے او دلته ورسره معلوم ذکر کړے نو مراد هغه دی چه په شرع کښې واجب وی او هر کله چه په واجب کښې ډير اهتمام پکار دے دَ دے وجے نه حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ ئے دَ السَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ نه په جدا ايت کښې ذکر کړے دے۔

۲۶ تصديق دَ ورځ دَ جزا مستلزم دے چه نيک اعمال کوی دَپاره دَ تيارئے دَ ورځ دَ قيامت او دا رنګ دا صفت مستلزم دے اخلاص لره په عباداتِ بدنيه او ماليه کښې دَ دے وجے نه دَ هغے عبادتونو نه ئے روستو ذکر کړو۔

او تصديق دَ يقين نه عام دے يعنی په خپله هم په قيامت باندے عقيده ساتی او چه څوک ورله دَ هغے په باره کښې خبر ورکړی نو هم اٰمَنَّا او صَدَّقْنَا وائی او يقين خو صرف عقيدے لره وئيلے کيږی۔

رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ﴿۲۷﴾ اِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمْ

دَ رب خپل نه ویره کوونکی دی ۔ یقینًا دَ عذاب دَ رب دَ دوی نه

غَيْرُ مَاْمُوْنٍ ﴿۲۸﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ

څوک په امن کښې (بې یرې) نه دئ. او هغه کسان چه دَ خپلو عورتونو (دَ پردې ځایونو)

حٰفِظُوْنَ ﴿۲۹﴾ اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ

ساتنه کوی ، مگر په بیبیانو خپلو باندې او په وینځو

اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ ﴿۳۰﴾

خپلو باندې یقینًا دوی نه دی ملامته کړې شوی ۔

فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ

نو چا چه اولټوو سیوا دَ دې نه نو دغه کسان

س۲۷ س۲۸ مخکنی صفت کښې اشاره وه طاعات کولو ته دَ وجې دَ یقین دَ ورځ دَ قیامت نه او په دې صفت کښې اشاره ده اجتناب دَ معاصی ته دَ وجې دَ ویرې دَ عذاب نه۔ مُشْفِقُوْنَ هغه خوف چه اثر ئې په ظاهر باندې ښکاره کیږی او داسې خوف چه مستلزم وی رغبت لره۔

اِنَّ عَذَابَ الخ دا علت دَ ماقبل دې یعنی هیچ چا لره مناسب نه دی چه دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه بې غمه او بې فکره شی دَ وجې دَ طاعتونو خپلو نه ځکه چه الله تعالیٰ باندې دَ چا دَ طاعت کولو احسان نه راځی۔ هاں دَ عذاب الٰهی نه بې فکری خو دَ خاسرینو کار دې لکه سورة اعراف س۹۹ کښې ذکر شوی دی۔

س۲۹ تر س۳۱ دَ دې صفت او دَ استثناء تفصیل په سورة المؤمنون س۵ کښې ذکر کړې شوې دې۔ مخکښې دَ زړه اعمال ذکر شول یعنی تصدیق او اشفاق او س دَ فرج عمل (حفاظت) ذکر کوی او حفاظت عام دې پرده کولو او دَ بد کارئ نه بچ کولو ته شامل دې۔ او مَامَلَکَت ئې په ازواج باندې عطف کړی دې دلیل دې چه دَ خپلې وینځې (مملوکې) ریاتې په بل مخ)

هُمُ الْعٰدُوْنَ ﴿۳۱﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ

دوی دَ حد نه تیرو تونکی دی۔ او هغه کسان چه دوی دَ امانتونو خپلو

وَعَهْدِهِمْ رٰعُوْنَ ﴿۳۲﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ

او لوظونو خپلو لحاظ کوؤنکی دی، او هغه کسان چه دوی

بِشَهٰدٰتِهِمْ قَآئِمُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ

په شهادتونو (گواهو) خپلو کلک ولاړ دی۔ او هغه کسان چه دوی

عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ﴿۳۴﴾ اُولٰٓئِكَ

په مونځونو خپلو باندے ساتنه کوؤنکے دی۔ دغه کسان به

سره دَ نکاح کولو نه بغیر فائده اخستل جائز دی۔ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ یعنی په دوی باندے شرعًا هم ملامتیا اوگناه نیشته او عادةً هم نیشته۔
وَرَآءَ ذٰلِكَ په دیکښ هره شهوت رانی چه بغیر دَ نکاح شرعی او دَ مملوکیت نه وی هغه داخل ده۔ زنا کول دَ نارینو استعمال کول متعه کول شغار کول وغیره۔ الْعٰدُوْنَ دَ عدوان نه ماخوذ دے۔
سٓ۳۲ داسے په سورة مؤمنون کښ تیر شوید ے هر کله چه قوتِ شهوانیه یو امانت دے او نکاح یو عهد دے نو اوس په طریقه دَ عموم سره حکم دَ امانت او عهد ذکر کوی۔ اَمٰنٰتِ هره ذمه داری چه په انسان باندے عائد کړے شی که دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه وی یا دَ طرف دَ مخلوق نه وی هغے ته امانت وئیلے کیږی۔ او هر عقد او خبره چه جانبین په هغے باندے پابند کړے شی نو هغے ته عهد وئیلے کیږی۔ که عهود دَ الله تعالیٰ دی او که عهود دَ بندګانو وی۔
سٓ۳۳ شهادات جمع ده نو شامل دے شهادت دَ توحید او دَ رسالت ته او دا رنګ ګواهی په حقوقو دَ بندګانو کښ صحیح ادا کوی چه دَ خپل او پردی وغیره رعایت پکښ نه کوی او کمے زیاتے پکښ نه کوی او کتمان دَ هغے نه کوی۔
او دا عبادتِ لسانیه دے یعنی لکه چه فرج محفوظ ساتی او امانت او عهد محفوظ ساتی نو دا رنګ ژبه دَ دروغو نه بچ ساتی۔
سٓ۳۴ محافظه دَ صلوة نه مراد دا دے چه دَ هغے دَ ټولو شرطونو او ارکانو په شرعی

فِىْ جَنّٰتٍ مُّكْرَمُوْنَ ﴿۳۵﴾ فَمَالِ الَّذِيْنَ

په جنتونو کښې عزتمند وی . نو څه وجه ده هغه کسانو لره

كَفَرُوْا قِبَلَكَ مُهْطِعِيْنَ ﴿۳۶﴾ عَنِ الْيَمِيْنِ

چه کافران دی چه ستا طرف ته دا ز غلی ، دَ ښي طرف

وَعَنِ الشِّمَالِ عِزِيْنَ ﴿۳۷﴾ اَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ

او ګس (چپ) طرف ته ډلے ډلے دی . آیا طمع کوی هر سړے

طریقے سره ادائیږی اوکړی اودس پوره کول سنن اداب واجبات پوره اداکول او دَ مفسداتو مکروهاتو نه موځ بچ ساتل دا ټول پکښې داخل دی دَ دے صفتونو په اول او اخر دواړو کښې ذکر دَ صلوٰة اوکړیشو اشاره ده چه په ایمان پسے ډیر اهم کار صلوٰة دے چه مؤمن په صلوٰة سره اوده کیږی (موځ دَ ماسخوتن) او په مانځه سره بیداریږی (موځ دَ صبا) دَ ورځے شورو په موځ سره ده او اختتام دَ ورځے په موځ سره (موځ دَ مازیګر) دے او دَ شپے شورو هم په مانځه سره ده (موځ دَ ماښام) او دَ شپے په انتها کښې پاسیدل تکلیف وو په امت باندے نو موځ دَ ماسخوتن دَ هغے په ځائے باندے قائم کړیشو او موځ دَ ماسپخین په داسے وخت کښې دے چه دَ ورځے دَ نصف اول انتهاء ده او دَ نصف ثانی ابتداده.

۳۵ دا بشارت دے په سبب دَ دغه صفتونو سره جَنّٰتٍ ئے جمع او نکره ذکر کړه اشاره ده کثرت دَ هغے ته او نا اشنا نعمتونو ته. مُكْرَمُوْنَ اسم مفعول صیغه اشاره ده چه دَ دوی کرامت به دَ الله تعالیٰ او دَ ملائکو دَ طرف نه او په کور نئے کښې په هر وخت کښې وی او دا کرامت حقیقیه دَ ئے چه روستو دَ مرګ نه ملاویږی لکه سورة یٰس ۲۷ کښې.

۳۶ ۳۷ په دے کښې زجر دے منکرینو ته روستو دَ حال دَ مؤمنینو نه په ذکر دَ پنځه حالتونو دَ هغوی سره. مُهْطِعِيْنَ منډے وهونکی، نیغ نیغ نظر کوونکی تا ته، قصد کوونکی، مخ اړوونکی ستا نه دا ټول معانی دلته صحیح دی. عِزِيْنَ ډلے ډلے کیدونکی، یعنی په اراده دَ استماع او په توجه سره نه کینی بلکه په اراده دَ استهزاء او مسخرے کولو (پاتے په بل مخ)

مِّنْهُمْ اَنْ يُّدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيْمٍ ﴿۳۸﴾ كَلَّا ؕ

دَ دوی نه دا چه داخل به کړی شی جنت دَ نعمتونو ته هیچرے داسے نشی کیدے

اِنَّا خَلَقْنٰهُمْ مِّمَّا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۹﴾ فَلَآ اُقْسِمُ

یقیناً مونږ پیدا کړیدی دوی دَ هغه څیز نه چه دوی ئے پیژنی . نو داسے نه ده قسم کوؤم

بِرَبِّ الْمَشٰرِقِ وَالْمَغٰرِبِ اِنَّا لَقٰدِرُوْنَ ﴿۴۰﴾

په رب دَ مشرقونو او مغربونو باندے یقیناً مونږ خامخا قدرت والا یو.

سره کینی. په توجه سره کیناستل داسے وی چه په صفونو سره کینی لکه چه په حدیث دَ مسلم کښ راغلی دی چه صحابه کرام یو کرت ډلے ډلے ناست وو نو نبی صلی الله علیه وسلم ورته زور نه اوکړه او فرمائیل ئے مَالِیَ اَرَاکُمْ عِزِیْنَ او په صفونو باندے ولے نه کینئ په شان دَ صفونو دَ ملائکو. او حلقه که جوړه وی نو هم معلم (استاد) ته مخامخ چاپیره به ناست وی لکه چه دا هم طریقه دَ صحابه کرامو وه په وخت دَ درس دَ هغوی کښ. او چه مخ ته نه کینی یو اړخ بل اړخ ته کینی نو دا استهزاء ده په داسے طریقے سره علمی فائده نه حاصلیږی.

۳۸ ۳۹ طمع دینه وائی چه یو څیز غواړی او هیڅ اسباب ورسره نه وی یا اسباب ورسره وی لیکن هغے ته اعتبار نه ورکوی اوله طریقه دَ جنت په باره کښ دَ مشرکانو ده او دویمه طریقه دَ ایمان والو ده لکه چه په سورة مائده ۵۸ کښ ذکر ده. اِنَّا خَلَقْنَاهُمْ یعنی دا قول دَ دوی دلالت کوی چه دوی دَ ډیر زور دعویٰ کوی لیکن دَ دوی هیڅ زور نیشته دَ دوی ماده دَ خلقت چه نطفه ده هغه کمزورے ده او په دے خلقت کښ دوی دَ نورو انسانانو سره برابر دی نو ولے لوئی کوی.

۴۰ اَلْمَشَارِقِ وَالْمَغَارِبِ دَ نمر او سپوږمے او دَ هر ستوری دَ پاره جدا جدا مشرق او مغرب دے یا دَ نمر او دَ سپوږمے دَ پاره په خپلو منزلونو کښ مشرق او مغرب دے دَ دے وجے نه جمع ئے ذکر کړیده.

خَيْرًا مِّنْهُمْ غوره په بدلونو کښ، نو اشاره ده بعث بعد الموت ته یعنی الله تعالیٰ قادر دے چه نوے او غټ بدلونه دَ دوی جوړ کړی نو دَ دوی

عَلٰٓى اَنْ نُّبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ ۙ وَمَا نَحْنُ

په دې خبره چه بدل کړو راولو غوره د دوی نه او نه یو مونږ

بِمَسْبُوْقِيْنَ ﴿۴۱﴾ فَذَرْهُمْ يَخُوْضُوْا

کمزوری - نو پریږده دوی چه عیشی خبرې کوی

وَيَلْعَبُوْا حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِىْ

او لوبې کوی ترڅو پورې چه مخامخ به شی د هغه ورځ سره چه دوی

يُوْعَدُوْنَ ﴿۴۲﴾ يَوْمَ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْاَجْدَاثِ

سره یې وعده کیده شی، په هغه ورځ چه دوی به راوځی د قبرونو نه

په دوباره ژوند بانديې هم قدرت لری - یا نبدیلی په اعتبار د غوره وصف سره ده یعنی د دې کافرانو په ځائې به طاعت کوونکی پیدا کړی لکه چه سورة محمد سـ۳۸ کښې ذکر دی نو د هغه منکرینو په ځائے یې صحابه او تابعین پیدا کړل او هرکله چه بدنو نه د انسانانو دیر دی او هر یو لره فنا کولے شی (لکه د غروب پشان) او هر یو لره پیدا کولے شی (لکه د طلوع پشان) نو د دې وجې نه دلته یې مشارق او مغارب هم جمع ذکر کړل۔

سـ۴۲ په دې کښې تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته او د تخویف د پاره پنځه احوال د قیامت ذکر کوی او د پریخودلو نه مقصد دا دے چه خپل کار جاری سا ته د دوی د تکذیب پرواه مه کوه. يَخُوْضُوْا په دین اسلام بانديې (توحید، رسالت، صحابه کرامو) بانديې اعتراضونه کول او اهل حق باندې طعنونه کول خوض دے ۔

وَيَلْعَبُوْا د دنیا په محبت کښې مشغول کیدل لعب دے ۔ يَوْمَهُمُ یعنی یوم عذابهم او یوم لقائهم مضاف محذوف دے ۔

سِرَاعًا كَاَنَّهُمْ اِلٰى نُصُبٍ يُّوْفِضُوْنَ ﴿۴۳﴾

په تادئ سره گویا که دوی خپلو معبودانو ته ورزغلی -

خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ؕ ذٰلِكَ

کوزې به وی سترگې د دوی پټوی به دوی لره ذلت (رسوائي) - دا

الْيَوْمُ الَّذِىْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ﴿۴۴﴾

ورځ ده هغه چه دوی سره ئې وعده کیدلے شوه -

س۴۳ دا بدل دے دَ یومهم نه. اَجْدَاثِ جمع دَ جدث ده قبر ته وئیلے شی لکه چه سورة یٰس س۵۱ کښ تیر شویدے. سِرَاعًا جمع دَ سریع ده حال دے دَ فاعل دَ یخرجون نه. نُصُبٍ هغه معبودان دی سیوا دَ الله تعالٰی نه چه دوی به صبا وختی هغوی طرف ته منډے وهلے چه کوم یو به ورباندے اول لاس کیدی او سجده به ورته اولگوی، په دے کار کښ به دوی دَ یو بل نه مخکښ کیدل او دا به ئې برکت گڼړلو. او نصب په زور دَ نون سره او دروله شوے نښے ته وئیلے شی.

س۴۴ دا ئې قبیح حال دَ دوی ذکر کړے دے. خَاشِعَةً حال دے دَ ضمیر دَ یوفضون نه. تَرْهَقُهُمْ په ارهاق کښ معنٰی دَ احاطے کولو سره دَ تنگسیا نه ده. او دا حالت دَ ذلّت دَ دوی دے په مقابله دَ حالت دَ دنیا کښ دے چه دوی به ځان عزت مند گڼړلو او دَ هغے دَ وجے دَ قرآن کریم نه ئې مخ اړولو.

ختم شو تفسیر دَ سورة المعارج په توفیق دَ الله تعالٰی سره

| سُوْرَةُ نُوْحٍ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۲۸ رُكُوْعَاتُهَا ۲ |
|---|---|---|

إِنَّآ أَرْسَلْنَا نُوْحًا إِلٰى قَوْمِهٖٓ أَنْ أَنْذِرْ قَوْمَكَ

یقینًا لیږلے وؤ موږ نوح علیه السّلام قوم دَ هغه ته چه ویره ورکړه قوم خپل ته

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة نوح (علیه السلام)

**ربط دَ دے سورت** دَ ماقبل سره په ډیرو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښ تخویف اخروی ذکر وؤ نو په دے سورت کښ تخویف دنیوی ذکر کوی۔ دویمه وجه دا ده چه مخکښ سورت کښ تقابل وؤ دَ صفتونو دَ مؤمنان او کافرانو سره نو په دے سورت کښ دَ هغوی سبب دَ اختلاف ذکر کوی۔ دریمه وجه دا ده چه مخکښ سورة ملك کښ دعویٰ ذکروه او اتباع دَ رسول او بیا تخویف اخروی ذکر شونو اوس طریقه دَ دعوت ذکر کوی څلورمه وجه دا ده چه په سورة ملك کښ اثبات دَ توحید وؤ په عقلی دلیلونو سره بیا اثبات دَ رسالت او تخویف اخروی ذکر شونو اوس دلیل نقلی ذکر کوی دَ نوح علیه السّلام نه۔

**دَعویٰ دَ سورت**۔ بیان دَ طریقے دَ دعوت الی الله او تشجیع ده په دعوت باندے سره دَ تخویف دنیوی نه په واقعه دَ نوح علیه السّلام سره۔

**خلاصه دَ دے سورت**۔ اوّل، دعوت دَ نوح علیه السّلام دے په درے اوامرو سره او دوه فائدے یے دَ هغے ذکر کړے دی نو دا پنځه امور شول ۱ تر ۲، ۳ تر ۴ کښ۔ دویم مخالفت دَ قوم دَ هغه په پنځه طریقو سره په ۵ تر ۷ کښ۔ دریم کیفیت دَ دعوت په اعتبار دَ وخت او دَ اوصافو سره په پنځه وجوهو سره په ۵ او ۸ تر ۹ کښ۔ څلورم ترغیب توحید ته (استغفار ته) په پنځه نعمتونو سره په ۱۰، ۱۱ تر ۱۲ کښ۔ پنځم اثبات دَ توحید په پنځه دَلیلونو عقلیو سره دَ ۱۳ نه تر ۲۰ پورے۔ شپږم دشمنی کول دَ قوم دَ هغه دَ دهٔ سره په پنځه طریقو سره دَ ۲۱ نه (پاتے په بل مخ)

مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ①

وړاندې دَ دینه چه راشي په دوی باندې عذاب دردناک.

قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّىْ لَكُمْ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ②

هغه اُوئیل اے قومه زما یقینًا زهٔ تاسو لره ویره درکوونکے یم ښکاره ،

اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ وَاَطِيْعُوْنِ ③

چه بندګی کوئے خاص دَ الله تعالیٰ او ویره کوئے دَ هغه نه او طاعت کوئے زما

ترس۲۴ پورے - اَوَّم دعوت دَ قوم دَ هغه عبادت دَ پنځه معبودا نو ماسوی الله ته په س۲۳ کښ. اَتَم دُعاءِ شر (رخیرے کول) قوم ته چه مشتمل ده په پنځه امورو باندے په س۲۴ س۲۶ س۲۷ س۲۸ کښ. او په مینځ کښ سبب دَ عذاب دنیوی او اخروی ذکر شو په س۲۵ کښ. نهم دُعا دَ مغفرت پنځه اشخاصو ته په س۲۸ کښ.

تفسیر س۱ اولنے رسول چه ردکوی په شرک دَ مشرکانو باندے نوح علیه السلام دے. اَنْ ارسال کښ معنیٰ دَ امر پرته ده او اَنْ تفسیر دَ هغې دے دَ دے وجے نه باٸے پکښ نه ده راوړے. اَنْذِرْ، انذار ویره ورکول دی دَ عذاب نه په سبب دَ انکار دَ توحید سره نو دَ انذار معنیٰ دا چه دعوت دَ توحید اوکړه سرهٔ دَ تخویف دَ عذاب ته. عَذَابٌ اَلِيْمٌ عذاب دنیوی او اخروی دواړو ته شامل دے او راتلل دَ عذاب مشروط دی په شرط دَ انکار کولو سره.

س۲ س۳ په یکښ اعلان دَ رسالت خپل دے. مُبِيْنٌ ښکاره انذار دا دے چه دَ هغوی په ژبه دے او په اخلاص سره دے او بیا یٸے درے مقصدونه دَ انذار ذکر کړے دی اول دعوت کول بندګئے دَ الله تعالیٰ ته. دویم بچ کیدل دَ وهم، شرک او کفر او مخالفت کولو نه دریم اطاعت دَ رسول. نو معلومه شوه چه لوٸے مقاصد دَ انبیاء علیهم السلام دوه دی، یو توحید دویم اتباع دَ سنت لکه چه سورة شعراء کښ دَ انبیاء علیهم السلام په واقعاتو کښ تیر شویدی.

يَغْفِرْ لَكُمْ مِنْ ذُنُوبِكُمْ وَيُؤَخِّرْكُمْ إِلَىٰ

نو اوبه بخي تاسو ته گناهونه ستاسو او (روستو) او به ډه به کړي تاسو تر

أَجَلٍ مُسَمًّى ۚ إِنَّ أَجَلَ اللَّهِ إِذَا جَاءَ لَا يُؤَخَّرُ

نيټې مقررې پورې. يقيناً نيټه دَ الله تعالىٰ چه کله راشي نو نه وروستو کيږي

لَوْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ④ قَالَ رَبِّ إِنِّي دَعَوْتُ

که چرې تاسو پوهه لرئ. هغه اُوئيل اے ربه زما يقيناً ما بللي دي (توحيد ته)

سکه په دے کښ دَ توحيد او دَ سنت دوه لوئے فائدے ذکر کوي يو اخروي دويمه دنيوي.

مِنْ ذُنُوبِكُمْ (سوال) په حديث سره ثابت دي چه اسلام سره ټول گناهونه مخکني ختم شي او دلته خو حرف دَ مِنْ دلالت کوي چه بعض گناهونه معاف کيږي؟

(جواب) دا دے چه يغفر په معنىٰ دَ يخرج دے لکه چه قرطبي يوه توجيه دا ذکر کړے ده يا مِنْ بعضيه دے ځکه چه گناهونه دوه قسمونه دي يو قبل الاسلام بل بعد الاسلام نو په اسلام راوړلو سره قبل الاسلام گناهونه معاف شول او هغه بعض دي دَ کُل نه۔

وَيُؤَخِّرْكُمْ الخ مراد دا چه دَ عذابونو نه به په امن سره ژوند درکړي ترمرګه پورې او دنيوي منافع به هم درکړي لکه چه سورة هود ۳ـ ۵۲ کښ تيرشويدي يا دا چه عمر به درله زيات کړي تر يو نيټې پورې چه الله تعالىٰ اوغواړي او دا په طريقه دَ تقدير معلق سره به وي لکه چه ابن کثير حديث ذکر کړے دے چه صِلَةُ الرحم تزيد في العُمر (صله رحمي سره په عمر کښ زياتے راځي).

إِنَّ أَجَلَ اللَّهِ الخ په دے کښ دفع دَ يو وهم ده هغه دا چه يؤخركم نه معلوميږي چه نيټه به لرے شي؟ حاصل دَ جواب دا دے چه يؤخر که په هره معنىٰ سره اراده کړے شي ليکن اجل مقرره قطعي کښ روستو والے نشي راتلے۔ لَوْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ په دے کښ زورنه ده چه تاسو دُنيا پرستے دا سے مغرور کړے يئ چه دَ مرگ او دَ اجل نه جاهل شوي يئ۔

قَوْمِیْ لَیْلًا وَّنَهَارًا ﴿۵﴾ فَلَمْ یَزِدْهُمْ دُعَآءِیْۤ

قوم خپل شپه او ورځ نو زیاتی نه کړو دوی لره بلنې زما

اِلَّا فِرَارًا ﴿۶﴾ وَاِنِّیْ كُلَّمَا دَعَوْتُهُمْ لِتَغْفِرَ لَهُمْ

مګر تېختې کول . او یقیناً هر کله چه ما رابللی دی دوی (توحید ته) د پاره ددې چه بخنه او کړې ته دوی ته

جَعَلُوْۤا اَصَابِعَهُمْ فِیْۤ اٰذَانِهِمْ وَاسْتَغْشَوْا

نو ورکړي دی دوی ګوتې خپلې په غوږونو خپلو کښې او څانونه ئې پټ کړیدی

ثِیَابَهُمْ وَاَصَرُّوْا وَاسْتَكْبَرُوا اسْتِكْبَارًا ﴿۷﴾

په جامو خپلو کښې او کلک شویدی په ضد باندې او لوئي ئې کړېده ډیره لوئي .

ف۵ هر کله چه دَ نوح علیه السلام ډیر عمر تیر شو لیکن دغه قوم (بغیر دَ لږو کسانو نه) ایمان راؤنړلو نو نوح علیه السّلام دَ دوی په باره کښې الله تعالی ته شکایات او دُعاګانے شورو کړے او دَ هغه دُعاګانو په ضمن کښې دَ هغوی تول حالا تو ته اشاره ده . څلور کرته لفظ دَ قال راغلے دے دَ اول قال نه چه په ۲ کښې دے تر دے پورے دعوت دَ نوح علیه السلام ذکر شو او دویم قال چه په ۵ کښې دے تر ۲۰ پورے په دیکښې طریقے دَ دعوت او طریقے دَ مخالفت دَ هغوی ئے ذکر کړیدی او دریم قال چه په ۲۱ کښې دے تر ۲۵ پورے په هغے کښې دَ هغوی دَ طرف نه دعوت الی الشرک ذکر دے سره دَ بیان دَ سبب دَ عذاب نه او څلورم قال نه تر اخره پورے په هغے کښې دُعاءِ شر ذکر ده دَ قوم په باره کښې او دُعاءِ خیر دَ مؤمنانو په باره کښې نو په دے ایت ۵ کښې دَ دعوت دَ هغه دوه طریقے په اعتبار دَ عموم دَ اوقاتو سره ذکر کړیدی یعنی شپه او ورځ .

ف۶ په دے کښې دَ هغوی دَ مخالفت یو طریقه ذکر کړیده . فِرَارًا حقیقتاً تختیدل مراد دی یا کنایه ده دَ نفرت کولو او اعراض کولو دَ اوریدلو دَ حق نه لکه چه سورة مدثر ۵۰ ۵۱ کښې راځی .

ف۷ په دے کښې دَ هغوی دَ مخالفت کولو څلور طریقے ذکر کړے دی ، دَعَوْتُهُمْ لِتَغْفِرَ لَهُمْ په دے کښې مدعوالیه محذوف دے او فائده دَ

ثُمَّ إِنِّي دَعَوْتُهُمْ جِهَارًا ﴿٨﴾ ثُمَّ إِنِّي

بیا یقیناً ما رابللي دي دوی په چغه (زوره) سره. بیا یقیناً ما

أَعْلَنتُ لَهُمْ وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ إِسْرَارًا ﴿٩﴾

ښکاره دینا کړیده دوی ته او پټ پټ مې وئیلي دي دوی ته په پټ وئیلو سره

فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ

نو ما وئیلي دي بخنه غواړئ د رب خپل نه . یقیناً هغه دے

غَفَّارًا ﴿١٠﴾ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا ﴿١١﴾

بخنه کوونکے ، رالیږي به باران په تاسو باندې پرله پسې (ډیر)

هغې ذکر ده یعنی دعوتهم إلى الایمان والتوحید (چه دوی له ما دعوت ورکړو ایمان او توحید ته) دَ پاره دَ فایدې دَ غفران. جَعَلُوٓا أَصَابِعَهُمْ داسې په سورة بقره ۲۰ کښې ذکر شویدي او غوره دا ده چه معنیٰ ظاهري مراد ده. وَاسْتَغْشَوْا الخ دلته هم معنیٰ ظاهري مراد ده سرونه او مخونه او غوږونه په جامو کښې پټه وي چه اوریدلو دَ پاره هیڅ لار پاتې نه شي یا دَ دې دَ پاره چه نوح علیه السلام ته نظر او نکړي یا چه نوح علیه السلام دوی لره او نه پیژني. وَأَصَرُّوا ماخوذ دے دَ اصرار الحمار نه چه حمار وحشي غوږونه اوچت کړي او دَ مؤنث په خټ باندې خوله کیږدي او چیچي ئې او ورسره متهږے وهي دا حال دَ مشرک دے چه په شرک پورے کلک انختے دے.

۸ ۹ په دې کښې دَ دعوت درې طریقې ئې ذکر کړیدي. جِهَارًا دَ پاره دَ لرې کسانو دے چه نزدې نه راځي او إِعْلَان دَ پاره دَ نزدې کسانو دے او إِسْرَارًا دَ هر یو شخص دَ پاره جدا جدا دے. او لفظ دَ ثُمَّ کښې اشاره ده چه دَ قوم دَ طرف نه مخالفت ډیر شي نو دعوت په هره ممکن طریقه سره کول پکار دي خو دعوت به پریګدي نه.

۱۰ ۱۱ ۱۲ په دې کښې دَ دعوت خلاصه ذکر کړیده یعنی استغفار دَ هر قسم کفر او شرک او ګناهونو نه په زړه او ژبه او عمل سره (باتې په بل مخ)

وَّيُمْدِدْكُمْ بِاَمْوَالٍ وَّبَنِيْنَ وَيَجْعَلْ

او زیاتوی تاسو لره مالونه او ځامن او درکوی په

لَّكُمْ جَنّٰتٍ وَّيَجْعَلْ لَّكُمْ اَنْهٰرًا ﴿۱۲﴾ مَا لَكُمْ

تاسو لره باغونه او درکوی به تاسو لره نهرونه. څه وجه ده ستاسو

لَا تَرْجُوْنَ لِلّٰهِ وَقَارًا ﴿۱۳﴾ وَقَدْ خَلَقَكُمْ

چه نه لرئ عقیده الله تعالیٰ لره دَ لوئی او یقیناً پیدا کړی ئی تاسو

او دَ هغې پنځه فائدے دنیوی ئې ذکر کړیدی. اِنَّهٗ كَانَ غَفَّارًا په دې جمله
کښې ترغیب دے استغفار ته. دَالسَّمَآءَ نه مراد باران دے په تقدیر دَ
مضاف سره چه ماءالسماء دے یا سماء په معنی دَ باران دے مِدْرَارًا مراد
دا چه پرله پسے باران په داسے طریقے سره وی چه په مینځ کښې سوکړه نه
راځي خو چه دَ باران ضرورت وی نو دَ ضرورت مطابق اووریږی او تباهی
ورسره نه وی ابن کثیر او قرطبی وغیره دَ عمر رضی الله عنه روایت راوړے
دے چه هغه یو کرته استسقاء کوله نو صرف استغفار ئې اوکړو او واپس
شو نو ورته اوئیلے شو چه تاسو استسقاء اونکړه نو هغه اوفرمائیل چه
ماخو باران په حقیقی اسبابو سره اوغوختلو او بیا ئې دا ایت اولوستلو.
وَيُمْدِدْكُمْ اه یعنی استغفار سبب دے دَ نزول دَ برکاتو دَ پاره لکه چه
په سورة اعراف ۹۶ او سورة مائده ۶۶ او سورة جن ۱۶ کښې راغلےدی
دَ قشیری نه روایت دے چه دَ چا څه حاجت وی الله تعالیٰ ته نو استغفار
دِ وړاندے کوی نو حاجت به ئې پوره کیږی. او په دے ایا تو نو کښې پنځه
حاجات ئې په طبعی ترتیب سره ذکر کړیدی اول هر انسان باران ته محتاج دے
بیا مالونو ته بیا ځامنو ته بیا باغاتو ته بیا نهرونو ته.
۱۳ لَا تَرْجُوْنَ رجاء امید او اعتقاد او خوف او علم دَ پاره استعمالیږی
دَ دے په وجه قرطبی دَ دے جملے دولس معانے لیکلے دی. او وَقَارًا
عظمت او عزت او اثبات دَ توحید ته وئیلے کیږی غوره معنیٰ دا ده چه
څه وجه ده چه عقیده نه لرئ دَ الله تعالیٰ دَ عظمت چه توحید دے
او خطیب شربینی وئیلے دی چه توقیر دَ الله تعالیٰ دا دے چه ته خپل حق

أَطْوَارًا ﴿۱۴﴾ أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللّٰهُ سَبْعَ

په مختلف حالتونو. ایا نه کورئے تاسو چه څه رنګ پیدا کړیدی الله تعالی اوده

سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا ﴿۱۵﴾ وَّجَعَلَ الْقَمَرَ

اسمانونه لاندے باندے، او جوړه کړیده سپوږمۍ

فِيهِنَّ نُورًا وَّجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا ﴿۱۶﴾

په هغوی کښں رڼا او جوړ کړیدے نمر چراغ بلیدونکے.

په الله تعالی باندے نه ګرزے او دَ هغه په اختیاراتو کښں دخل او اعتراض نه کوے او دَ هغه امر ونهی سره معارضه نه کوے.

ف۱۴ دا اول دلیل عقلی انفسی دَ توحید دے. أَطْوَارًا، مرتبو او حالاتو دَ پیدائش ته اشاره ده اول عناصر بیا مرکبات غذائیه بیا اختلاط ربدن کښں ګډیدل) بیا نطفه بیا علقه بیا مضغه بیا عظام او غوښے او پلے او وینے بیا روح اچول بیا دُنیا ته راویستل. بیا وړوکوالے بیا ځوانی بیا بوډا والے او داړنګ کله روغ کله بیمار کله مالدار کله فقیر او دا رنګ اختلاف دَ اخلاقو او کارونو ته هم اشاره ده دا ښکاره دلیل دے دَ قدرت او دَ توحید دَ الله تعالی.

ف۱۵ دا دویم دلیل عقلی آفاقی دے. أَلَمْ تَرَوْا دَ پاره دَ تنبیه او دَ طلب دَ فکر او علم دے لیدل دَ سترګو مراد نه دی. طِبَاقًا لاندے باندے بعض دَ بعضو دَ پاسه دی او په مینځ کښں ډیره فاصله ده لکه سورة ملك ۳ کښں دی.

ف۱۶ دا دریم دلیل عقلی آفاقی دے مشتمل دے په دوه نعمتونو باندے سرهٔ دَ اختلاف دَ هغوی نه په رڼا کولو کښں. فِيهِنَّ ذکر دَ جمع مراد ترینه مفرد دے یعنی اول اسمان، او دا تعبیر دَ دے دَ پاره دے چه دَ سپوږمۍ رڼا لکه چه دَ زمکے والو دَ پاره ده نو بره دَ اسمانونو دَ پاره هم ده. او فِي دَ طرف دَ پاره دے. نُورًا هغه دے چه سرهٔ دَ تیرے نه وی او سِرَاجًا وجود دَ تیرے نه غواړی نو دَ قمر په وخت کښں تیاره دَ شپے وی او دَ شمس په وخت کښں شپه روکه شی. نُور کله هغے ته وئیلے شی چه دَ بل څیز نه اخستلے شوے وی او سراج هغه دے چه دَ هغے نه نُور اخستلے شی دَ دے وجے نه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په سورة احزاب کښں سراج وئیلے شوید ے.

وَاللّٰهُ اَنْۢبَتَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ نَبَاتًا ﴿۱۷﴾ ثُمَّ

او الله تعالىٰ زرغون كړي يئ تاسو دَ زمكے نه زرغونول ، بيا به

يُعِيْدُكُمْ فِيْهَا وَيُخْرِجُكُمْ اِخْرَاجًا ﴿۱۸﴾

واپس كوي تاسو په هغے كښ او راوباسي به تاسو بيا راويستل .

وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ بِسَاطًا ﴿۱۹﴾

او الله تعالىٰ جوړه كړيده تاسو لره زمكه غوړيدلے .

لِّتَسْلُكُوْا مِنْهَا سُبُلًا فِجَاجًا ﴿۲۰﴾ قَالَ

دَ دے دَپاره چه ګرځئ دَ هغے نه په لارو ارتو كښ اُوئيل

۱۷ ، ۱۸ دا څلورم دليل عقلى آفاقى دے او په دويم ايت كښ مرګ او دوباره ژوندي يئ ذكر كړے دے دَپاره دَ اثبات دَ قدرت دَ الله تعالىٰ.
اَنْۢبَتَكُمْ مراد دَ دے نه پيدائش او نشوونما دَ انسان ده چه دَ زمكے نه يئ پيدا كړيدے او دَ وړوكوالى نه پس يئ لوئے كړيدے او دَ پست قد نه روستو يئ دنګ قد و قامت وركړيدے . او دويم قول دا دے چه مراد دَ دے نه انبت لكم يعنى ستاسو دَپاره يئ بوټي دَ زمكے نه زرغون كړيدى ليكن اوله توجيه دَ روستو جملو سره خه مناسب ده او په انبات سره يئ تعبير دَ خلق نه كړيدے يو خو په دے كښ تذكير دَ حال دَ آدم عليه السلام دے دويم دا چه دا خه دلالت كوي په حدوث باندے . اِخْرَاجًا مفعول مطلق نكره يئ دَ دے وجے نه ذكر كړو چه دلالت اوكړي چه دا اخراج ډير نا اشنا دے .
۱۹ ، ۲۰ دا پنځم دليل عقلى دے اول يئ ذكر كړه دا خبره چه زمكه ماده دَ پيدائش دَ انسان ده نو اوس ذكر كوي چه دا زمكه ځائے دَ معيشت دَ انسان دے . بِسَاطًا يعنى دَ هغے نه فائدے اخستل او په هغے كښ ارام كول يئ داسے آسان كړيدے لكه چه دَ بساط (بستره غوړيدلے) نه فائده اخستل او آرام كول آسان دى . فِجَاجًا صفت دَ سبلًا دے يعنى فراخے لارے چه هغه په تلونكى باندے نه مشتبه كيږي يا فجاج جمع دَ فج ده

نُوۡحٌ رَّبِّ اِنَّهُمۡ عَصَوۡنِيۡ وَاتَّبَعُوۡا مَنۡ لَّمۡ

نوح علیه السلام اے ربه زما یقینًا دوی نا فرمانی کوی زما او تابعداری کړیده دوی دَ هغه چاچه نه

يَزِدۡهُ مَالُهٗ وَوَلَدُهٗۤ اِلَّا خَسَارًا ﴿۲۱﴾

زیاتوی هغه لره مال دَ هغه او اولاد دَ هغه مگر تاوان ۔

وَمَكَرُوۡا مَكۡرًا كُبَّارًا ﴿۲۲﴾ وَقَالُوۡا لَا تَذَرُنَّ

او چلوته اوکړل دوی چلوته لوئے ۔ او دوی اُوئیل مه پریږدئے

دَ دوه غړونو په مینځ کښ درے ته وئیلے کیږی چه په سبب دَ هغے سره دَ یو ملک او دَ علاقے نه بل ملک او علاقے ته انتقال په آسانه سره کیدیشی په دے توجیه سره فجاجًا بدل دے دَ سبلًا نه ۔

۲۱ په دے ایاتونو کښ مخالفت دَ قوم په پنځو طریقو سره ذکرکوی او هغه دعوت ورکول دی دَ دوی شرک ته اوخپل اولاد گمراه کول دی ۔

عَصَوۡنِيۡ عصیان شامل دے هغه اوامرو ته چه ذکر ووُ په ۳ او ۱۰ کښ ۔

وَاتَّبَعُوۡا مَنۡ لَّمۡ يَزِدۡهُ الخ اشاره ده چه دَ دهٔ په قوم کښ دوه قسمه خلق ووُ یو قسم غټان (مَلَاءَ) چه خلق به ئے خپل تقلید ته رابلل هغوی خو دیر ضدیان اوعنادیان ووُ دَ هغوی حال په ۷ کښ ذکر شو ۔ دویم قسم دَ هغوی تابعداران مقلدان ووُ چه هغوی دلیل ته نه ووُ کتلی ځکه چه دَ مشرانو سره ئے دلیل نه ووُ بلکه دَ هغوی مالدارئے او ولے ته ئے کتل چه دا سبب دَ حق پرستے دے اوحال دا چه هغه مال او اولاد دَ هغوی سبب دَ خسران ووُ په طریقه دَ استدراج سره نو په دے ایت کښ اشاره ده چه په دوی کښ شرک فی التشریع والحکم موجود ووُ ۔

۲۲ ضمیر دَ مکروا دغه گمراهانو مشرانو ته راجع دے اومراد دَ مکر نه دعوت ورکول دی کفر او شرک ته په تلبیس او تحریف او شبهاتو سره او په شپه اوپه ورځ کښ لکه چه سورة سبا ۳۳ کښ ذکر ده ۔ او كُبَّارًا په تخفیف اوتشدید دواړو سره مبالغه ده خو په تشدید کښ ډیره مبالغه ده اشاره ده چه دوی دَ شرک دَ اشاعت او دَ توحید په مقابله کښ هرقسم کوشش کړے ووُ ۔

اٰلِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَّلَا سُوَاعًا ۙ

معبودان خپل او مه پریږدئ ود او نه سواع

وَّلَا يَغُوْثَ وَيَعُوْقَ وَنَسْرًا ﴿۲۳﴾ وَقَدْ

او نه یغوث او یعوق او نسر لره او یقیناً

۲۳ په دے کښ اشاره ده چه په دوی کښ شرك فی الالوهیة موجود وو او دا تفسیر دَ مکر دَ هغوی دے اٰلِهَتَكُمْ په دے کښ اشاره ده چه سیوا دَ الله تعالیٰ نه دَ دوی ډیر معبودان وو لیکن دَ دغه پنځو تخصیص ئے په دے وجه سره اوکړو چه هغه دَ دوی په عقیده کښ دَ نورو نه لوئے شان والا وو او دا تخصیص بعد التعمیم دے لکه چه دَ دے وخت په جاهلانو کښ عقیده ده چه دَ ډیرو اولیاؤ دَ قبرونو عبادتونه کوی لیکن لوئے غوث او لوئے بابا پکښ شیخ عبد القادر جیلانی رحمه الله گنړی او دَ جهل دَ وجه نه دَ قوم نوح پشان په شرک کښ اخته شوے دی۔ وَدًّا وَّلَا سُوَاعًا وَّلَا يَغُوْثَ وَيَعُوْقَ وَنَسْرًا، فصیح کلام کښ لَا دَ نفی په یوځائے دَ درے کرتونه زیات نه مستعملیږی دَ دے وجه په یغوث او نسر کښ صرف په عطف باندے اکتفاء اوکړے شوه او بله وجه دا هم ده چه په دے پنځو کښ دا دوه دَ دوی په عقیده دَ دغه درے مخکنو نه په مرتبه کښ کوز وو۔

فائده: ابوبکر بقاعی وئیلی دی چه دا صورتونه دَ نیکانو سړو وو لیکن هغه مشرکانو دَ دوی تصویرونه دَ دوی دَ صفتونو دَ وجه نه مختلف جوړ کړے وو یعنی وَدًّا په رجولیت (سړیتوب) کښ کامل وو نو دوی دَ هغه شکل هم دَ سړی پشان جوړ کړے وو۔ او سُوَاعَ زنانه وه ډیر عبادت کوونکے نو دوی دَ هغے بُت دَ ښځے په شکل جوړ کړے وو او دَ رجال اطلاق ورباندے تغلیباً کړے شویدے او يَغُوْثَ ډیر بهادر شجاع وو نو دوی دَ هغه تصویر په شکل دَ ازمری (اسد) سره جوړ کړے وو او يَعُوْقَ ډیر قوی او نیکو کارونو کښ سبقت کوونکے وو نو دَ هغه شکل ئے دَ آس جوړ کړے وو او نَسْرًا دَ بدن نه غټ او ډیر عمروالا وو نو دوی دَ هغه شکل دَ لوئے مارغه (گنجے تپوس) په شان جوړ کړے وو۔

أَضَلُّوا كَثِيرًا ۖ وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ

| گمراه کړل دوی ډیر خلق | او مه زیاتوے | ظالمانو لره |
|---|---|---|

نو دَ دے بیان نه معلومه شوه چه دَ هغه قول چه دا نومونه دَ نیکانو سړو دی او بل قول دَ واقدی په روایت سره چه دَ دوی دغه مختلف شکلونه وو نو دواړه قولونو کښې تعارض نیشته دے.

فائده ۲ دَ دے صفتونو او معانو په لحاظ سره دغه مشرکانو په هغوی پورے جدا جدا حاجت پوره کولو عقیده لرله وَدّ مظهر دَ محبت وو یعنی دَ دوه کسانو په مینځ کښې دَ مینے محبت پیدا کولو ذمه دار ئے گنړلو. سُوَاع مظهر دَ ثبات (کلکول) او قیومیت ئے گنړلو چه هغے ته دَ تصوف اصطلاح کښې قطب هم وئیلے شی یعنی دَ دُنیا نظام هغه چلوی. یَغُوث مظهر دَ فریاد رسئے وو چه هغه ته دَ تصوف په اصطلاح کښې غوث وئیلے کیږی. یَعُوق مظهر دَ دفع دَ بلایا وو یعنی مصیبتونه دفع کووُنکے او هغه ته دافع البلایا وئیلے شی نَسْر مظهر دَ اوګدوالی دَ عمر وو یعنی چه هغه دَ عمر دَ اوګدولو او په هغے کښې دَ برکت اچولو ذمه وار دے.

فائده ۳ امام بخاری وئیلے دی چه دا نومونه دَ نیکانو بزرګانو وو په قوم دَ نوح علیه السلام کښې هرکله چه هغوی مړه شول نو شیطان دغه قوم ته وسوسه اوکړه چه دا بزرګان چه کوم ځایونو کښې اوسیدل په هغے کښې کتے (دَ نخے په طور سره) اودروَئے او دغه نومونه ورله کیدے نو هغه خلقو داسے اوکړل بیا هرکله چه ډیره زمانه تیره شوه او نور خلق پیدا شول او جهل زیات شو نو دغه خلقو دَ هغوی عبادتونه شورو کړل.

او ابن کثیر دَ ابن ابی حاتم په روایت سره ذکر کړیدی دَ هغے حاصل دا دے چه دغه خلق دَ محبت دَ وجے نه اول دَ ودّ په قبر باندے راجمع کیدل بیا شیطان ورله دَ هغه تصویر جوړ کړو دَ یاره دَ یاداشت بیا څه زمانه روستو دَ هغه تصویر عبادت شورو کړے شو دا رنګ دَ ټولو حال دغسے وو.

نو معلومه شوه چه شرک اول دَ محبت دَ قبرونو دَ اولیاؤ نه شورو شویدے بیا دَ تصویرونو او دَ بُتانو عبادت شورو شو دَ دے وجے نه په ابتداء دَ اسلام کښې نبی صلی الله علیه وسلم دَ زیارت دَ قبرونو نه (راپاتے په بل مخ)

إِلَّا ضَلٰلًا ﴿٢٤﴾ مِمَّا خَطِيٓـَٔـٰتِهِمْ أُغْرِقُوا۟ فَأُدْخِلُوا۟ نَارًا ۙ

مگر گمراهي - دَ وجے دَ گناهونو دَ دوى نه دوى غرق کړيشول نو داخل کړيشو اور ته

نهى کړے وه دَ دے دَپاره چه دَ شرک دَپاره سبب جوړنشي بيا چه صحابه کرام په توحيد کښ پاخه شول نو دَ زيارتِ قبور اجازت ئے ورکړو۔

فائده عـ۳ـ امام بخارى دَ دغه بيان نه روستو ذکر کړے دى چه عبادت دَ دے پنځه معبودانو مشرکين عرب ته هم شيطان رانقل کړو او په مختلفو قبيلو کښ تقسيم شول. ودّ دَ کلب قبيلے وؤ په دومة الجندل مقام کښ او سُوَاع دَ هذيل قبيلے وؤ او يَغُوْث دَ قبيلے مراد او بنى غطفان وؤ په جرف مقام کښ دَ سبا سره۔ او يَعُوْق دَ همدان قبيلے وؤ او نَسْرٌ دَ حمير آل ذى کلاع قبيلے دَپاره وؤ او شاه عبد العزيز دهلوى فرمائيلے دى چه دا دَ هندوستان هندوانو ته هم نقل شويدى ليکن هغوى ئے نومونه بدل کړيدى دَ ودّ نوم ئے برهما ايښے دے او دَ سُوَاع نوم بشن او دَ يَغُوْث نوم اَندر او دَ يَعُوْق نوم ئے شيو جى او دَ نسر نوم ئے هنومان ايښے دے.

عـ۲۴ـ ضمير دَ اَضَلُّوْا مشرانو ته راجع دے لکه چه په قَالُوا کښ هغوى ته راجع وؤ يا ضمير اصنامو ته راجع دے په اسناد مجازى سره لکه چه سورة ابراهيم عـ۳۶ـ کښ دے۔

كَثِيْرًا دَ هغه زمانے او دَ روستو زمانو په عرب او عجم کښ چه شرک جارى دے نو دَ دے گمراهئ بنياد قوم دَ نوح عليه السلام کيخودلے دے او په هغوى باندے دَ دے گناه حِصّه ده په دليل دَ حديث ( مَنْ سَنَّ سُنَّةً سَيِّئَةً فَعَلَيْهِ وِزْرُهَا وَ وِزْرُ مَنْ عَمِلَ بِهَا لَا يُنْقَصُ مِنْ وِزْرِهٖ شَيْءٌ ).

وَلَا تَزِدِ الظّٰلِمِيْنَ دا دعاءِ شر ده په هغه قوم باندے روستو دَ دے نه چه نوح عليه السلام لره خبر ورکړے شو چه دا خلق ايمان نه راوړى لکه چه په سورة هود عـ۳۶ـ کښ ذکر دى إِلَّا ضَلٰلًا په معنىٰ مشهور دے سره مراد دے لکه چه په ايمان کښ زيادت راځى نو دا رنګ په گمراهئ او کفر کښ هم زيا تے راځى يا مراد دَ دے نه خسران دے۔

فَلَمْ يَجِدُوْا لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْصَارًا ﴿٢٥﴾

نو دوی به او نه موندی څان دپاره سیوا دَ الله تعالیٰ نه مددګاران -

وَقَالَ نُوْحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْاَرْضِ

او اوئیل نوح علیه السلام اے ربه مه پریږده په زمکه باندے

مِنَ الْكٰفِرِيْنَ دَيَّارًا ﴿٢٦﴾ اِنَّكَ اِنْ تَذَرْهُمْ

دَ کافرانو نه یو کور اباد یقیناً ته که چرے پریږدے دوی لره

۲۵ په دے کښ دَ هغه قوم عذاب دنیوی او اخروی ذکر کوی سره دَ سبب نه چه هغه خطیئات دَ هغوی دی اشاره ده چه سبب دَ عذاب صرف دُعاءِ شر نه وه بلکه سبب اصلی دَ دوی ګناهونه وو ، او خطیئات دَ دوی مخکښ ایاتونو کښ ذکر شول - عَصَوْا ، وَاتَّبَعُوا ، وَمَكَرُوا ، وَقَالُوا ، اَضَلُّوا او لویه خطیئه یې شرک وو -

فَاُدْخِلُوْا نَارًا قرطبی نقل کړیدی چه دا عذاب قبر ته اشاره ده لکه چه په بارهٔ دَ فرعونیانو کښ سورة غافر ۴۶ کښ دی -

یا مراد دَ نَارًا نه هغه دے چه په بحر کښ دے لکه چه حدیث کښ ذکر دی " تحت البحر نارٌ " -

یا مراد دَ دے نه نار دَ اخرت دے او دَ ادخلوا ماضی په معنیٰ دَ مضارع سره ده ماضی یې دَ تیقن دَپاره ذکر کړے ده -

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اشاره ده چه دَ دوی پنځه بزرګانو کښ هیڅ یو تن دَ دوی امداد اونکړے شو لکه چه سورة احقاف ۲۸ کښ ذکر دی -

۲۶ ۲۷ دا دعاءِ شر ده په هغه قوم باندے په بیخ کندے دَ هغوی سره او هر کله چه مخکښ ۲۴ کښ یو جمله دَ دُعاءِ شر ذکر وه دَ دے وجے نه دلته یې په قال باندے واو عطف داخل کړو - دَيَّارًا وزن دَ فیعال دے هغه څوک چه په کور کښ ګرځی او اوسیدل کوی -

يُضِلُّوْا عِبَادَكَ یعنی دَ دوی مثال دَ زهریلا مار پشان دے چه نورو خلقو ته ضرر رسوی نو دَ دوی هلاکول ضروری دی -

(سوال) نوح علیه السلام ته څنګه معلومه وه چه دَ ریاتے په بل مخ)

يُضِلُّوا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوٓا إِلَّا فَاجِرًا

نو گمراه به کړی بندګان ستا او نه به زیږوی مګر بدکار

كَفَّارًا ﴿٢٧﴾ رَّبِّ اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِمَن

ډیر کفر کوونکی ـ اے ربه ـ بخنه او کړے ماته او مور پلار زما ته او هغه چاته

دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا وَلِلْمُؤْمِنِينَ

چه ننوځي کور زما ته ایماندار او ټولو مؤمنانو ناریښو ته

وَالْمُؤْمِنَاتِ وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا تَبَارًا ﴿٢٨﴾

او مؤمنانو ښځو ته او مه زیاتوے ظالمانو لره مګر تباهي ـ

دوی نه اولاد فجار پیدا کیږی او دَ هدایت امید ترینه نیشته ؟
(جواب) هغه په وحی سره معلومه شوه لکه چه سورة هود ٣٦ کښ ذکر دی او دا دلیل دے چه هغه خلق چه دین ته ضرر رسوی او دَ هدایت ظاهری امید ترینه نه وی پاتے شوے نو په هغوی باندے دعاءِ شر (خیرے) جائز دی لکه چه زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم قنوت نازله لوستلو او دا رنګ موسیٰ علیه السلام هم فرعونیانو ته خیرے کړے دی چه دَ هغے ذکر په سورة یونس ٨٨ کښ تیر شوے دے ـ
(سوال) اولاد دَ هغوی خو ګنهګار نه وو نو هغوی ولے غرق شول؟
(جواب) دَ هغوی غرقیدل دَ هغوی دَپاره عذاب نه وو بلکه دَ هغوی دَ مرګ دَپاره یو سبب وو لکه چه په نورو اسبابو سره الله تعالیٰ په هغوی باندے مرګ راولی هلاک کیدل دَ اولاد زیادت دَ عذاب وو دَ مور او پلار دَپاره چه دَ هغوی په وړاندے ئے اولاد غرق شول نو دَ هغوی زړونو ته خه درد اورسیدلو ـ
٢٨ دَ دعاءِ شر نه په کافرانو باندے روستو دُعا غواړی دَپاره دَ مؤمنانو خصوصًا او عمومًا او دا ادب دَ دُعا دے چه اول خاص ذکر کوی نو بیا عام ـ رَبِّ اغْفِرْ لِي دُعا دَ مغفرت مستلزم نه ده ګناه لره بلکه دا اقرار دَ قصور دے په ادا دَ حق دَ عبدیت کښ دَپاره دَ تضرع ـ

وَلِوَالِدَيَّ مفسرينو نقل کړيدي چه دَ نوح عليه السّلام په ابا ؤ کښ تر ادم عليه السّلام پورے هيڅوک کافر نه وو.

وَلِمَنْ دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا لفظ دَ بيت کښ قرطبي ډير احتمالات ليکلي دي. کور دَ نوح عليه السّلام، مسجد دَ هغه، کشتئ دَ هغه، دين دَ هغه او دا ټول صحيح دي. او لفظ دَ مُؤْمِنًا کښ اشاره ده چه صرف داخليدل کافي نه دي بلکه تصديق دَ زړه ورسره ضروري دے، او په دے سره يو ځوئے دَ نوح عليه السّلام او ښځه دَ هغه دَ دے دُعا نه خارج شول ځکه چه هغوي اګرچه بيت دَ نوح عليه السّلام ته داخليدل ليکن مؤمنان نه وو.

وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ دا عام دے تر قيامته پورے ايمان والو ته نو دا امت (زمونږ) پکښ هم داخل دے.

وَلَا تَزِدِ الظّٰلِمِيْنَ مخکښ دُعاءِ شر خاص وه په قوم دَ دهٔ پورے اودا دُعا عامه ده ټولو کافرانو مشرکانو ته په هره زمانه کښ. تَبَارًا، هلاکت او خسران ته وئيلے کيږي.

ختم شو تفسير دَ سورة نوح په فضل دَ الله تعالیٰ سره والحمد لله تعالیٰ

ته اوايه وحي کړې شوېده ماته چه يقيناً غوږ ايخے دے يوے ډلے دَ پېريانو ته

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة جن او بل نوم ئے سورة قل اوحي دے

**ربط دَ دے سورت** دَ سورة نوح سره په درے وجو سره دے.
اوله وجه دا ده چه مخکښې سورت کښې دليل نقلي ووُ په توحيد باندے دَ نوح عليه السلام نه نو په دے سورت کښې دليل نقلي دے دَ جنا تو نه.
دويمه وجه په هغه سورت کښې تشجيع وه په دعوت باندے په واقعه دَ نوح عليه السلام کښې نو په دے سورت کښې تشجيع ده په واقعه دَ پېريانو سره. دريمه وجه په هغه سورت کښې صرف دليل نقلي ووُ نو په دے سورت کښې دَ دليل نقلي سره دليل وحي دے.

**دعوىٰ دَ سورت** رد دَ شرک دے په واقعه دَ جن سره او په دليل وحي سره دَ نبي صلی الله عليه وسلم نه او په دے کښې رد دَ شرک دے عموماً او خصوصاً رد دے په اتخاذ الولد او په شرک في العلم او في الدعا او في التصرف او في الاستعاذه باندے.

**خلاصه دَ سورت.** په دے کښې اته وحي دليلونه دي اول دَ آيت ۱ نه تر ۱۵ پورے په دے کښې دَ جناتو ديارلس اقوال نقل دي او دويم دليل وحي په ۱۶ کښې ترغيب دے توحيد ته په وسعت دَ رزق سره او تخويف په اعراض کولو سره. دريم دليل په ۱۸ کښې دے په هغې کښې تخصيص دَ سجود دے دَ الله تعالیٰ دَ پاره سره دَ رد دَ شرک في الدعا نه څلورم دليل مخالفت دَ مشرکينو دے دَ دعوت کوونکي ته په ۱۹ کښې پنځم دليل په ۲۰ کښې دے په رد دَ شرک في الدعا شپږم دليل وحي دے رد دَ شرک في التصرف په ۲۱ کښې - اووم دليل په ۲۳ کښې رپاتے په بل مخ)

فَقَالُوْٓا اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا ﴿۱﴾

نو دوی اُوئیل یقیناً موږ اوریدلے دے قرآن نا اشنا (مضمون والا)۔

په رد دَ شرک فی الاستعاذه سره بیا تخویف اخروی او دنیوی په ۲۳، ۲۴ کښ دے اتم دلیل وحی په ۲۵، ۲۶ کښ دے په رد دَ شرك فی العلم سرهٔ دَ ذکر دَ عظمت دَ رسولا نو نه۔ اوتفصیل دَ دیارلس اقوالو دَ جناتو دا دے اول تصدیق دَ قرآن په ۱ کښ دویم نفی دَ شرک عموماً په ۲ کښ دریم نفی دَ صاحبه او دَ ولد دَ الله تعالیٰ نه په ۳ کښ څلورم نسبت دَ سفاهت مشرکانو ته په ۴ کښ پنځم تقلید دَ اباؤ په گمان دَ صدق دَ هغوی سره په ۵ کښ شپږم ذکر دَ شرك فی الاستعاذه په ۶ کښ اُوم عقیدهٔ دَ انکار دَ بعث بعد الموت یا دَ بعثت دَ رسول په ۷ کښ۔ اتم حال دَ جناتو مخکښ دَ نزولِ قرآن او روستو دَ نزول قرآن نه په ۸، ۹ کښ نهم عدم علم دَ دوی په غیب باندے په ۱۰ کښ لسم تفرق دَ دوی مخکښ دَ نزول قرآن نه په ۱۱ کښ او یوؤلسم اظهار دَ عجز دَ دوی سرهٔ دَ رد دَ شرك فی التصرف نه په ۱۲ کښ دولسم ایمان دَ دوی په قرآن باندے سرهٔ دَ بشارت نه په ۱۳ کښ۔ دیارلسم تفرق دَ دوی روستو دَ نزولِ قرآن نه په ۱۴، ۱۵ کښ۔

تفسیر ۱ قُلْ اُوْحِیَ اِلَیَّ دا دلالت کوی چه نبی صلی الله علیه وسلم په وخت دَ استماع دَ قرآن کښ دا جنات نه وو لیدلی او نه دَ هغوی نه خبر وو بلکه روستو الله تعالیٰ ورته په وحی سره خبر ورکړو۔ او په دے سره معلومه شوه چه نبی صلی الله علیه وسلم عالم الغیب نه وو۔

(سوال) په روایت دَ ابن مسعود رضی الله عنه کښ وارد دی چه نبی صلی الله علیه وسلم دوی ته خاص دعوت ورکړے وو او په دوی باندے قرآن لوستلے وو او دوی ئے لیدلے وو؟

(جواب) ملا علی قاری په مرقات کښ لیکلی دی چه واقعه دَ جناتو شپږ کرته موجود شوے وه بعض په مکه کښ او بعض په نخله کښ او بعض په مدینه کښ دوه کرته ورسره ابن مسعود وو او څلور کرته ورسره نه وو او دَ بخاری او مسلم روایت کښ ثابت ده چه دا اول کرت په بطنِ نخله کښ واقعه وه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم (پاتے په بل مخ)

يَّهْدِىٓ اِلَى الرُّشْدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ ۭ وَلَنْ نُّشْرِكَ

هدایت کوی حق ته نو ایمان راوړے دے موږ په دے (قرآن) باندے۔ او هیچرے به شریک نه جوړ وو

دَ یو جماعت دَ صحابو سره دَ عکاظ میلے ته (دَ دعوت دَ پاره) روان وو نو نخله مقام کښ دَ فجر مونځ ئے کوو نو ډله دَ پیریانو راغله او هغوی قرآن واوریدلو (سورة علق یا سورة رحمان) نو پیریان پوهه شول چه دا هغه څیز دے چه دَ هغے دَ وجے نه پیریان دَ آسمانونو نه بند کړے شوی دی او په شغلو باندے ویشتلے کیږی او دغه پیریانو ایمان راوړو۔ بیا اختلاف دے دَ مفسرینو چه واقعه دَ سورة احقاف او دَ دے سورت یوه ده که جدا جدا دی۔ اِسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ طریقه دَ استماع دَ دوی په سورة احقاف ۲۹ کښ ذکر ده۔ او دا جن دَ نینوی مقام وو۔ او څوره کسان وو یا نهه وو۔ بعضو وئیلے دی چه درے تنه دَ اهلِ حران او څلور دَ اهلِ نصیبین وو۔ او په دے واقعه کښ ډیرے فائدے دی اول دا چه معلومه شوه چه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم رسول دَ بشر او دَ جن دواړو وو۔ دویم دا چه جنات زموږ په لغاتو او ژبو باندے پوهیږی پشان دَ انسانانو دریم دا چه قرآن کریم داسے معجز کتاب دے چه جنات سره دَ سرکشئ نه ایمان ته مجبوره شول۔

فَقَالُوْٓا اِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا معنیٰ مصدری ده یعنی قراءةً جامعةً (یوستل جامع) یا قرآن بخپله معنیٰ سره دے چه دوی دَ قرآن نوم هم اېږده کړو یا دا چه دَ مخکنو آسمانی کتابونو دَ علم په سبب ئے قرآن پیژندلو لکه سورة احقاف ۳۰ نه معلومه ده۔

عَجَبًا قرآن دَ اعلیٰ درجے فصاحت او بلاغت په وجه عجیبه دے یعنی مثال نه لری یا تعجب په دے وجه ساؤو چه په دے کښ نااشنا مسئله (دَ توحید) وه چه دوی دغه زمانه کښ دَ یهودیانو او نصاریٰ نه دا نه وه اوریدلے۔ لکه چه مشرکانو ورته هم لَشَیْءٌ عجاب وئیلے وو په سورة صٓ ۵ کښ ذکر دی۔

بِرَبِّنَآ اَحَدًا ﴿۲﴾ وَّاَنَّهٗ تَعٰلٰى جَدُّ رَبِّنَا

دَ رب خپل سره شریک، او یقینًا اوچت دے شان دَ رب زمونږ

مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا ﴿۳﴾ وَّاَنَّهٗ

نه نیولے دَه نیولے ملګرے او نه بچے، او یقینًا

سـ۲ دا تفسیر دَ عجبًا دے یعنی عجیبه والے دَ دروغو او ګمراهئ دَ وجے نه نه دے لکه چه مشرکینو ګمان کړیدے بلکه دَ هدایت او دَ ارشاد دَ وجے نه دے. رُشْدِ هغه حق دے چه په عمل کولو کښ مقصد ته رسیدل او کامیابی وی. فَاٰمَنَّا بِهٖ فا دلالت کوی چه هدایت او رشد مستلزم دے ایمان راوړلو لره. وَلَنْ نُّشْرِكَ بِرَبِّنَآ اشاره ده چه دا جنات دَ دے نه وړاندے مشرکان وو په شرك فی الربوبیة (اطاعة ابلیس) او شرك فی الالوهیة سره. او دا دلیل دے چه دَ قران کریم دَ هدایت خلاصه ردِ دَ شرکیاتو دے او څوك چه قران لولی لفظًا او معنًی او بیا هم په شرك کښ مبتلا وی نو معلومیږی چه دوی دَ قران په مقصد باندے نه پوهیږی.
سـ۳ وَاَنَّهٗ دا لفظ او دَ دے نه روستو تر سـ۱۴ پورے په نیز دَ بعض قراءو په زور دَ اَنَّ سره دے نو معطوف دے په اَنَّهُ اسْتَمَعَ باندے نو بِنا په کسره دا هم وجه ده لیکن په طریقه دَ نقل دَ قول دَ جنّاتو سره یا معطوف دے په ضمیر مجرور دَ بِهٖ په اٰمَنَّا بِهٖ کښ نو دا قول مؤمن به دَ جناتو دی او په نیز دَ نورو قراؤ دا په زیر سره دے نو عطف دے په انا سمعنا باندے او هغه په اعتبار دَ معنٰی سره ښکاره دے تاویل ته حاجت نه لری. او دَ دے نه علاوه په اول ایت او سـ۱۶ او سـ۱۷ سـ۱۸ کښ په زور کښ اتفاق دَ قاریانو دے او دارنګ په سـ۱ او سـ۲۰ او سـ۲۱ او سـ۲۲ او سـ۲۳ او سـ۲۷ کښ په زیر ویلو کښ اتفاق دَ قراؤ دے. جَدُّ رَبِّنَا جد په معنٰی دَ عظمت او غِنا او قدرت او نعمتونه او بادشاهی ټولو سره دلته صحیح دے. او جَدّ نیکه ته هم وئیلے کیږی لیکن دغه معنٰی مراد نه ده بعض مفسرینو دا قول لیکلے دے خو صحیح نه دے. او بعض مفسرینو وئیلی دی چه جَدّ لفظ موهم دے نو دَ الله تعالٰی په باره کښ رایاتے په بل مخ )

كَانَ يَقُوْلُ سَفِيْهُنَا عَلَى اللّٰهِ شَطَطًا ④

دا چه وئیل به ئې کم عقلو زموږ نه په الله تعالیٰ باندې ناحقه خبرې.

کښې استعمالول ئې منع دي لیکن دا قول هم غلط دے ځکه په دې ایت کښې او په حدیث کښې ( و تعالیٰ جدك ) نقل دے او هرکله چه دَ یو لفظ په شرع کښې اطلاق اوشي نو ایهام دَ باطلې معنی ورته نقصان نه رسوي.

موهم لفظ خو هغه وخت منع وي چه دلیل شرعي دَ هغې په استعمال باندې موجود نه وي. مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا دا رجوع دَ جناتو ده دَ ځکښي باطلو عقیدو نه ځکه دَ بعض جناتو عقیده وه چه الله تعالیٰ دَ سردارانو پیریانو دَ لونړو سره نکاح کړے دے لکه چه بعض مفسرینو په تفسیر دَ سورة صافات ۱۵۸ کښې لیکلي دي او بعضو عقیده ساتله چه الله تعالیٰ دَ پاره ولد شته په ولد حقیقي او ولد حکمي سره. په اتخاذ دَ صاحبه سره ترکیب عقلي پیدا کیږي ځکه چه صاحبه دَ نوع دَ صاحب نه وي او دَ چا دَ پاره چه وي نو په هغه کښې ترکیب عقلي وي او په اتخاذ دَ ولد حقیقي سره ترکیب حسّي پیدا کیږي ځکه چه ولد جزء وي دَ پلار او تجزّي سره ترکیب حسي حاصلیږي او الله تعالیٰ دَ ترکیب عقلي او حسي دواړو نه پاک دے ځکه چه ترکیب مستلزم دے احتیاج لره او الله تعالیٰ دَ احتیاج نه منزّه دے.

سَفِيْهُنَا مراد دَ دے نه هر هغه کافر او مشرک دے چه الله تعالیٰ لره شریک او ولد او صاحبه ګڼړي او نور خلقو ته دَ دے دعوت ورکوي.

شَطَطًا په اصل کښې بُعد ( لرے والی ) ته وئیلې کیږي نو کومه خبره چه دَ صدق او دَ عدل نه لرے وي هغې ته شطط وئیلې کیږي نو عدوان او دروغ او ظلم او دَ حد نه تیریدلو ته شامل دے لکه چه سورة کهف ۱۴ کښې دي. او مراد دَ شطط نه په دے ځائے کښې نسبت دَ شریک او ولد او صاحبه دے الله تعالیٰ ته. او دا ایت دلالت کوي چه دَ قرآن کریم په علم سره دَ مخلوق حقیقت معلومیږي چه سفیه دے او که رشید دے.

وَّ اَنَّا ظَنَنَّآ اَنْ لَّنْ تَقُوْلَ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ

او یقیناً مونږ گمان کوؤ چه هیچرے به او نه وائی انسانان او پیریان

عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ۝ وَّ اَنَّهٗ كَانَ رِجَالٌ

په الله تعالیٰ باندے دروغ ، او یقیناً وو سړی

مِّنَ الْاِنْسِ يَعُوْذُوْنَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ

د انسانانو نه چه پناه ئے غوختله په سړو د پیریانو نه

فَزَادُوْهُمْ رَهَقًا ۝ وَّ اَنَّهُمْ ظَنُّوْا

نو زیاتی کړه دوی هغوی لره سرکشی ، او یقیناً دوی گمان کوؤ

۵ داهم دلیل دے چه بغیر د علم د قرآن نه انسان ته هرڅوک حق پرست او رشتنی ښکاره کیږی او د حق او باطل تمیز نه شی کولے او دا مرتبه د تقلید جامد ده. کذبًا نسبت د شریك او ولد او صاحبه وغیره.

۶ په دے کښ رد دے په شرك فی الاستعاذه باندے چه دا سبب د (رهق) دے. یعنی په جاهلیت کښ به بعض انسانانو په صحراکښ سفر کوؤ نو پیریانو به په دوی باندے لوبے کولے او ویره ولے ئے ځکه چه د دوی سره ذکر د الله تعالیٰ او صحیح دین او کتاب الله نه وو او دا دفع کوؤنکی د جنّاتو دی) نو د دوی عقیده وه چه د هر صحرا یو ذمه دار (پیرے) دے او هغه مسافرانو ته پناه او امن ورکولے شی نو دوی به وئیل (اَعُوْذُ بِسَيِّدِ هٰذَا الْوَادِىْ مِنْ سُفَهَاءِ قَوْمِهٖ) نو هغه مشر به کشرانو لره د هغه انسان د ضرر ورکولو نه منع کړلو نو دۀ به په امن سره شپه تیره کړله او کله به دغه پیری دوی ته صحیح لار خودله او ورک شوی څیزونه به ئے ورته واپس کول نو د انسانانو عقیده پخه شوه چه دغه جن متصرف او اختیارمند دے نو د هغه په نوم باندے به ئے نذرانے هم ورکولے او دارنګ ابن کثیر د کردم بن ابی سائب واقعه ذکر کړے ده په هغے کښ راغلی دی چه نیمه شپه شوه نو شرمخ راغے نو د ګډے په یو بچی باندے ئے حمله اوکړله نو راعی ټوپ کړلو او اواز ئے اوکړو (یا تے په بل مخ)

كَمَا ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ

| که چه گمان کوئے تاسو چه هیچرے به دوباره ژوندے نه کړی الله تعالیٰ |
|---|

اَحَدًا ﴿۷﴾ وَّاَنَّا لَمَسْنَا السَّمَآءَ فَوَجَدْنٰهَا

| هیڅوا لره ، او یقینًا او لټول موږ خبرونه د اسمان نو اوموندلو موږ هغه |
|---|

مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيْدًا وَّشُهُبًا ﴿۸﴾

| چه ډکه کړے شوے وه د څوکیدارانو سختو نه ، او شغلو نه ، |
|---|

ل يا عامرالوادي جارك اے ذمه وار د دے صحرا خپل همسايه له پناه ی ورکړه نو بومنادی اواز اوکړو او موږ ته نه ښکاره کیدلو چیا سرحان پریکده نو هغه شرمخ هغه بچے د کلا پریخودلو او موږ ته روغ را اورسیدلو. نو مقصد دا چه دا شرمخ نه وؤ بلکه په اصل کښ پیرے وؤ په شکل د شرمخ باندے او نوم د هغه سرحان وؤ نو هرکله چه راعی په مشرد هغوی پناه ی اوغوختله نو هغه مشر هغه سرحان ته اواز ورکړو چه دا بچے پریکده. نو پدے طریقه به د مشرکانو عقیده په پیریانو باندے پخیدله او د هغوی نه به ئے ویره زیاتیدله. فَزَادُوْهُمْ رَهَقًا پدے کښ دوه احتمالونه دی اول دا چه ضمیر د فاعل پیریانو ته او ضمیر د مفعول انسانانو ته راجع دے او رهق نه مراد گمراهی او شرک دے یا ضمیرونه برعکس راجع دی او رهق نه مراد زړورتیا د پیریانو ده.

ک دا هم قول د جنانو دے او اول ضمیر راجع دے انسانانو ته او دویم ضمیر خطاب دے پیریانو ته یعنی دواړه قسمه مخلوق پدے عقیده کښ شریک دی. لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ اَحَدًا مراد د دے نه بعث بعد الموت دے یا مراد د دے نه بعثت د رسول دے یعنی د بعث بعد الموت او د بعثت د رسول نه دواړه د دے پخپل گمان سره منکر دی لیکن په قران اوریدلو سره معلومه شوه چه دا ظن د دواړو باطل دے.

۸ سو دا هم اقوال د پیریانو دی درے جملے دی په اوله کښ ذکر د حال دے په وخت د نزول د قران کښ او په دویمه کښ حال د دوی دے مخکښ د نزول د قران نه او دریمه جمله متعلق ده د اولے جملے سره.

وَّ اَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ ؕ

او یقیناً مونږه وو چه کیناستلو به دغه نه د ناستې په ځایونو کښې د پاره د غوږ ساتنې

فَمَنْ يَّسْتَمِعِ الْاٰنَ يَجِدْ لَهٗ شِهَابًا رَّصَدًا ۙ ⑨

نو څوک چه غوږ ساتنه اوکړه اوس او به مومی ځان لره شغله تیاره ،

لَمَسْنَا د التماس نه دے په معنیٰ د طلب د خبر په سبب د عادتِ سابقه سره. فَوَجَدْنٰهَا الخ وجدانا متعدی دے یو مفعول ته او مُلِئَتْ جمله حالیه ده او حَرَسًا تمیز دے یا مفعول ثانی د ملئت دے او بعضو مفسرینو وئیلی دی چه وجدنٰها دلته متعدی دے دوه مفعولونو ته لیکن دا قول ضعیف دے ځکه چه هغه د وجدان قلبی په معنیٰ کښې وی او دلته وجدان حسی مراد دے. حَرَسًا شَدِيْدًا حرس لفظاً مفرد دے او معنیٰ ئې جمع ده نو شدیدًا ئې مفرد صفت راوړو په اعتبار د لفظ د حرس سره. مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ یعنی مخکښې د نزول د قرآن نه سرکش پیریان به د ملائکو د خبرو د اوریدلو د پاره په آسمان کښې یا د آسمان د لاندے په ډیرو ځایونو کښې کیناستل او د ملائکو نه به ئې د راتلونکے وخت څه خبرے اوریدلے (د باران طوفان زلزلے وغیره په باره کښې) او نور به ئې ورسره د ځان نه دروغ جوړ کړل او هغه به ئې په زمکه کښې د کاهنانو غوږو ته راسول نو خلقو به گمان کوو چه دا کاهنان په غیبو باندے پوهیږی. لیکن د قرآن د نزول په وخت کښې په ذریعه د ملائکو (څوکیدارانو) سره حفاظت اوکړے شو د پاره د دے چه د قرآن کریم په صداقت کښې التباس رانشی.

فائده:- د اهلِ علمو اختلاف دے چه مخکښې د نزول د قرآن نه څوکیداران د شیاطینو د ویشتلو د پاره وو او که نه وو؟ یو قول دا دے چه بالکل نه وو لیکن غوره قول دا دے چه مخکښې هم دا سے حال وو لیکن لگ وو او په وخت د نزول د قرآن کښې ډیر شول لکه چه لفظ د ملئت په دے باندے دلالت کوی. دا رنگ اختلاف دے چه روستو د نزول د قرآن نه شیاطین استراق السمع کولے شی نو د سورة شعراء ۲۲۲ ۲۲۳ نه ښکاره معلومیږی چه اوس هم دوی استراق السمع کوی او اکثر خو په شهب (شغلو) ریاتے په بل مخ)

وَّاَنَّا لَا نَدْرِيْۤ اَشَرٌّ اُرِيْدَ بِمَنْ فِي الْاَرْضِ

او یقینًا موږ نه پوهیږو ایا دَ بدئ اراده کړے شویده په هغه چا چه په زمکه کښ دی

اَمْ اَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا ﴿۱۰﴾ وَّاَنَّا

یا اراده کړیده په دوی رب دَ دوی په حق راوستلو (دَ هدایت)، او یقینًا

مِنَّا الصّٰلِحُوْنَ وَمِنَّا دُوْنَ ذٰلِكَ ؕ كُنَّا

بعض زموږ نه نیکان دی او بعض دَ دے نه سیوا دی. وو موږه

طَرَآئِقَ قِدَدًا ﴿۱۱﴾ وَّاَنَّا ظَنَنَّاۤ اَنْ لَّنْ نُّعْجِزَ اللّٰهَ

دَ لے مختلفو لارو والا، او یقین راغے موږ ته چه هیچرے نه شو عاجز کولے الله تعالیٰ

قتل شی یا زخمی شی او بعض بچ شی نو دَ کاهن په غوږ کښ یوه خبره واچوی او سل خبرے ورسره دَ ځان نه یو ځائے کړی لکه چه صحیح حدیث هم په دے باندے دلیل دے.

سنا شر نه مراد عذاب دے او رشداً نه مراد رسول رالیږل دی یعنی دَ اسمانونو نه جنات منع کولو کښ یو دَ دے دوه خبرو نه وه یا دَ شر نه مراد کفر کول دَ خلقو او رشد نه مراد ایمان راوړل دی یعنی په رالیږلو دَ رسول کښ کفر کول دی دَ منکرینو یا ایمان راوړل دی دَ مؤمنانو. او لَا نَدْرِیْۤ دلیل دے چه جنات په غیبو باندے نه پوهیږی. دَ شر سره ئے ارید مجهول صیغه راوړے ده ځکه چه ادب دا دے چه دَ شر نسبت الله تعالیٰ ته کول نه دی پکار (والشَّرُّ لَیْسَ الیك).

سلا دا هم بیان حال دَ پیریانو دے وړاندے دَ قران اوریدلو نه. یعنی دوی ټول کافران نه وو بلکه دَ انسانانو پشان په دوی کښ هم ډیرے ډلے وے څوک مسلمانان څوک یهودیان څوک نصاریٰ څوک مجوسیان. او حسن بصری نه نقل دے چه په دوی کښ قدریه، مرجئه، خوارج، روافض، شیعه ګان، سنیان وغیره ټول شته. ابن کثیر دَ اعمش روایت راوړے دے چه دَ ګه دَ یو پیری نه تپوس اوکړو چه په تاسو کښ بدعتیان شته هغه اوئیل هاؤ بیا ئے ترینه تپوس اوکړو ډیر تا کاره پکښ څوک دی

فِي الْأَرْضِ وَلَنْ نُّعْجِزَهٗ هَرَبًا ﴿۱۲﴾ وَّاَنَّا

په زمكه كښې او نه شو عاجز كولے هغه لره په تښتې سره ، او يقيناً

لَمَّا سَمِعْنَا الْهُدٰٓى اٰمَنَّا بِهٖ ؕ فَمَنْ يُّؤْمِنْۢ

هركله چه واوريدلو مونږ هدايت نو ايمان راوړو مونږ په هغې . نو چا چه ايمان راوړو

هغه اُوئيل روافض. وَمِنَّا دُوْنَ ذٰلِكَ صالحون نه مراد مؤمنان او دُوْنَ نه مراد كافران مشركان دى يا صَالِحُوْنَ نه مراد كامل مؤمنان او دُوْنَ نه مراد فاسقان مراد دى. طَرَآئِقَ جمع دَ طريقت ده په معنیٰ دَ مذهب او مسلك سره دے او مراد دے نه اهل طرائق دى په حذف دَ مضاف سره يا طرائق په معنیٰ دَ طوائف (ډلے) سره دے نو مضاف ته ضرورت نيشته.

قِدَدًا جمع دَ قِدَّة ده ټكړے ته وئيلے شى او سيرت ته وئيلے شى نو دا تاكيد دَ طريق دے او په تاكيد كښې اشاره ده چه دا ډلے دَ يو بل نه منقطع شويدى دَ ضد او تعصب دَ وجے نه.

سـ۱۲ دا حال دَ دوى روستو دَ استماع دَ قرآن نه دے يا ذكر دَ حال دَ مؤمنانو دَ هغوى دے مخكښې دَ اوريدلو دَ قرآن نه ځكه چه بعضو دَ دوى نه ايمان په تورات باندے راوړے وو لكه چه سورة احقاف سـ۳۰ كښې تير شويدى. ظَنَنَّا ظن مشترك دے كله دَ شك په معنیٰ وى كله دَ گمان په معنیٰ سره وى او كله دَ علم او يقين په معنیٰ سره وى دلته روستنئ معنیٰ مراد ده يعنى په دليلونو او فكر كولو سره يا دَ تورات په آيا تونو باندے دَ ايمان په وجه سره يا دَ قرآن په اوريدلو سره مونږ ته يقين حاصل شويدے چه مونږ عاجز يو او قادر صرف الله تعالىٰ دے. او شربينى ذكر كړے ده چه په علم باندے دَ ظن اطلاق په دے وجه سره شويدے چه عاقل لره پكار دى چه په څه څيز كښې گمان دَ ضرر او نقصان وى دَ هغې نه ځان ډِ دے بچ او ساتى. هَرَبًا نه مراد تښتيدل كول دى آسمان ته نو دَ فِى الْاَرْضِ سره په ئې مقابله صحيح شى يا دَ فى الارض نه مراد په ځائے باندے اوسيدل دى او دَ هرب نه مراد په زمكه كښې منډے وهل دى نو مقابله صحيح ده يعنى په هيڅ حالت كښې دَ الله تعالىٰ دَ قدرت نه لرې كيدل نشى كيدے.

بِرَبِّهٖ فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَّلَا رَهَقًا ⑬ وَّ

په رب خپل نو نه به ویریږی د نقصان او نه د زیاتی نه . او

اَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُوْنَ وَمِنَّا الْقٰسِطُوْنَ ؕ

یقیناً بعض زمونږ مسلمانان دی او بعض زمونږ نه کاږه روان دی .

فَمَنْ اَسْلَمَ فَاُولٰٓئِكَ تَحَرَّوْا رَشَدًا ⑭

نو چا چه اسلام قبول کړو نو دغه کسانو او موندله نیغه لار (هدایت) .

وَاَمَّا الْقٰسِطُوْنَ فَكَانُوْا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا ⑮

او هر چه کاږه روان دی نو دوی دی د جهنم د پاره خشاک .

سلا د دے نه معلومیږی چه تیر شوے ایاتونو کښی حال د قران اوریدلو نه مخکښی ذکر وؤ او په دے کښی د هغې نه روستو حال ذکر کوی .
الْهُدٰى مراد د دے نه قران دے په قرینه د سه سره . اٰمَنَّا به دا دلیل دے چه قران کریم د انس او جن دواړو د پاره کتاب دے او دا اعلان د ایمان خپل دے د پاره د ترغیب ورکولو نورو کسانو ته د دے وجه نه وریسے فَمَنْ يُّؤْمِنْ سره بشارت ذکر کوی . بَخْسًا وَّلَا رَهَقًا نقصان په نیکو کښی او زیاتے په بدو کښی یا مراد د رهق نه د یو تن گناهونه په بل چا باندے اچول دی لکه چه سورة طه سلا کښی تیر شویدی . فَلَا يَخَافُ دا جزا د منْ شرطیه ده او جزم ئے په دے وجه سره نه دے ورکړے چه په دے کښی تقدیر دے یعنی فانه لا یخاف او په بعض قراءتونو کښی فلا یخف په جزم سره راغلی دے .
سلا سلا دا ذکر د حالت د تفرق د دوی دے روستو د نزول د قران نه .
(سوال) په سلا کښی ذکر وؤ چه ډلے ډیرے دی او دلته ئے دوه ډلے ذکر کړے دی ؟ (جواب) دا پشان د سلا سورة حج دے یعنی د ټولو خلاصه دا دوه دی . الْقٰسِطُوْنَ لسان العرب کتاب کښی وئیلی دی چه د دے مصدر قسوط په معنی د جور او د ظلم سره راځی او د دے استعمال صرف په مجرد سره دے او قاسطون په معنی د جائرون سره دے او قسط مصدر په معنی

وَّاَنْ لَّوِاسْتَقَامُوْا عَلَى الطَّرِيْقَةِ لَاَسْقَيْنٰهُمْ

(او دا وحی راغله) چه که داخلق روان شوی په برابرلار باندے نو خامخا څښوو به مونږ په دوی باندے

مَّآءً غَدَقًا ﴿۱۶﴾ لِّنَفْتِنَهُمْ فِيْهِ ؕ وَمَنْ يُّعْرِضْ

اوبه ډیرے۔ دَدے دَپاره چه ازمیښت اوکړو دَدوی په دیکښ۔ او چاچه مخ واړوو

دَ عدل سره دے او په دے کښ اَقْسَط او قَسَط دواړه استعمالیږی۔ تَحَرَّوْا تحری طلب دَخیز دے په ډیر فکر او کوشش سره او اکثر په خیر کښ استعمالیږی۔ رَشَدًا هدایت او خیرعظیم یا نجات او ثواب۔
لِجَهَنَّمَ حَطَبًا (سوال) پیریان دَ اُور نه پیدا دی نو اُور سره څه رنګ عذاب ورکیدے شی؟ (جواب) اګرچه دَدوی ماده دَ اُور پیدائش دے لیکن الله تعالیٰ دوی له داسے بدنونه ورکړی دی چه اور وربانْدے اثر کولے شی لکه چه انسان دَخټے نه پیدا دے لیکن دَ خټے ګذارچه وربانْدے اوکړے شی نو بدن ئے دردکوی۔ او خطیب شربینی جواب کړے دے چه الله تعالیٰ په قیامت کښ دَدوی بدنونه په دَغوښے او ویښے نه جوړکړی نو اور به په هغوی کښ اثر کوی (الله تعالیٰ په هرځیز قادر دے) په دے ایاتونوکښ بشارت اوتخویف دواړه ذکر شول او په دے باندے دَ پیریانو کلام ختم شو۔
سلا ۱۶ دا معطوف دے په انّه استمع سلا باندے یا په ضمیرمجروردَ بِهٖ سلا باندے او دادویمه وحی ده او قول دَ الله تعالیٰ دے په قرینه دَ وَلَاَسْقَيْنٰهُمْ (صیغه دَ متکلم سره)۔ او دویم قول دا دے چه دا قول دَ جناتو دے او ضمیر په استقاموا کښ قاسطینو پیریانو ته راجع دے او لاسقیناهم او لنفتنهم کښ حکایت دَ قول دَ الله تعالیٰ دے۔ لیکن دا تاویل بعید دے۔ بیا په دے ایت کښ دَ مفسرینو دوه اقوال دی اول دا چه دَ الطریقة نه مراد طریقه دَ هدایت او دَ توحید او ایمان ده۔ مَّآءً غَدَقًا مراد دَدے نه وسعت دَروزئے دے لکه چه په سورة نوح سلا سلا کښ ذکر شول او دا رنګ په سورة مائده سلا ۶۶ او سورة اعراف سلا ۹۶ کښ ذکر دی او لِنَفْتِنَهُمْ نه مراد ابتلاء او امتحان دے په سبب دَدنیوی نعمتونو سره بیا په دے قول سره دا بشارت دنیویه دے (پاتے په بل مخ)

عَنْ ذِكْرِ رَبِّهٖ يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا ﴿۱۷﴾

دَ ذکر دَ رب خپل نه نو داخل به کړی دهٔ لره عذاب سخت ته .

وَّاَنَّ الْمَسٰجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ

(او دا وحی ده) چه یقیناً ځایونه د سجدې خاص الله تعالیٰ لره دی نو مه بلئ دَ الله تعالیٰ سره

اَحَدًا ﴿۱۸﴾ وَّاَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ يَدْعُوْهُ

بل څوک (معبودان). (او دا وحی ده) چه هرکله اودریدلو بنده دَ الله تعالیٰ چه بلنه یې کوله دَ هغه

وَمَنْ يُّعْرِضْ اه تخویف دنیوی او اخروی دے. او دویم قول دا دے چه الطریقه نه مراد لار دَ ګمراهئ ده او لاسقیناهم نه مراد استدراج دے لکه سورة انعام ۴۴ او لنفتنهم نه مراد فتنه دَ عذاب ده. عَذَابًا صَعَدًا دا تخویف اخروی دے لیکن قرطبی وئیلے دی چه په دے کښ اول قول حق ته قریب دے ځکه چه استقامت په هدایت کښ استعمالیږی. صَعَدًا صعد په لغت کښ مشقت ته وئیلے شی او صعدا صفت دے په شان دَ صعودا، مصدر نه دے او په لفظ دَ صعد کښ ترقئ دَ عذاب ته اشاره ده او دا رنګ دا نوم دَ یو غر دے په جهنم کښ او مراد په دے کښ عذاب اخروی دے او عذاب دنیوی هم مراد کیدے شی یعنی قحط او مصیبتونه وغیره لکه چه په مشرکین مکه باندے عذاب دَ قحط راغلے وو او س هم دَ قحطونو او دَ ګرانئ او دَ مصیبتونو سبب اعراض دے دَ قرآن نه.

۱۸ دا دریمه وحی ده معطوف ده په اول دَ سورت باندے دویم احتمال دا چه قول دَ پیریانو دے په طریقه دَ دعوت کولو توحید ته. اَلْمَسٰجِدَ دا لفظ شامل دے مسجدونو ته او اندامونو دَ سجده لګولو ته او عام ځایونو دَ سجدے کولو ته او دا اقوال مفسرینو نقل کړیدی او درے مساجد خاصو ته هم شامل دے مسجد حرام، مسجد نبوی او مسجد اقصٰی. لِلّٰهِ دا نسبت دَ الله تعالیٰ تشریفًا او اکرامًا دے دَ دے وجے نه چه په هغے کښ ملکیت دَ غیر نه وی بلکه وقف وی او په هغے کښ په صرفه الله تعالیٰ ذکر کیږی او په دے وجے سره مسجد ته دَ الله تعالیٰ کور وئیلے کیږی لیکن سرهٔ دَ دے نه دَ مسجد نوم کښ بندګانو ته دَ تعارف په حیثیت سره نسبت جائز دے لکه مسجد دَ فلانی او مسجد دَ

كَادُوْا يَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِ لِبَدًا ﴿١٩﴾ قُلْ إِنَّمَآ

نو نزدے دی خلق چه شی په هغه باندے راپنډ۔ ته اووایه یقینا ځه

فلانے قبیلے وغیره لکه چه امام بخاری دَ دے دَپاره په کتاب الجامع الصحیح کښې مستقل باب ایخے دے۔ فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا ابن کثیر وئیلے دی چه په دے کښې رد دے په یهود او نصاریٰ باندے هغوی په خپلو عبادت خانو کښې شرک کوی۔ او په دے کښې رد دَ شرک فی الدعا هم دے او مراد ترینه عام دے په طریقه دَ ذکر دَ خاص او مراد ترینه عام دے یعنی په مسجد کښې رکوع او سجده او بلنه کول غیر الله ته او ذکر دَ نوم دَ غیر الله په طریقه دَ تعظیم سره دا ټول حرام دی او دا حرمت عام دے لیکن تخصیص دَ مساجدو دَ مزید قباحت دَ وجې نه دے او په دے زمانه کښې جاهلانو ډیر شرکی عملونه په مساجدو کښې شوروع کړے دی، څوک په مسجد کښې مونځ دَ اولیاؤ دَپاره کوی څوک په مسجد کښې وظیفه دَ یا رسول الله او وظیفه دَ یا شیخ عبد القادر شیئًا لله کوی څوک دَ مسجد په محراب او دیوالونو باندے یا محمد یاغوث اعظم لیکی دا ټول دَ شرک اعمال دی او دَ دے ایت نه صریح مخالفت کول دی۔ او قرطبی ذکر کړے دی چه په دے کښې اشاره ده چه په مسجد کښې تجارت مه کوئ او دَ ورک شوے څیزونو دَ طلب دَپاره اوازونه مه کوئ دنیوی مجلسونه پکښې مه کوئ۔ هاں په مسجد کښې درس دَ دینی کتابونو او قضاء کول قیدیان بندول او دینی شعرونه وئیل جائز دی په سبب دَ هغه احادیثو سره چه دَ دے په جواز باندے دلالت کوی۔

۱۹ دَ دے ایت په تفسیر کښې دَ مفسرینو مختلف اقوال دی اول قول دا خلورمه وحی ده معطوف دے په اول دَ سورت باندے او عبد الله نه مراد محمد صلی الله علیه وسلم دے۔ یَدْعُوْ په معنیٰ دَ عبادت دے مونځ کول او قرآن لوستل مراد دی۔ كَادُوْا اه مراد دَ دے نه حالت پیریانو دے چه په نبی صلی الله علیه وسلم باندے دَ قرآن لوستلو یا مونځ کولو په وخت په ګڼره سره راپنډ کیدل دَپاره دَ اوریدلو او دَ مینے محبت دَ وجے نه۔ دویم قول دا دے چه عَبْدُ اللّٰهِ نه مراد نبی صلی الله علیه وسلم ربانے په بل مخ)

اَدْعُوْا رَبِّىْ وَلَآ اُشْرِكُ بِهٖٓ اَحَدًا ﴿٢٠﴾ قُلْ

| بلنه کوؤم | دَ رب زما | او نه | شریکوؤم | دَ هغه سره هیڅوک | . | نه اُو ایه |
|---|---|---|---|---|---|---|

او هر مؤحد دعوت کوؤنکے دے توحید ته په هره زمانه کښ او يَدْعُوْ نه مراد دعوت الے الله دے او كَادُوْا نه مراد انسانان مخالفت کوؤنکی دی دَ هغه دَ مقابلے کولو او دَ بے عزته کولو او دَ منع کولو دَ پاره په هغه باندے راپنډ یږی۔ دریم قول دا دے چه دا قول دَ هغه پیریانو دے چه قرآن ئے اوریدلے وؤ او حال دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ صحابه کراموئے لیدلے وؤ نو دَ عبدالله نه مراد نبی صلی الله علیه وسلم دے او كَادُوْا نه مراد صحابه کرام دی چه دَ ډیر محبت او طاعت دَ وجے نه نبی صلی الله علیه وسلم ته په نزدے کیدل او جمع کیدل۔ څلورم قول دا دے چه دا قول دَ پیریانو دے او دَ عبدالله نه مراد نبی صلی الله علیه وسلم دے او كَادُوْا نه مراد مخالفت کوؤنکی دی۔ پنځم احتمال دا دے چه دا قول دَ الله تعالیٰ دے او عبدالله نه مراد هر داعی دَ حق دے او كَادُوْا نه مراد عام خلق دی چه روستو دَ مرګ دَ هغه نه دَ هغه په قبر باندے میلے او عرسونه جوړوی۔ لِبَدًا دا جمع دَ لِبدة ده هغه څیز چه اجزاء ئے دَ یو بل دَ پاسه جمع وی۔ او دا رنګ هغه وېښته کنړ چه دَ یو بل سره پیوست وی او یو لمبے تړینه جوړ شی۔ او دلته مراد دَ خلقو راجمع کیدل دی په یو ځائے باندے۔ ابن کثیر ویلی دی چه په دے کښ دویم قول غوره دے په قرینه دَ مابعد سره۔

۲۰ سلا دا هم امور وحییه دی په امر دَ الله تعالیٰ سره نبی صلی الله علیه وسلم ته. یعنی که چرے دا خلق مخالفت کوی نو ته ورته حقیقت حال بیان کره۔ په دے کښ رد دَ شرك فی الدعاء دے او رد دَ شرك فی الدعا مستلزم دے رد دَ شرك په ټولو عباداتو کښ ځکه چه الدعا هو العبادة (الحدیث)۔ وَلَآ اُشْرِكُ دا لفظ صریح دلالت کوی چه دُعا دَ غیرالله نه غوختل شرک دے۔ اَحَدًا نکره په سیاق دَ نفی کښ ده عموم فائده کوی. قُلْ اِنِّيْ لَآ اَمْلِكُ دا هم وحی ده او په دے کښ علت دے دَ ما قبل دَ پاره چه شریک فی الدعا ځکه نیشته چه شریك فی التصرف نیشته او په دیکښ رد دَ شرك فی التصرف دے

قُلْ إِنِّي لَا أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا رَشَدًا ﴿۲۱﴾

ته اُوايه يقيناً زۀ نه لرم اختيار تاسو لره دَ هيڅ ضرر او نه دَ فائدے .

قُلْ إِنِّي لَن يُجِيرَنِي مِنَ اللَّهِ أَحَدٌ ۙ وَّلَنْ

يقيناً زۀ ، هيچرے پناهي نشي راکولے ما لره دَ الله تعالیٰ نه هيڅوک ، او هيچرے

أَجِدَ مِن دُونِهِ مُلْتَحَدًا ﴿۲۲﴾ إِلَّا بَلٰغًا

او به نه موم سيوا دَ هغه نه ځائے دَ پناهي ، مګر رسول کوؤم) رسول

مِّنَ اللَّهِ وَرِسٰلٰتِهِ ۚ وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ

دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه او پيغامونه دَ هغه . او چا چه نافرماني اوکړه دَ الله تعالیٰ او دَ رسول دَ هغه

فَإِنَّ لَهُ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ﴿۲۳﴾

نو يقيناً هغه لره اُور دَ جهنم دے هميشه به وی په هغے کښ هميشه .

---

دَ نبی صلی الله عليه وسلم نه . ضَرًّا وَّلَا رَشَدًا دا الفاظ عام دی شامل دی هر شر او خير ته که بدنی وی او که مالی وی دنيوی او که دينی وی او دا ــ په سورة اعراف ۱۸۸ او سورة يونس ۴۹ کښ هم تير شويدی ليکن هلته نفی دَ مِلك وه دَ خپل ځان دَ پاره او دلته نفی دَ مِلك ده دَ بل چا دَ پاره. په دے کښ استثناء نه ده ذکر په شان دَ سورة اعراف او يونس نو اشاره ده چه هغه استثناء منقطع ده لازم نه ده چه هر ځائے دِ ذکر کړے شی او په نه ذکر کولو کښ رد دے دَ وهم دَ اشتراك .

۲۲ ــ ۲۳ دا هم وحی ده او په دے کښ رد دَ شرك فی الاستعاذه (پناهی غوښتل) دے. يعنی که بالفرض زۀ توحيد او قرآن بيانول پريږدم نو دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه ما لره هيڅوک بچاؤ نشی راکولے .

لَن يُجِيرَنِي مِنَ اللَّهِ أَحَدٌ او دَ دے جملے او دَ روستو په مينځ کښ ډير فرق دے اول دا چه په غير دَ طلب نه پناهی څوک نشی ورکولے او سره دَ طلب او کوشش نه هم څوک پناهی نشی ورکولے دويم دا چه مصيبت دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه مقرر وی نو هيڅوک ئے نشی واپس کولے (راپاتے په بل مخ)

حَتّٰىٓ اِذَا رَاَوْا مَا يُوْعَدُوْنَ فَسَيَعْلَمُوْنَ

ترڅو چې اووینې چې هرکله او وینې هغه (عذاب) چه دوی سره ئې وعده کیدیشی نو زر ده چه پوهه به شی

مَنْ اَضْعَفُ نَاصِرًا وَّاَقَلُّ عَدَدًا ﴿۲۴﴾

چه څوک دے کمزورے امدادی او کم (لږ) شمارے والا۔

اوچه کوم مصیبت راغلے وی نو دَ هغے نه دَ بچ کیدلو هیڅ ځائے نیشته. دریم داچه په اوله جمله کښ نفی دَ اجاره (پناهی ورکول) دَ روح والا دَ طرف نه وی او په دویم کښ نفی دَ پناهیٔ ده دَ غیر ذی روح نه (یعنی مکان، غار، قبر، بت وغیره). مُلْتَحَدًا دَ لحد نه ماخوذ دے مائل کیدلو ته وئیلے شی یعنی هغه ځائے چه هغے ته میلان اوکړے شی دَ پاره دَ بچ کیدلو دَ مصیبتونو نه نو دا دَ ظرف صیغه ده۔ اِلَّا بَلٰغًا اه په دے استثنا کښ درے اقوال دی اول قول دا چه استثنا منقطع ده ځکه چه بلاغ دَ ماقبل دَ جنس نه نهٔ ده نو په دیکښ فعل پټ دے لکن ابلغ بلاغا یا تقدیر دا دے ان بلغت عن الله رحمنی. دویم قول دا چه دا استثناء متصله ده بنا په دے چه بلاغ سبب دَ پناهیٔ دے نو حاصلِ معنیٰ دا ده چه هرگز نه مومم هیڅ څیز دَ پناهیٔ مگر تبلیغ دَ رسالت چه په دے سره امن دَ عذاب نه حاصلیږی. دریم قول دا استثناء ده دَ لَآ اَمْلِكُ لَكُمْ اه یعنی دَ کفر او ایمان او دَ شر او خیر اختیار نه لرم مگر دَ تبلیغ کولو اختیار په توفیق دَ الله تعالیٰ سره لرم. مِنَ اللّٰهِ دا صفت دَ بلاغًا دے یعنی بلاغًا کائنًا من الله تعالیٰ یا مِن په معنیٰ دَ عن سره دے صله دَ بلاغًا ده. وَرِسٰلٰتِهٖ دا معطوف دے په بلاغًا باندے او بلاغ نه فعل دَ تبلیغ مراد دے او دَ رسالت نه نصاب دَ تبلیغ مراد دے یا معطوف دے په لفظ الله باندے یعنی بلاغًا عن رسالاته. وَمَنْ يَّعْصِ دا تخویف اخروی دے روستو دَ بلاغ نه منکرینو ته. اَبَدًا دلیل دے چه مراد دَ عصیان نه کفر او شرک دے ځکه دَ عصیان مطلق صَرف کامل ته کیږی.

۲۴ دا متعلق دے دَ تخویف سره حَتّٰىٓ ابتدائیه دے یا حتی دَ پاره دَ غایٔ دے تقدیر دَ عبارت دا دے لَا يَزَالُوْنَ عَلٰى عِصْيَانِهِمْ وَكُفْرِهِمْ حَتّٰىٓ اه

قُلْ اِنْ اَدْرِیْۤ اَقَرِیْبٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ اَمْ
ته اُوایه نه پوهیږم زهٔ آیا نزدې دے هغه چه تاسو سره وعده کیدیشي یا به
یَجْعَلُ لَهٗ رَبِّیْۤ اَمَدًا ﴿۲۵﴾ عٰلِمُ الْغَیْبِ
وړکوي هغې له رب زما لرې والے. هغه عالم دے په ټولو پټو خبرو نو
فَلَا یُظْهِرُ عَلٰی غَیْبِهٖۤ اَحَدًا ﴿۲۶﴾ اِلَّا مَنِ ارْتَضٰی
پس نه ورکوي خبر دَ خپلو غیبو هیچا ته لیکن هغه چه غوره ئې کړی

او بنا پدے بانده مایوعدون عام دے که دنیوي عذاب وي او که اخروي.
مَنْ اَضْعَفُ اه یعنی په دنیا کښ کافران په خپل دنیوي قوتونو او په الهو باطلو او په کثرت دَ افرادو بانده فخر کوي لیکن په وخت دَ عذاب کښ به دَ دوي کمزوري او کموالے ښکاره شي او هرچه حق پرست خلق وي نو هغوي ځان کمزوري گنړي او په ډیر والي بانده فخر نه کوي لیکن دَ نصرت دَ الله تعالیٰ امید وته ساتي.

۲۵ دا جواب دَ سوال مقدر دے دَ مشرکینو چه دَ ذکر دَ مایوعدون نه روستو دوي وائي متیٰ هذا الوعد ان کنتم صادقین، حاصل دَ جواب دے په نفي دَ علم غیب سره دَ نبي صلی الله علیه وسلم نه یعنی راتلل دَ عذاب یقیني دي اګرچه نزدیکت او لرے والی بانده مونږ ته علم نیشته نو دَ هغې نه ویره ضرور پکار ده.

(سوال) په حدیث صحیح سره ثابت دي چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي بعثت انا والساعة کهاتین یعني نبي صلی الله علیه وسلم سبحه او مینځنۍ ګوتې دواړه یو ځائے کړے او فرمائیل ئې چه قیامت زما بعثت پسے داسے قریب دے لکه چه سبحه ګوته په دنګ والي کښ مینځنۍ ګوتې ته نزدے ده نو نزدیکت خو ورته معلوم وؤ؟

(جواب) مراد په ایت کښ مقدار معیّنه دَ قرب دے یعني سل کاله یا زر کاله مثلاً نو دا ورته معلوم نه وؤ او صرف قرب ورته معلوم وؤ لکه په سورة احزاب ۶۳ کښ سورة شوری ۱۷ کښ دي.

۲۶ عٰلِمُ الْغَیْبِ صفت دے دَ ربّي یا خبر دَ مبتدا (رپاتے نه پل مخ)

مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّهٗ يَسْلُكُ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ

دَ رسالت دَپاره نو یقینًا روان کړی مخ دَ هغه ته

وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا ﴿۲۷﴾ لِّيَعْلَمَ اَنْ قَدْ

او روستو دَ هغه ته څوکیداران . دَدے دَپاره چه پوهه شی چه یقینًا

محذوف دے یعنی الله عالم الغیب دے دا اثبات دَ صفت دَ علم غیب دے دَ الله تعالیٰ دَپاره او فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى اه په دیکښې نفی دَ علم غیب ده دَ ماسِویٰ الله نه او اَحَدًا نکره په سیاق دَ نفی کښې ده عام ده پیغمبرانو، اولیاؤ، کاهنانو نجومیانو ټولو ته غَيْبِهٖ اضافت دَپاره دَ تخصیص دے او غیب الله تعالیٰ غیب حقیقی دے یعنی چه دَ هغے دَ حصول دَپاره هیڅ سبب نیشته.
حواس، عقل او وحی او بے اسبابو علم صرف دَ الله تعالیٰ دے او دَ مخلوق دَ علم دَپاره یو دَ دے درے اسبابو نه ضرور موجود وی.
۲۷ دا پشان دَ سورة آل عمران ۱۷۹ دے او دا استثناء منقطع ده ځکه چه رسولانو ته کوم علم ورکړے شوے دے نو هغه په سبب دَ وحی سره دے او هغے ته غیب حقیقی نشی وئیلے کیدے نو علم دَ انبیاء علیهم السلام و ته غیب نشی وئیلے کیدے. دا رنګ پوهه دَ ولی چه په کشف او الهام سره ده نو هغه هم په سبب سره ده هغے ته علم هم نه وئیلے کیږی ځکه چه علم یقین ته وئیلے شی او کشف والهام سره یقین نه حاصلیږی او غیب ورته هم نه وئیلے کیږی دا رنګ دَ کاهنانو او دَ نجومیانو دَ خبرونو دَپاره اسباب دی شیطانی او اوصاف او حرکات دَ ستورو نو دا هم علم نه دے ځکه چه علم یقین ته وئیلے کیږی او دا امور ظنیه دی او دے ته غیب هم نشی وئیلے کیدے ځکه هغه دَ اسبابو په وجه سره وی. نو څوک چه په علم دَ انبیاء علیهم السلام باندے یا په خبرونو دَ اولیاؤ یا کاهنانو نجومیانو باندے دَ علم غیب اطلاق کوی نو دے دَ شریعت دَ اصطلاحاتو نه جاهل دے او که دَ هغوی علم دَ علم دَ الله تعالیٰ سره بالکل مشابه ګنړی او صرف په ذاتی او عطائی سره ئے فرق کوی نو دا صریح شرک دے.
(فائده) دَ مِنْ رَّسُوْلٍ په ذکر سره زمخشری دَ کرامت نه انکار کړے دے

أَبْلَغُوْا رِسٰلٰتِ رَبِّهِمْ وَأَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ

| رسولے دی دوی پیغامونه دَ رب خپل او راګیر کړیدی هغه چه دَ دوی سره دی |
|---|

وَأَحْصٰى كُلَّ شَيْءٍ عَدَدًا ﴿۲۸﴾

| او شمارلے دے هر څیز په پوره شمار لو سره ۔ |
|---|

اوخطیب شربینی په هغه باندے تفصیلی رد کړے دے لیکن حقیقت دا دے چه دَ دے دَکرامت دَ اثبات او نفی سره تعلق نیشته ځکه چه په کشف او الهام (چه کرامت دے) سره کوم خبر حاصلیږی نو هغه شرعًا علم نه دے او غیب حقیقی نه دے هاں علم دَ انبیاء علیهم السّلام په سبب دَ وحی سره علم دے لیکن غیب نه دے ۔
فَإِنَّهُ يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ اه په دے کښی جواب دَ سوال دے سوال دادے چه هر کله نبی علم غیب نه لری نو بیا دَ هغه کمال څه دے؟ او دا رنګ دَ هغه دَ وحی حفاظت څه رنګه کیدے شی؟ نو په دے جملے سره جواب اوکړیشو چه کمال یې دا دے چه الله تعالٰی هر نبی لره او دَ هغه وحی لره حفاظت کوی. دَ ضحاك نه روایت دے چه دَ هر نبی سره څو کیداران ملائک وی چه دَ شیطانانو نه یې ساتی که چرے شیطان ورته په شکل دَ ملك سره متشکل شی نو ملائک خبر ورکړی چه دا شیطان دے او که چرے ملك ورله راشی نو خبر ورکړی چه دا فلانے مَلك دے۔ دا رنګ په وخت دَ وحی کښی ملائک دَ هر طرف نه چاپیره وی هسے نه چه شیاطین پکښی تحریف تلبیس اوکړی۔ رَصَدًا په دے کښی مفرد تثنیه جمع مذکر مؤنث یو شان وی۔

---

۲۸ په دے کښی فایده دَ حفاظت ذکر کوی۔ لِيَعْلَمَ أَنْ قَدْ أَبْلَغُوْا په دے کښی ډیر توجیهات دی اول دا چه لیعلم ضمیر نبی صلی الله علیه وسلم ته راجع دے او ابلغوا ضمیر رسولانو ته راجع دے او دَ دے نه عکس عبارت کښی تقدیر دا دے (اخبرناه بحفظ الوحی) خبر ورکړو مونږ دے نبی صلی الله علیه وسلم ته په حفاظت دَ وحی سره دَ پاره دَ دے چه یقین اوکړی۔ دویمه توجیه دا ده چه لیعلم (پاتے په بل مخ)

ضمیر نبی صلی اللہ علیه وسلم او قد ابلغوا ضمیر ملائکو ته راجع دے.
دریمه توجیه دا ده چه ضمیر دَ لیعلم الله تعالیٰ ته راجع دے او مراد
ترینه علم اظهار او تمیز دے او ابلغوا ضمیر راجع دے ټولو رسولانو
ته۔ څلورمه توجیه دا ده چه ضمیر دَ لیعلم الله تعالیٰ ته راجع دے او مراد
ترینه علم اظهار او تمیز دے او ابلغوا دَ هغه نه علاوه نورو رسولانو
ته راجع دے. پنځمه توجیه دا ده چه ضمیر دَ لیعلم مکذب او منکر ته راجع
دے او ابلغوا ټولو رسولانو ته راجع دے۔ وَاَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ دا معطوف
دے په فاته یسلك باندے یا په ان قد ابلغوا، یعنی چه یقین راشی دَ
رسولانو چه الله تعالیٰ احاطه کړیده په خپل علم سره دَ رسولانو په ټولو
حالانو باندے. بِمَا لَدَيْهِمْ مراد دَ دے نه احکام او شرائع او ټول
احوال دَ انبیاء علیهم السلام دی. وَاَحْصٰی كُلَّ شَیْءٍ عَدَدًا په دے کښی
زیات تعمیم دے په نسبت دَ اولے جملے سره ځکه چه کل شیء شامل دَ
ذرّاتو دَ اوبو او دَ دریابونو ته او څاڅکو دَ بارانونو ته او دا صریح دے چه
علم دَ الله تعالیٰ په جمیع ما کان او ما یکون باندے ازلاً ابداً دے او دا صفت
هیڅ نبی او بزرګ او کاهن وغیره لره نیشته.

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة جن بتوفیق الله تعالیٰ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة المزمل

**ربط دَ دے سورت** دَ ماقبل سره په ډیرو وجوهو دے اوله وجه دا ده چه مخکښ سورتونوکښ تفصیلاً رد ووُ په اقسامو دَ شرک باندے نو په دے سورت کښ ترغیب دے قران لوستلو ته دَ پاره دَ استقامت په توحید باندے۔ دَوَیمه وجه دا ده چه مخکښ دوه سورتونوکښ دعوت او طریقے دَ دعوت ذکر شوے نو په دے سورت کښ تیاری کول دَ پاره دَ دعوت ذکر کوی۔ دَرَیمه وجه دا چه مخکښ سورت کښ معلومه شوه چه قران کریم تاثیر اوکړو په ډیر سرکش مخلوق باندے چه جنّات دی نو په دے سورت کښ ترغیب ورکوی چه هرکله دا تاثیر کوؤنکے کتاب دے نو دا اولولئ او نورو ته یئ اورسوئے چه په هغوی کښ اثر اوکړی۔

**دعویٰ دَ دے سورت** ترغیب دے اهل قران ته په قیام اللیل دَ پاره دَ قران په توکل علی الله سره، سرهٔ دَ عقیدے دَ توحید نه. او دَ ترغیب دَ پاره ئے شپاړس صیغے دَ امر ذکر کړے دی او اته کرته تاکیدات په حرف دَ اِنَّ سره او په دے ټولوکښ مقصود تیاری کول دی دَ پاره دَ دعوت الی القران و التوحید ۔ماخذ دَ دعوے په ۲ او ۳ او ۴ کښ دے۔

**خلاصه دَ سورت** دا ده ترغیب ورکوی په قیام اللیل باندے په توقیت سره په درے قسمونو سره او ذکر کړے دے مقصد دَ قیام په ۴ کښ په ذکر دَ درے علتونو سره دَ درے امورو دَ پاره (قیام په شپه کښ او استثناء) او علتونه په ترتیب سره په ۵ ۶ ۷ کښ دی ۔بیا ذکر کړے دے ادب دَ قران په ۸ او مقصد دَ قران (پلټے په یل مخ)

په ۹ کښې بيا تسلي او تشجيع ده قرآن والو لره په څلور امورو سره چه متعلق دي په مخالفينو پورې په ۱۰ ۱۱ کښې. بيا تخويف اخروي دے منکرينو ته په ۱۲ ۱۳ ۱۴ کښې او مثال دَ تخويف دنيوي په واقعه دَ فرعون سره ذکر کوي سره دَ ذکر دَ سبب دَ عذاب ته په ۱۵ ۱۶ (اکثر او په يکښې تسلي او تصديق دَ نبي صلى الله عليه وسلم هم شته دے) بيا تخويف اخروي په ۱۷ ۱۸ کښې دے او ترغيب دے قرآن ته دَ پاره دَ نجات دَ عذاب ته په ۱۹ کښې بيا په دويمه رکوع کښې ذکر کوي تخفيف په قراءة دَ شپه کښې چه تحديد لازم نه دے او سبب دَ تخفيف وجود دَ معذورينو او مجاهدينو او تاجرانو دے په قرآن والو کښې (او دا درے واړه تخفيف ته محتاج دي) بيا پنځه امور ئې ذکر کړے دي دَ پاره دَ تثبت په ايمان او عمل بالقرآن باندے په ۲۰ کښې.

تفسير ۱ دا خطاب دے نبي صلى الله عليه وسلم ته او دا لفظ مأخوذ دے دَ زمل نه دَ هغې معنیٰ حمل ده او دويمه معنیٰ انغختل دي په جامه کښې نو په دے کښې دوه قولونه دي اول قول دا چه پورته کوونکے دَ ذمه وارئ دَ نبوت او دَ قرآن او مزمل په معنیٰ دَ متزمل دے يا په معنیٰ المزمل نفسه په تقدير دَ مفعول سره دے دويم قول دا چه ځان پټونکے په جامه کښې، دلته اوّل قول غوره دے ځکه چه کوم روايات راغلي دي چه نبي صلى الله عليه وسلم کورته راغے او خديجه رضى الله عنها ته ئې اُوئيل چه په ما باندے جامه واچوه هغه په وخت دَ نزول دَ سورة علق او بيا دَ سورة مدثر په باره کښې دي دَ سورة مزمل په باره کښې صرف دَ بزار يو روايت ابن کثير نقل کړے دے ليکن په هغې کښې راوي معلى بن عبد الرحمٰن متفرد دے هيڅوک ئې موافقت نه دے کړے. تفسير قاسمي کښې اول قول غوره کړے دے.

قرطبي دَ سهيلي نه نقل کړے دي چه څوک وائي چه مزمل دَ نبي صلى الله عليه وسلم اسم (نوم) دے دا غلط وائي هاں دَ هغه صفت وؤ بيا خطاب په دے صفت سره دَ دوه فائدو دَ پاره دے. اوله فائده، ملاطفت دے يعني انسان چه په يو حال او کار کښې مشغوله وي او دَ هغې مناسب صفت

# نِّصْفَهٗٓ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيْلًا ۝٣ اَوْ زِدْ عَلَيْهِ

| نیمه دَ هغې | یا | کم کړه | دَ هغې نه | لږ | یا زیاتی کړه په هغې باندې |
|---|---|---|---|---|---|

ورله کیخودلے شی او هغه صفت دلیل دَ رضا او دَ خوشحالئ وی.
دویمه فائده تعمیم ته اشاره ده یعنی څوک چه دَ قران کریم او دَ سنت داعی دے نو دا خطاب هغه ته شامل دے.
سـ دَ قیام اللیل نه مراد مونځ دَ تهجد دے په عرف دَ شرع کښ. هسے اودریدل یا بیداری مراد نه ده دَ قیام اللیل په نبی صلی الله علیه وسلّم باندے دَ فرض کیدلو اختلاف دے لیکن قرطبي غوره کړیده چه اول وخت کښ فرض وو ځکه چه په ابتدا دَ دعوت کښ دَ ډیر محنت ضرورت وی او روستو بیا تخفیف راغے یعنی فرضیت ئے معاف شو سنتیت (سنت کیدل) ئے باقی پاتے شو لکه چه دَ سورت په اخری ایت کښ به راشی.
اِلَّا قَلِيْلًا دا استثناء ده دَ اللیل نه، الف لام په اللیل کښ دَ پاره دَ استغراق دے او استغراق دَ اجزاؤ دے نو معنیٰ دا ده چه ټوله شپه قیام کوه مګر څه ترینه کم کړه یا استغراق دے دَ جزئیاتو (افرادو دے) یعنی هره شپه قیام کوه مګر کله کله پریږده دَ عذر دَ وجے نه. او استثناء دَ پاره دَ شفقت ده ځکه چه دَ جسد دَ پاره حق دَ استراحت شته دے. او قلیل او ناقص کښ فرق دا دے چه قلیل دَ کثیر په مقابله کښ وی نو دَ نِصف دَ څیز نه کمے حصّے ته وئیلے شی او ناقص مطلق کم ته وئیلے شی اګرچه دَ نیمے نه زیات وی. او کله کله دَ یو بل په معنیٰ کښ هم استعمالیږی.
سـ سـ په دے کښ اختیار ورکول دی په درے څیزونو کښ نیمه دَ شپے او کم دَ نیمے نه یعنی ثلث او زیات دَ نیمے نه یعنی ثلثان په قرینه دَ روستو ایت سره چه په هغے کښ ئے عمل دَ نبی صلی الله علیه وسلّم او دَ صحابه کرامو ذکر کړے دے (اِنَّكَ تَقُوْمُ اَدْنٰى مِن ثلثي الليل و نصفه و ثلثه).
(سوال) نصفه بدل دے دَ قلیلا نه لیکن دا خو دَ معنیٰ په لحاظ سره صحیح نه دے په دوه وجوهو سره اوله وجه دا ده چه قلیل دَ نیم نه کم ته وئیلے شی نو دَ نصف بدلیت صحیح نه دے دویمه وجه دا ده زِدْ عَلَيْهِ کښ دوه ثلثونه مراد دی نو دا خو دَ قلیل نه زیاتے په بل مخ)

وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا ۝۴ اِنَّا سَنُلْقِيْ

او صفا لوله قـراٰن په صفا لوستلو سره - یقینًا دالـــېږو موږ

زیات شول نو دَ هغې نه بدلیت نه صحیح کیږی ؟
(جواب) په څلورو وجوهو سره دے اوله وجه اخفش وئیلے دی چه دلته اَوْ مقدر دے یعنی او نصفه نو دا عطف دے، په قلیلًا باندے بدل نه دے. دویمه وجه زجاج وئیلے دی چه نصفهٗ بدل دے دَ اللیل نه دَ قلیلًا نه بدل نه دے او اِلَّا قلیلًا استثناء ده، دَ نصف نه مستثنیٰ مقدم کړے شویده په مستثنیٰ منه باندے او ضمیرونه په منه او علیه کښې نصف ته راجع دی معنیٰ دا ده قیام کوه دَ شپے یعنی نیمه مګر کم کړه او کمے او کړه دَ نصف نه یا زیات کړه په نصف باندے تر ثلثین پورے. په دے توجیه باندے اعتراض دا دے چه په دے توجیه سره تکرار راځی په مینځ دَ الا قلیلا او انقص کښې. په معنیٰ کښې دریمه توجیه دَ شاه ولی الله نه نقل ده چه نصفهٗ بدل دے دَ اللیل نه او اللیل نه مراد (استغراق افراد دے) یعنی هره شپه، او الا قلیلا استثناء دَ اللیل نه ده یعنی کله کله قیام مه کوه دَ عذر دَ وجے او هر کله چه قیام کوے نو نصف کوه یا دَ هغې نه کم کړه یا دَ هغې نه زیات کړه. څلورمه توجیه دا ده چه نصفه بدل دے دَ اللیل نه او اللیل نه مراد استغراق دَ اجزاؤ دے لیکن قلیل مقابل دَ کثیر مراد نه دے (چه خاص شی په کم دَ نصف پورے) بلکه مطلق نقصان مراد دے معنیٰ دا ده قیام کوه ټوله شپه مګر کم کړه دَ ټولے نه او تفصیل دَ کموالی دا دے چه نصفه او انقص اه.
وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ په دے کښې ذکر دَ مقصد دَ قیام اللیل دے چه هغه ترتیل دَ قراٰن دے ترتیل عبارت دے دَ یوڅو اوصافو نه یو دا چه هر حرف په خپل مخرج کښې اداکړی دویم دا چه هر حرف په خپل صفت سره اداکړی مجهوره مهموسه شدیده وغیره. دریم دا چه په آرام آرام سره ئې اداکړی په تادئې سره دِے نه وی. څلورم تدبر دَ معنے ورسره وی پنځم دا چه دَ مَدّ په ځائے کښې مَدّ وی او دَ قصر په ځائے کښې قصر وی شپږم دا چه دَ وقف په ځائے کښې وقف وی.

عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيْلًا ⑤ اِنَّ نَاشِئَةَ الَّيْلِ

| په تا باندے وینا درنه . یقینًا پاڅیدل دَ شپې |
|---|

او دَ دے نه استدلال کړے شویدے په وجوب دَ علم تجوید او قراءت سره دا رنګ دا دلیل دے چه لګ قراءة سرهٔ دَ تدبر او ترتیل نه افضل دے دَ ډیر قراءة نه په تلوارے سره ځکه چه مقصد دَ قران نه پوهه او فکر کول دی په معانی کښ. نو حاصل دا دے چه داعی دَ حق له پکار دی چه په قیام اللیل کښ قران په تدبر سره لولی دَ تیارئے دَ دعوت دَ پاره لکه چه دَ صبا دَ درس دَ پاره عالم دَ شپې مطالعه او مراجعه کوی. تَرْتِيْلًا دَ دے ایت په تفسیر کښ خطیب شربینی تقریبًا شل اداب دَ قران لیکلے دی پو دا دے لکه چه په لوستلو کښ وضاحت پکار دے نو دا رنګ لیکل دَ قران هم واضح ضروری دی.

ﮥ دا علت دے دَ قُمْ (وجوب قیام) دَ پاره یعنی دَ درونه خیز پورته کوؤلو دَ پاره قیام (اودریدل) ضروری وی په تاسته او تا رستیا باندے کار نه چلیږی.

ثَقِيْلًا ثقل په ډیر وجوهو سره دے اول خو په نزول کښ چه په سختۍ یخنی کښ به په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے خولے راتلے دویم په عمل کولو کښ دریم په دعوت کولو کښ ځکه چه په دعوت دَ قران کښ قربانی دَ بدن او دَ مال او دَ وخت ضروری ده، څلورم درونه والے په اعتبار دَ اکرام او عزت سره پنځم درونه والے دَ اجر و ثواب دے په میزان کښ شپږم درونه دے په منافقانو او مشرکانو باندے اُوم درونه والے په اعتبار دَ کثرت دَ علومو او احکامو سره دے یو عقل دَ دے دَ ادراک دَ پاره نه شی کافی کیدلے شربینی وئیلی دی چه لفظ ثقیل ډے ټولو معانو ته شامل دے.

هِیَ اَشَدُّ وَطْاً وَّ اَقْوَمُ قِیْلًا ۞ اِنَّ لَکَ

دا کلک برابرونکی دے د زړه او ښه سیده کوونکې د وینا دے۔ یقینًا ستا د پاره

فِی النَّهَارِ سَبْحًا طَوِیْلًا ۞ وَاذْکُرِ اسْمَ

په ورځ کښې شغل اوږد دے۔ او یادوه نوم

سے دا علت دے د اَللَّیْلِ د پاره یعنی د قیام تخصیص په شپه پورے د دے وجه نه دے چه فکر او سوچ ښه برابر وی۔ سیوطی د جاحظ نه نقل کړے دی چه معانی راویستل د قران نه د شپے په وخت کښې ښه اثرناکے او پوره موافق وی د حق سره په نسبت د هغے چه د ورځے را ویستلے کیږی۔ نَاشِئَةَ د نشاء نه ماخوذ دے او مصدر دے په معنٰی د قیام سره دے یا په معنٰی د اوقاتو او د ساعاتو د شپے سره دے په تقدیر د ان ساعات اللیل الناشئة، یا موصوف حذف شو او صفت د هغے په ځائے باندے قائم شو۔ اَشَدُّ وَطْاً موافقت د زړه او د عقل یو بل سره د پاره د تدبر د معانیو، یا موافقت د زړه د غوږ سره د پاره د اوریدلو د بل چا نه۔ وَّ اَقْوَمُ قِیْلًا برابروونکے د ژبے د لوستلو د الفاظو د پاره۔ په دواړو کښې فرق دا دے چه اول وصف د استخراج د حکمتونو او معانیو دے او دویم وصف د پاره د تصحیح د الفاظو او حرفونو دے او معانی اهم وی د دے وجه نه هغه ئے مخکښې ذکر کړو بل فرق دا دے چه اول د پاره د اوریدلو دے د بل چا نه (و القی السمع وهو شهید) او دویم د پاره د بیانولو بل چاته او هر کله چه ایزده کول د بل چا نه مخکښې وی په بیانولو باندے د دے وجه نه اَشَدُّ وَطْاً ئے مخکښې ذکر کړو۔ او دا دلیل دے چه په قراءت د شپے کښې اجر او ثواب ډیر دے د قراءت د ورځے نه۔

سک دا علت دے د پاره اِلَّا قَلِیْلًا یعنی ټوله شپه قیام د دے وجه نه نشی کولے چه ستا د پاره د ورځے هم څه ذمه وارئے دی چه د هغے ادا کول ضروری دی۔ سَبْحًا کرځیدلو ته وئیلے شی د پاره د حاجات دینیه (لکه چه دعوت دے) او حاجات دنیویه چه تجارت وغیره دے یا سبحًا په معنٰی د فراغ سره دے یعنی که د شپے څه کار د قیام او قراءت پوره نه کړے شی

رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ اِلَيْهِ تَبْتِيْلًا ﴿۸﴾ رَبُّ الْمَشْرِقِ

دَ رب ستا او ځان جدا کړه (هغه طرف ته) دَ هرڅه نه ځان جدا کول ـ رب دَ مشرق دے

وَالْمَغْرِبِ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيْلًا ﴿۹﴾

او دَ مغرب دے نیشته حقدار دَ بندګۍ سیوا دَ هغه نه نو او نیسه هغه لره کارجوړونکے.

نو دَ ورځے په څه وخت کښ هغه پوره کړه ـ طَوِيْلًا دَ صبا دَ مونځ نه تر ماسپخین بیا دَ ماسپخین دَ مونځ نه تر ما زیګر بیا دَ مازیګر مونځ نه تر ماښام پورے اوګد وخت دے ـ

سـ۸ په دے کښ دوه آداب دَ دعوت الی القرآن ذکر کوی اول وَاذْكُرِ اه یعنی مدد دَ خپل رب نه غواړه او دا رنګ په بسم الله سره شروکوه او هر وخت په ژبه کښ دَ الله تعالیٰ ذکر کوه دا دَ داعی دَ پاره اول ضروری دی ـ دویم ادب تَبَتَّلْ اِلَيْهِ دَ بتل نه ماخوذ دے قطع او پریکولو ته وئیلے شی مراد دلته انقطاع ده دَ شرک او ریا او سُمعت نه او اخلاص دَ هر عمل دے دَ الله تعالیٰ دَ پاره ـ

(سوال) په حدیث کښ دَ تبتل نه منع کړے شوے ده؟

(جواب) دغه تبتل دَ نصاری دے یعنی دَ مخلوق نه داسے جدا شی چه هغوی ته دعوت هم نه کوی او دَ هغوی جماعتونو کښ هم نه حاضریږی او نکاح نه کوی او تلذذات مباحه په ځان باندے حرام ګڼړی او دے ته رهبانیت هم وئیلے کیږی نو دا تبتل غیر دے او دَ قرآن تبتل جدا دے ـ

سـ۹ په دے کښ دریم ادب ذکر کوی او دارنګ مقصد دَ ترتیل قرآن ذکر کوی چه هغه توحید دے په رد دَ شرک فی الربوبیت او فی الالوهیت او فی الوکالت والتصرف سره ـ رَبُّ الْمَشْرِقِ اه دَ مشرق او مغرب دَ ربوبیت سره دَ نمر دَ طلوع او غروب نظام هم او دَ ورځے او شپے پیدا کولو نظام هم دَ الله تعالیٰ په تصرف او قدرت کښ داخل دے ـ وَكِيْلًا هغه ذات چه دَ ټولو اسبابو مسبباتو وغیره اختیار او تصرف دَ هغه په لاس کښ دے نو هغه ته په هر کار کښ توکل اوکړئ دا معنیٰ دَ اتخاذ وکیل ده ـ دَ الله تعالیٰ وکالت دَ مخلوق دَ وکالت نه ډیر په رنګ په بل مخ)

وَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا

او صبر کوه په هغه خبرو چه دوی يې وائي او پريږده دوی په پريښودلو

جَمِيْلًا ﴿۱۰﴾ وَ ذَرْنِيْ وَالْمُكَذِّبِيْنَ اُولِى النَّعْمَةِ

خائسته سره . او پريږده ما سره دَ تکذيب والو ته چه دَ دُنيا مزو والا دی

وَمَهِّلْهُمْ قَلِيْلًا ﴿۱۱﴾ اِنَّ لَدَيْنَآ اَنْكَالًا وَّ

او مهلت ورکړه دوی لره لږ وخت . يقيناً زمونږ سره شته بيړئ دَ خپو او

فرق سره دے دَ انسانی وکيل اختيار دَ مؤکل دَ طرف نه وی مؤکل چه
اوغواړی نو اختيار ترينه واپس اخستے شی او انسانی وکيل چه کار اوکړی نو اجرت
او عوض غواړی دَ مؤکل مال خرچ کوی او دَ الله تعالیٰ صفت دَ وکالت دَ دے حالاتو
نه په عکس سره دے. او دا مسئله خلاصه دَ تورات ده لکه چه سورة اسراء
۲ کښ ذکر ده او کفی بالله وکيلا په سورة نساء ۸۱ ۱۳۲ ۱۷۱ او سورة
احزاب ۳ ۴۸ کښ دی وکفیٰ بربك وکيلا په سورة اسراء ۶۵ کښ دے او
نفی دَ وکالت دَ نبی صلی الله عليه وسلم نه په سورة انعام ۶۶ ۱۰۷ زمر ۴۱
شوری ۶ اسراء ۵۴ فرقان ۴۳ کښ ده چه نبی صلی الله عليه وسلم لره دا
صفت نيشته نو نور مخلوق په دے صفت هيڅ رے نشی متصف کيدے.
۱۰ په دے ايت کښ نور دوه آداب دَ دعوت الی القرآن ذکر کوی اول صبر
په مقابله دَ سب او شتم او دَ استهزاء دَ دوی کښ او په دعوت باندے کلک
پاتے کيدل. دويم هجران دَ منکرينو يعنی دَ دوی دَ قرابت او دَ مالدارئ
پروا نه کول نو دا رنګ دَ دوی دَ سب و شتم دَ وجے نه دوی ته دعوت کول
نه پريښودل ليکن دَ دوی دَ شرک او بدعاتو او فسق و فجور اجتماعاتو
او مجالسو نه ځان بچ کول. جَمِيْلًا جميل (خائسته) هجران هغه دے
چه دَ الله تعالیٰ دَ پاره وی دَ خواهش دَ نفس او دَ دنيوی اغراضو دَ وجے
نه نه وی او دے ته بغض فی الله وئيلے شی دا رنګ په سورة حجر ۸۵
او سورة مدثر ۵ کښ هم شته.
۱۱ په دے کښ بل ادب دے دَ داعی دَ پاره او تسلی ده هغه ته سره دَ
تخويف دَ منکرينو نه. ذَرْنِيْ په دے کښ اشاره ده چه پخپله دَ بدلے

جَحِيْمًا ﴿١٢﴾ وَّطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَّعَذَابًا

| أُور گرم | او | خوراک چه مرۓ کښې انخلي | او | عذاب |
|---|---|---|---|---|

اَلِيْمًا ﴿١٣﴾ يَوْمَ تَرْجُفُ الْاَرْضُ وَالْجِبَالُ

| دردناک . | په کومه ورځ چه اوبه لړزيږي | زمکه | او | غرونه |
|---|---|---|---|---|

اخستلو اراده مه کوه دَ الله تعالیٰ انتقام ته ئې پریږده او داسې امر په سورۃ انعام ﷺ ۹۱ ۱۱۲ ۱۳۷ او سورۃ قلم ۴۴ او سورۃ حجر ۳ او سورۃ مؤمنون ۵۴ او سورۃ زخرف ۸۳ او سورۃ طور ۴۵ او معارج ۴۲ کښې هم راغلی دی په دغه آیاتونو کښې دَ دے مکذبینو حالات هم ذکر کړے شویدی۔

أُولِي النَّعْمَةِ په زوَر دَ نون سره مالدارئې او فراخ دَ ژوند ته وئیلے شي او په زیر دَ نون انعام ته وئیلے شي او وئیلیږي دَ نون خوشحالئې ته وئیلے شي۔ وَ مَهِّلْهُمْ قَلِيلًا مراد دَ قليل نه وخت دَ نیتې دَ دوی دے او ژوندا دَ دُنیا لنډ دے او مهلت نه مراد دا دے چه عذاب دَ دوی په تادئې سره مه غواړه دَ دُنیا دَ نعمتونو او مالونو نه استدراجاً فائده دے به واخلي تر وخت دَ عذاب پورے۔

۱۲ ۱۳ دا تخویف اخروی او ذکر دَ هغه عذاب دے چه هغې ته اشاره ده په ذرني او مهلهم کښې۔ دا څلور قسمونه دَ عذاب دی په مقابله دَ تنعّم دَ دنیا کښې۔ په دنیا کښې دَ دوی آزادی وه او په آخرت کښې انکال دی یعنی په خپو کښې درنے بیړئې پرتے دی چه دَ هغې دَ وجې په حرکت نشي کولے او انکال قیسمونو دَ عذاب ته هم وئیلے شي۔ او په دُنیا کښې اسباب دَ بخ والی وؤ او په آخرت کښې به جحیم (اور سخت گرم) وی او په دُنیا کښې پاکیزه او نرم او خائسته خوارۂ خوراکونه، او په آخرت داسے خوراکونه چه په مرئې کښې به انخلی سپور، گرم، تریخ، سخت او گنده چه هغه غِسلين، زقوم، ضريع وغیره به وی۔ او په دنیا کښې فراخ او دَ خوشحالئې او دَ نعمتونو ژوند وؤ او په آخرت کښې به عذابونه تکلیفونه وی چه زړونو ته به دردونه ورکوی۔

وَكَانَتِ الْجِبَالُ كَثِيبًا مَّهِيلًا ﴿١٤﴾ إِنَّا

او شی به | غرونه | دیرے دَ شګو بهیدونکے . | یقیناً

أَرْسَلْنَا إِلَيْكُمْ رَسُولًا ۙ شَاهِدًا عَلَيْكُمْ

رالیږلے دے موږ تاسو ته | رسول | بیانوونکے | تاسو ته

كَمَا أَرْسَلْنَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا ﴿١٥﴾ فَعَصَىٰ

لکه چه لیږلے وو موږ | فرعون ته | رسول | نو نافرمانی اوکړه

سملا دا متعلق دے په لَدَيْنَا پورے او اشاره ده رد کولو ته په عقیدہ باطله دَ مکذبینو باندے دوی عقیده لرله چه زمکه ډیره غټه ده او غرونه ډیر سخت دی نو معلومه شوه چه په دے کښې تبدیلی نه کیږی نو الله تعالیٰ دَ دے دواړو حال ذکر کوی۔ تَرْجُفُ دا سے خوځیدل چه ټول اجزاء خوځیږی او بیا نه اودریږی لکه چه په سورة النازعات سملا کښی دی۔
كَثِيبًا مَّهِيلًا کثیب دَ شګو ډیرئ ته وئیلے شی۔ مَّهِيلًا دا سے نرئے نرئے شګے چه دَ خپو دَ لاندے نه تختی نو انسان پکښی مزل نشی کولے۔ دَ زمکے حال ئے په نورو سورتونو کښی ذکر کړے دے لکه په سورة طٰهٰ سما۱۰ کښی۔
او دلته ئے صرف دَ غرونو تبدیلی ذکر کړه چه هغه سخت او غټ ښکاره کیږی۔
سھا سملا دا تخویف دنیوی دے او بیان دَ هغه عذاب دے چه په مهلهم کښی هغے ته اشاره وه خو دا عبارت په طریقه دَ التفات دَ غائب نه دے خطاب ته یعنی مخکښی ئے مکذبین غائب ذکر کړل نو اوس هغوی ته خطاب کوی۔ إِلَيْكُمْ اول ارسال مکے والو ته شویوؤ اګرچه ارسال عام وؤ دَ دے وجے نه الیکم ئے ذکر کړو۔ شَاهِدًا عَلَيْكُمْ دا سے په سورة احزاب سھ او فتح سما کښی تیر شویدی او ځلور کرته شهید په صفت دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښی راغلے دے بقره سما۱۴۳ نساء سما۴۱ نحل سما۸۹ حج سما دَ دے صفت مصداق یا په دنیا کښی دے یا په آخرت کښی چه په دنیا کښی دے نو مراد دَ شهادت نه تبلیغ او بیان دَ حق دے او صله علیٰ دَ پاره دَ الزام حجت ده په خلقو باندے یعنی دا رسول صلی الله علیه وسلم

فِرْعَوْنُ الرَّسُوْلَ فَاَخَذْنٰهُ اَخْذًا وَّبِيْلًا ﴿١٦﴾

فرعون دَ هغه رسول نو اُونيو مونږ دے په سختو نيولو سره۔

فَكَيْفَ تَتَّقُوْنَ اِنْ كَفَرْتُمْ يَوْمًا يَّجْعَلُ

نو څنګه به بچ شئ تاسو که چرے کفر (انکار) کوئے دَ هغې ورځ نه چه اوبه کړي (ښې به)

الْوِلْدَانَ شِيْبًا ﴿١٧﴾ السَّمَآءُ مُنْفَطِرٌۢ بِهٖ

بچي بوډاګان۔ اسمان به اوشليږي په دغه ورځ۔

تاسو ته حق بيانوي چه په تاسو باندے حجت قائم شي او هر چه په اخرت کښې دے نو مراد دَ شهادت نه ګواهي کول دي په انکار دَ منکرينو او تزکيه کول دَ مؤمنانو، ليکن دا ګواهي خاص ده په حاضرينو پورے په دليل دَ سورة مائده ﷺ سره چه په باره دَ عيسٰی عليه السلام کښې ده او په حديث دَ بخاري کښې دغه شهادت زمونږ دَ نبي صلی الله عليه وسلم په باره کښې هم ذکر دے او هر کله چه شهادت په صفت دَ الله تعالٰی کښې راغلے دے نو دَ هغې سره لفظ دَ کل شيءٍ راغلے دے دَ دے دَ باره چه فرق واضح شي په صفت دَ الله تعالٰی او په صفت دَ رسول کښې۔ اِلٰی فِرْعَوْنَ رَسُوْلًا دَ فرعون او موسٰی عليه السلام مثال ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو چه مکے والا په دغه وخت کښې دَ يهودو په واسطه سره دَ موسٰی عليه السلام دَ صداقت او دَ فرعون دَ هلاکت نه پوره خبر وو دَ نورو قومونو دَ واقعاتو نه بيا روستو خبر شول۔ الرَّسُوْلَ دا الف لام عهدي دي مراد دَ دے نه موسٰی عليه السلام دے۔ وَبِيْلًا سخت درونډ، هلاکوونکے، خراب عاقبت والا دا ټول معاني دَ دے صحيح دي او مراد دَ دے نه هغه ټول عذابونه وو چه په فرعونيانو باندے راغلي وو طوفان، جراد، قمل، ضفادع او دم او اخري غرقيدل۔

۱۷ ۱۸ په دے کښې سخت زجر دے سره دَ تخويف اخروي نه تفريع ده په عذاب دَ فرعون باندے يعني چه فرعون په هيڅ قوت سره دَ عذاب دَ الله تعالٰی نه بچ نه شو نو تاسو به څه دګے بچ شئ۔

فَكَيْفَ استفهام انکاري دے يعني په هيڅ طريقے سره تاسو نشئ بچ کيدلے۔ تَتَّقُوْنَ دَ دے مفعول محذوف دے۔ اَلْعَذَابَ يعني څه رنګ (رپلے په بل مخ)

كَانَ وَعْدُهٗ مَفْعُوْلًا ﴿۱۸﴾ اِنَّ هٰذِهٖ تَذْكِرَةٌ ۚ

| دا ده وعده پوره كيدونكے - يقيناً دا (سورت) نصيحت دے |
|---|

په بچ شئ دَ عذاب ته او يوماً مفعول دَ كفرتم دے يعنى كه چرے انكار كوئ دَ ورځ دَ قيامت نه، او دويم توجيه داده چه مفعول دَ تتقون يوماً دے په تقدير دَ عذاب سره او ان كفرتم په مينځ كښ جمله شرطيه معترضه ده، دريمه توجيه داده چه مفعول دَ تتقون محذوف دے لكه چه اوله توجيه كښ تير شو او يوماً مفعول فيه دَ يجعل دَ پاره دے.

يَجْعَلُ الْوِلْدَانَ دا هيبت دَ هغه ورځ ذكر كوى په دوه طريقو سره. ضمير دَ يجعل راجع دے الله تعالىٰ ته او فيه پټ دے يا دا ضمير راجع دے يوماً ته او اسناد مجازى دے او دَ دے جملے په مقصد كښ درے احتمالونه دى اول دا چه دَ دير هيبت دَ وجے نه په اول دَ بچو ويخته سپين شى او كمزورى په شى حقيقةً بيا به يئ الله تعالىٰ خپل خپل حالت ته واپس اوګرځوى دويم احتمال دا دے چه دا په طريقه دَ مثال سره دے دَ پاره دَ دير هيبت دَ هغه ورځے يعنى بالفرض كه په هغه وخت كښ بچى وى او هيبت ورباندے راشى نو بوډاګان به شى دريم احتمال دا دے چه دا اشاره ده په طريقه دَ مثال سره اوګدوالى دَ هغه ورځے ته.

السَّمَآءُ مُنْفَطِرٌۢ بِهٖ دا دويم هيبت شان دَ هغه ورځ دے او حقيقت باندے حمل دے لكه اذا السماء انفطرت او په كښ باء سببيه دے يا په معنىٰ دَ فى سره ده او ضمير راجع دے يوم ته. (سوال) سماء مؤنث دے نو منفطرٌ ئے څه رنګ مذكر راوړو؟ (جواب) سماء اسم جنس دے كله مذكر راځى او كله مؤنث راځى. دويم جواب تذكير په تاويل دَ سقف سره دے دريم جواب منفطرٌ په معنىٰ دَ ذات انفطار سره دے.

كَانَ وَعْدُهٗ ضمير راجع دے الله تعالىٰ ته او اضافت دے فاعل دے يا راجع دے يوم ته او اضافت دے مفعول ته.

فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيْلًا ﴿۱۹﴾ اِنَّ

نو څوک چه غواړی او ونیسی خپل رب ته لار . یقیناً

رَبَّكَ يَعْلَمُ اَنَّكَ تَقُوْمُ اَدْنٰى مِنْ ثُلُثَيِ

رب ستا پوهیږی چه ته اودریږے کم دَ دوه حصو

الَّيْلِ وَنِصْفَهٗ وَثُلُثَهٗ وَطَآئِفَةٌ مِّنَ

دَ شپے نه او نیمه او دریمه او یوه ډله دَ

الَّذِيْنَ مَعَكَ ؕ وَاللّٰهُ يُقَدِّرُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ؕ

هغه کسانو نه چه تا سره دی (ملګری ستا) او الله تعالیٰ پوره اندازه کوی شپه او ورځ -

عَلِمَ اَنْ لَّنْ تُحْصُوْهُ فَتَابَ عَلَيْكُمْ

پوهه دے چه تاسو هیڅ رے نه شئ پوره کولے دا اندازه نو اسانتیا ئے راوستله په تاسو باندے

فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ؕ عَلِمَ اَنْ سَيَكُوْنُ

پس لولئ هغه چه اسان دی دَ قرآن نه پوهه دے چه خامخواه وی به

مِنْكُمْ مَّرْضٰى ۙ وَاٰخَرُوْنَ يَضْرِبُوْنَ

ستاسو نه بعض ناجوړه او نور کسان به سفر کوی

۱۹ دا ترغیب دے قرآن ته او مضمون دَ دے سورت ته ځکه چه هٰذِهٖ اشاره ده ټولو ایاتونو دَ قرآن ته یا اشاره ده دِے سورت ته -
تَذْكِرَةٌ بیان دَ توحید تفصیلًا او دَ ټولو ایمانیاتو دے په کاملو دلیلونو سره -
اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ دا په ځائے دَ مفعول دَ شاء کښ دے او جزا دَ من محذوف ده (فلیتذکر بهذه) یا ضمیر مفعول دَ شاء محذوف دے (فمن شاء الاهتداء) او اتخذ جزاء دَ مَنْ ده - اِلٰى رَبِّهٖ رضا دَ رب ته، قربت دَ هغه ته، توحید دَ هغه ته ټولے معانے مراد کیدیشی .

فِی الْاَرْضِ یَبْتَغُوْنَ مِنْ فَضْلِ اللّٰہِ

په زمکه کښې لټوي به دَ فضل دَ الله تعالیٰ نه

وَاٰخَرُوْنَ یُقَاتِلُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰہِ

او نور کسان چه جنګ به کوي په لار دَ الله تعالیٰ کښې

فَاقْرَءُوْا مَا تَیَسَّرَ مِنْهُ وَاَقِیْمُوا الصَّلٰوةَ

نو لولے هغه چه اسان دی دَ دینه او پابندی کوئے دَ مونځ

ف۲ په ابتداء دَ سورت کښې دَ قیام اللیل سره نصف او په هغې باندے زیات اوکم ذکر شویوؤ او نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو په هغې باندے عمل کړے وؤ لیکن هر کله چه په دے کښې ډیر مشقت وؤ یو دَ دے وجې نه چه انسان اوده شی نو دَ شپې حقیقی نصف او ثلث وغیره باندے نه پوهیږی. بل داچه انسانانو کښې مریضان مسافران هم شته چه هغوی هم دَ دغه مقدار پوره رعایت نشی کولے نو الله تعالیٰ په دے ایت کښې تخفیف را اولیږلو. یعنی پوره نصف او ثلث دَ شپې پوره کول ضروری نه دی بلکه هر انسان دِ دے دَ خپل استطاعت مطابق قران لولی او قیام دِ دے کوی.

اَنَّكَ تَقُوْمُ اَدْنٰى مِنْ ثُلُثَیِ الَّیْلِ قریب دَ ثلثینو ئے دَ دے وجه نه اوئیل چه دَ سورت په اول کښې اَوْزِدْ عَلَیْهِ فرمائیلے وؤ او زیادت په نصف باندے عین ثلثین نه دے لیکن هغې ته قریب دے. وَنِصْفَهٗ وَثُلُثَهٗ پوره نصف او ثلث معلومول او قیام کول اګرچه په دے کښې هم مشقت دے لیکن په نسبت دَ ثلثین سره اسان وؤ دَ دے وجې نه دلته ئے ادنیٰ نه دی وئیلے. وَطَآئِفَةٌ مِّنَ الَّذِیْنَ مَعَكَ یعنی صحابه کرامو هم قیام کوؤ ځان ځان له په خپلو کورونو یا مسجد کښې اوده یا درے شپې په رمضان کښې دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره ئے جماعت هم په قیام اللیل کښې کړے وؤ. وَاللّٰهُ یُقَدِّرُ الَّیْلَ وَالنَّهَارَ دَ دے دوه توجیه دی اول داچه الله تعالیٰ حقیقی مقادیر دَ شپې او ورځ یقیناً پیژنی چه دا نصف دے او دا ثلث دے او انسانان ئے په اجتهاد سره پیژنی نو په هغې کښې

وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَاَقْرِضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا ط

او ورکوئ زکوٰة او قرض ورکړئ الله تعالیٰ ته قرض په اخلاص

وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ

او هغه چه مخکښ لیږئ تاسو دَ خپلو ځانونو دَپاره څه نیک عمل

دَ خطلیٔ احتمال وی- دویمه توجیه داده چه الله تعالیٰ په شپه او په ورځ
کښ دَ مختلفو ځیزونو تقدیر کوی چه یو دَ هغې نه قیام اللیل کښې په تحدید
معین سره او بیا په هغې کښ تخفیف کول دی.
عَلِمَ اَنْ لَّنْ تُحْصُوْهُ فَتَابَ عَلَيْكُمْ مراد دَ توبې نه تخفیف دے په حکم
کښ یعنی پوره تحدید دَ نصف او ثلث ئې په تاسو باندے واجب نکړو
او عَلِمَ اَنْ اه دَ دے علت دے- فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ مراد دَ
دے نه صلوٰة دے په ذکر دَ جزء او مراد تری نه کل دے او صرف قرآن
لوستل په مونځ کښ او بهر دَ مونځ نه هم مراد اخستل صحیح دی او
مَا تَيَسَّرَ په اعتبار دَ اوقاتو سره دی یعنی یو ګهنټه وی او که دوه ګنهټې
وی او که نصف وی او که کم وی یا زیات وی خومره چه انسان ته اسانه
وی په اعتبار دَ طاقت دَ هغه سره- عَلِمَ اَنْ سَيَكُوْنُ هر کله چه تخفیف
دَپاره دوه علتونه وُو لکه چه مونږ دَ ایت په اول کښ ذکر کړل یو علت
ئې په ان لن تحصوه سره ذکر کړو نو اوس بل علت ذکر کوی.
اَنْ مخفف دے دَ ثقل نه په اصل کښ اَنَّه وُو- وَاٰخَرُوْنَ اه سفر کول
دَپاره دَ تجارت هم طاعت دے لیکن دَ هغې سره دَ قیام اللیل او دَ هغې
تحدید طاقت نشی لرلے- وَاٰخَرُوْنَ يُقَاتِلُوْنَ اه ابن کثیر وئیلی دی چه
دَ نزول دَ دے ایت په وخت کښ قتال فی سبیل الله نه وُو نو معلومه شوه
چه دَ دے ذکر مخکښ دَ وجود دَ دے نه لوئ نښه ده دَپاره دَ صداقت
دَ نبی صلی الله علیه وسلم او مقاتل فی سبیل الله هم دَ قیام اللیل او دَ هغې
تحدید پوره طاقت نشی لرلے دَ دے وجې نه تخفیف دَپاره ئې او فرمائیل
فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ دلته مراد دَ ما تیسر نه مقدار دَ ایاتونو او سورتونو
لوستلو دے یعنی یو سورت دوه سورتونه یا یو پاره (پاتے په بل مخ)

تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَيْرًا وَّ اَعْظَمَ اَجْرًا ؕ

تو اوبه مومئ تاسو (ثواب) دَ هغې دَ الله تعالیٰ سره غوره او ډیر لوئې اجر

وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۰﴾ ع

او بخنه غواړئ دَ الله نه يقيناً الله تعالیٰ بخنه كوونكے رحم كوونكے دے۔

دوه پارے دے دَخپل طاقت مناسب سره اولولی دَ دے فرق نه معلومه شوه چه دَ فَاقْرَءُوْا اه په دواړه جملوكښ تكرار نيشته۔ وَاَقِيْمُوا اه دَ دے نه مراد صلواتِ خمسه دی اشاره ده چه قيام الليل دَ ماسخوتن مونځ نه علاوه دے وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ دا دليل دے دَ هغه چاچه وئيلے دی چه زكوٰة په مكه كښ فرض كړے شويوۀ ليكن مقادير ئې په مدينه كښ مقرر كړے شوی دی۔ وَاَقْرِضُوا اللّٰهَ اه مراد دَ دے نه مال وركول په مصارفو دَ خير كښ دی دَ حلال مال نه په اخلاص سره بغير دَ من او اذی نه او غټ فرد دَ دے انفاق دے په دعوت او جهاد فی سبيل الله كښ۔ وَمَا تُقَدِّمُوْا اه دا تعميم دے روستو دَ تخصيص نه ځكه چه مِنْ خَيْرٍ لفظ هر طاعتِ بدنيه او ماليه ته شامل دے چه موافق وی دَ كتاب او سنت سره۔ هُوَ ضمير دَ فصل ئې دَ پاره دَ تاكيد راوړے دے او اشاره ده چه په دغه عمل دَ خير كښ تبديلی او نقصان نه راځی۔ خَيْرًا دا غوره دے دَ هغه مال نه چه ذخيره كيږی تر مرګه پورے بلكه غوره دے دَ ټول متاع دَ دُنيا نه۔ وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ هركله چه په ټولو اوامرو الهيو باندے پوره پوره عمل كول موافق دَ شان دَ الوهيت دَ الله تعالیٰ سره ګران كار دے نو دَ دے وجے نه په اختتام كښ اقرار دَ خپلے كوتاهے پكار دے او دا مراد دے په استغفار سره دا مستلزم دَ ګناه نه دے لكه استغفار دے كړے ته روستو دَ فراغ دَ مونځ نه۔ (يا الله تعالیٰ زمونږ ټول تقصيرات او ګناهونه كبيره صغيره په وسيله دَ اسماء حسنیٰ ستا سره معاف كړے يا غفور يا رحيم)۔

ختم شو تفسير دَ سورة مزمل په فضل دَ الله تعالیٰ او كرم دَ هغه سره

(الحمد لله على ذلك)

سُوْرَةُ الْمُدَّثِّرُ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۵۶ رکوعاتها ۲

يٰٓاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ﴿۱﴾ قُمْ فَاَنْذِرْ ﴿۲﴾ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ﴿۳﴾

اے ځان په کمبل کښې انغختونکیه، او درېږه نو وېره ورکړه، او خاص د رب خپل لوئي وایه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة المدثر

**ربط دَ دے سورت** دَ سورة مزمل سره په درېو طریقو سره دے اوله طریقه دا ده چه په مخکښې سورت کښې امر ووَ په قراءة دَ قرآن سره په اوقاتو دَ شپې کښې دَ پاره دَ تضرع الی الله او دَ پاره دَ علم دَ قرآن نو په دے سورت کښې امر دے په بیانولو دَ قرآن سره یعنی دَ شپې علم او دَ ورځے عمل دے. دویمه طریقه دا ده چه په مخکښې سورت کښې ئے مکذبین عام او مطلق ذکر کړل نو په دے سورت کښې احوال خاصه دَ مکذب ذکر کوی. دریمه طریقه دا ده چه په هغه سورت کښې دَ دریو اقسام په اهل قرآن کښې ذکر کړل نو په دے سورت کښې درے اقسام دَ منکرینو دَ قرآن ذکر کوی. کافران، اهل کتاب، منافقان.

**دعوی دَ دے سورت** تیزی ورکول او حکم کول دی په قرآن رسولو سره دَ پاره دَ اظهار دَ کبریاء دَ الله تعالی په بیان دَ توحید سره او ماخذ دَ دعوے دے په ۲ تر ۳ کښې او ورسره آداب دَ دعوت ئے ذکر کړے دی. او دَ معرفت دَ الله تعالی دَ پاره څلور اسماء وصفات ئے ذکر کړی دی الله، رب، اهل التقوی، اهل المغفرة.

**خلاصه دَ دے سورت** دا ده. اول ئے ذکر کړے ده تشجیع په دعوت باندے سره دَ آدابو دَ هغے نه او هغه شپږ او امر او یو نهی ده تر سکه پورے بیا تخویف اخروی دے په درے آیاتو کښې بیا تسلی ده مختصر او زجر دے مکذب ته په ذکر دَ شپږ صفتو نو دَ هغه او لس حالات دَ هغه په وخت دَ آورېدو دَ قرآن کښې راپاتے په بل مخ)

تر ٢٥ پورے بیا تخویف اخروی دے په ذکر دَ شپږ حالاتو دَ سقر سره تر ٣٠ پورے بیا جواب دَ یو شبهے په ذکر دَ مصداق دَ عدد او فائدے دَ هغے دے په ٣١ کښ بیا شواهد ذکر دی په صداقت قرآن او په عظمت دَ سقر باندے تر ٣٧ پورے بیا ذکر دَ فریقینو دے په بشارت او تخویف سره دَ اسبابو دَ عذاب نه تر ٤٧ پورے سره دَ نفی دَ شفاعت نه تخویفًا په ٤٨ کښ بیا زجر دے منکرینو ته په ذکر دَ شپږ حالاتو دَ هغوی تر ٥٣ پورے او په آخرکښ ترغیب الی القرآن دے تر ٥٦ پورے.

**تفسیر ١** يٰٓاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ حدیث دَ صحیحین کښ دَ جابر رضی الله عنه په روایت سره صراحةً معلومیږی چه دا سورة دَ سورة علق نه روستو نازل شوے دے نو په کومو روایاتو کښ چه راغلی ده چه دا اول سورت دے په نزول کښ نو مراد دَ هغے نه اولیت اضافی دے یعنی دَ سورة علق دَ نزول نه روستو دیره زمانه پورے نزول دَ وحی بند وو روستو دا سورت نازل شو نو دا اول دے روستو دَ فترت دَ وحی نه او دا سے قول دَ امام احمد رحمة الله عنه نه ابن کثیر نقل کړیدے. او حدیث دَ بخاری کښ راغلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم جبرئیل علیه السلام لره په یو تخت باندے په هواء کښ اولیدلو نو دَ رعب د وجے نه په هغه باندے سخته لرزه راغله نو خدیجه رضی الله عنها له راغے او ئیل ئے دَ زَمِّلُوْنِیْ دَثِّرُوْنِیْ وَصُبُّوا عَلَیَّ مَاءً بَارِدًا او په بل روایت کښ زملونی راغلی دے (لیکن مطلب دَ دواړو یو دے شاید چه دا روایت بالمعنٰی دے)

نو خطاب په المدثر سره خطاب دے په اعتبار دَ صفتِ موجوده سره دَ پاره دَ ملاطفت. اَلْمُدَّثِّرُ په اصل کښ المتدثر دے نو تا بدل شوه په دال سره او دال ئے په دال کښ مدغم کړو او په دے کښ معنٰی دَ مبالغے ده او لازم دَ دے استراحت کول دی یعنی اے آرام کوؤنکیه دا وخت نه دے دَ آرام بلکه دا وخت دے دَ قیام او په دے سره هغه اعتراض دفع شو چه ئے او بو اچولو او کرمه کپړه اغوستلو کښ منافات دے حاصل جواب دادے چه کپړه اغوستل صرف دَ پاره دَ استراحت ده.

وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ﴿۴﴾ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ ﴿۵﴾

او جامے خپلے پاکے ساته ، او دَ هر بے پلیتئ نه ډډه اوکړه ،

یا هر کله چه یخ او به ئے واچولے نو ئے شو نو روستو دَ یخیدلو نه بیا ئے کپړه واغوستله - نو وحی راغله یا ایها المدثر -

سے قُمْ مراد دَ دے نه دَ خوب او دَ آرام نه بیداریدل او تیاری کول او کار شورو کول دی صرف دَ خپو اودریدل مراد نه دی - فَاَنْذِرْ دا مقصد دَ قیام دے یعنی قیام اوکړه دَپاره دَ انذار او انذار تخویف دے سرهٔ دَ اعلام نه یعنی مسئله دَ توحید ورته دا سے بیان کړه چه دَ دے په نه منلو سره لوئے عذاب راتلونکے دے او دَ تبشیر ذکر ئے او نه کړو ځکه اهل دَ بشارت په دغه وخت کښ موجود نه وؤ بل دا چه انذار سیه تاثیر کوؤنکے دے په نسبت دَ بشارت سره -

سے په دے کښ تفسیر دَ انذار دے چه هغه توحید دے په بیان دَ کبریاء دَ الله تعالیٰ سره او قرطبی وئیلے دی چه مراد په دے سره پاکی دَ الله تعالیٰ ده دَ شرك او دَ تشبیه نه او دَ ولد او صاحبه نه - دَ هغه نه سیوا بل ولی مه نیسه بل معبود مه جوړوه دَ بل چا فعل (اختیار کالی) مه منه دَ بل چا نعمت او احسان مه منه - او دَ دے امر دَ امتثال نه لفظ دَ الله اکبر ماخوذ دے که دَ ما نځه په اول کښ وی او که په نورو حالاتو کښ وی او فاء دلالت کوی په شرط مقدر باندے یعنی که ته دَ چا لوئی ذکر کوے نو صرف دَ الله تعالیٰ لوئی ذکر کوه -

سے دا ادب دَ دعوت دے او په دے کښ ډیر اقوال دی دَ مفسرینو ځکه چه ثیاب او تطهیر نه مراد معنیٰ حقیقی ده یا دَ دواړو نه مراد معنیٰ مجازی ده یا یو په معنیٰ حقیقی او بل په معنیٰ مجازی سره دے ترتیب دا دے چه دَ دواړو نه معنیٰ حقیقی مراد شی نو معنیٰ دا ده چه جامے خپلے دَ نجاسا تو نه پاکے ساته ځکه داعی خو مو نځ ضرور کوی او دَ هغے دَپاره طهارت دَ جامے فرض دے لیکن په عامو اوقاتو کښ هم دَ مؤمن دَپاره پاکے جامے پکار دی - او چه دواړو نه مراد معنیٰ مجازی شی نو په هغے کښ بیا توجیهات دی اول دا چه عمل خپل پاک ساته دَ شرك او ریاء

وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ ﴿٦﴾ وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ ﴿٧﴾

او مه اچوه احسان چه ډیر کار گڼړے، او خاص د رب خپل د پاره صبر کوه۔

او سُمعت نه۔ دویمه توجیه دا ده چه خپله ذمه پاکه کړه او خپله غاړه خلاصه کړه په دعوت او تبلیغ سره۔ دریمه توجیه دا ده چه خپل نفس لره دَ قبیح اخلاقو نه پاک کړه۔ څلورمه دا ده چه خپل زړه دَ توجّه دَ غیرالله نه پاک کړه۔ اوچه دَ ثیاب نه مراد معنیٰ حقیقی او تطهیر نه مراد معنیٰ مجازی شی نو معنیٰ دا ده چه جامے خپلے دَ غیر شرعی طریقے نه پاکے ساته یعنی دَ حرام مال نه جامے مه جوړ وه دا رنګ دَ ریښمو جامے مه استعمالوه دا رنګ جامه دَ ګیټو نه مه کوزوه که لنګ وی یا پرتوګ قمیص وغیره وی دَ دے نه په احادیثو کښ صریح منع کړے شویده. اوچه وَثِیَابَ نه معنیٰ مجازی او تطهیر نه مراد معنیٰ حقیقی شی نو معنیٰ دا چه دین خپل لره پاک ساته دَ شرک او بدعاتو وغیره نه۔

حاصل دا دے چه دا الفاظ دَ دے ټولو معانیو احتمال لری او پدے معانیو کښ هیڅ منافات نیشته نو ټولو ته شامل دی۔

ﻫ دا بل ادب دے۔ رُجْزَ په معنیٰ دَ اصنامو دے نو مراد ترینه عبادت دَ هغوی دے یا رجز په معنیٰ دَ شرک دے یا په معنیٰ دَ ګناه سره دے یا په معنیٰ دَ عذاب دے په حذف دَ مضاف سره یعنی الرجز نو معنیٰ دا چه دَ اسبابو دَ عذاب نه ځان بچ ساته یا مراد دَ دے نه اهل الرجز دی لکه چه سورة مزمل سلـ کښ دَ هغوی په هجران باندے امر شویدے او دے ته براء و ئیلے شی نو په ایمان کښ ولاء او براء په شرعی طور سره ضروری ده او اشاره ده چه داعی له پکار ده چه هر قسم ناکاره ملګرو او ناکاره مجلسونو او اسباب دَ معصیت نه ځان بچ اوساتی۔

سـ دا بل ادب دے دَ دے جملے په تفسیر کښ قرطبی یوولس اقوال ذکر کړیدی ځکه چه لَا تَمْنُنْ دَ مَنّ نه ماخوذ دے او من ورکول دَ عطیے ته وئیلے شی او احسان زیادلو ته هم وئیلے شی او ضعیف کیدلو ته هم وئیلے شی او قطع کولو بس کولو ته هم وئیلے کیږی۔

تَسْتَكْثِرُ دا مرفوع دے په معنیٰ دَ حال کښ دے

فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ ﴿٨﴾ فَذَٰلِكَ يَوْمَئِذٍ

پس کله چه پو کے اوکړے شي په شپیلۍ کښ، نو دا　په د غه　ورځ

يَوْمٌ عَسِيرٌ ﴿٩﴾ عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ ﴿١٠﴾

ورځ　سخته ده ،　په　کافرانو باندے　نه ده اسانیه ونکے .

بعض معنے دا سے دی ع۱ احسان مه کوه په الله تعالیٰ باندے په دعوت کولو سره په دا سے حال کښ چه ته یٔے ډیر گنړے یعنی داعی دَحق دے په الله تعالیٰ باندے زیادنے نه کوی او داسے دِے هم نه وائی چه ما ډیر کار کړیدے نور بس دے ع۲ احسان مه کوه په مخلوق باندے دَ دعوت کولو دَ دے دَ پاره چه ډیر مال او عزت طلب کوے. ع۳ هیڅ خیز چالره په دے اراده مه ورکوه چه دَ هغه نه عوض کښ ډیر غواړے ع۴ کمزوری مه کوه دَ کار دَ دعوت نه په دے وجه سره چه ډیر یٔے گنړے ع۵ مه یس کوه کار دَ دعوت لره په دے وجے سره چه ډیر یٔے گنړے. او سین په تستکثر کښ دَ پاره دَ طلب دے یا دَ پاره دَ شمارلو او وجدان دے لکه چه دَ دغه معانو نه ثابته شوه.

ک دا بل ادب دَاولِرَبِّكَ مخکښ ذکر کړے دے دَ پاره دَ اخلاص او صبر عام دے که په طاعاتو کولو سره وی یا په مصیبتونو باندے وی.

ﮰ ﮱ ۹ سنا دا تخویف اخروی دے مناسبت یٔے مخکښ سره دا دے چه انذار دَ خلقو ضروری دے دَ پاره دَ دے چه دَ قیامت دَ عُسر (سختیٔ) نه بچ شی. النَّاقُورِ دَ نقر نه ماخوذ دے آواز کولو ته وئیلے شي نو ناقور آله دَ آواز کولو ده مراد دَ دے نه نفخه ده اوله یا دویمه. فَذَٰلِكَ اشاره ده وخت دَ نفخ وهلو ته. يَوْمَئِذٍ دا بدل دے دَ ذٰلك نه یا ظرف دے دَ عسیر دَ پاره. عَلَى الْكَافِرِينَ دا دلالت کوی چه په مؤمنانو باندے آسانه ده. غَيْرُ يَسِيرٍ په دے قید لګولو کښ یو فائده دا ده چه بعض خیز په یو وجے سره سخت وی لیکن په بله وجے سره آسان وی نو په دے قید سره یٔے دا وهم دفع کړو چه هغه ورځ په هره وجے سره سخته ده. دویمه فائده دا ده چه سختی دَ هغه ورځے په مؤمنانو باندے شته لکه

پاتے په بل مخ

ذَرۡنِیۡ وَ مَنۡ خَلَقۡتُ وَحِیۡدًا ﴿۱۱﴾ وَّ جَعَلۡتُ

او ورکړه ما ته هغه څوک چه پیدا کړی دے ما یواځے ، او ورکړی دی ما

لَهٗ مَالًا مَّمۡدُوۡدًا ﴿۱۲﴾ وَّ بَنِیۡنَ شُهُوۡدًا ﴿۱۳﴾

هغه لره مالونه خواره واره ، او ځامن په ځائے حاضر ،

وَّ مَهَّدۡتُّ لَهٗ تَمۡهِیۡدًا ﴿۱۴﴾ ثُمَّ یَطۡمَعُ اَنۡ اَزِیۡدَ ﴿۱۵﴾

او تیار کړی دی ما هغه لره سامانونه تیار ، بیا هغه دے طمع کوی چه زیاتی ورکړم .

چه بعض نصوصو نه ثابت ده لیکن دَ هغوی سختی به بیا بدله شی په اسانتیا سره او دَ کافرانو سختی نه بدلیږی په یُسر سره . دریمه فائده دا ده چه په دے کښ اثبات دَ یو څیز او نفی دَ ضد دَ هغے ئے کړے ده دَ پاره دَ تاکید دَ سختیٔ دَ هغه ورځے .

۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵ دا ایاتونه اګرچه په باره دَ ولید بن مغیره کښ نازل شوی دی لکه چه ابن جریر او ابن کثیر ذکر کړی دی لیکن اعتبار عموم دَ دے صفتونو ته دے یعنی دا راتلونکے ذکر کړے شوے نعمتونه چه په یو انسان باندے شویوی او په دے صفتونو سره موصوف وی لیکن دَ الله تعالیٰ دَ کتاب سره دُشمنی او عنادکوی نو دا ایاتونه هر هغه شخص ته شامل دی او مناسبت ئے دَ مخکښ سره دا دے چه دعوت او انذار دَ قیامت دَ راتللو نه وړاندے په تیر شوؤ ایاتو سره ضروری دے ځکه چه دُشمن دَ دے دعوت ډیر سخت دے دَ هغه سره مقابله کول هم سخت دی . وَحِیۡدًا حال دے دَ ضمیر مفعول نه چه پټ دے یعنی خلقته وحیدا او دا وحید صفت دَ هغه شخص دے حقیقتًا یعنی په وخت دَ پیدائش مال او اولاد ورسره نه وؤ یا صفت دے په اعتبار دَ زعم دَ هغه سره هغه به وئیل چه زهٔ وحید ﴿بے مثاله﴾ یم .
یا وحید حال دے دَ فاعل دَ خلقت نه نو صفت دَ الله تعالیٰ دے یا حال دے دَ مفعول نه یا ی متکلم ده دَ ذرنی نه او صفت دَ الله تعالیٰ دے .
مَالًا مَّمۡدُوۡدًا مال ډیر په وسعت سره چه فائده ئے جاری وی او هغه اوښان ، اسونه ، نورځاروی ، مریان ، ویخے او باغونه

كَلَّا ؕ إِنَّهُ كَانَ لِآيَاتِنَا عَنِيدًا ﴿۱۶﴾

هيچرې نشي کيدی. يقيناً دے زمونږ د ايايتونو سره عناد کوونکے دے.

سَأُرْهِقُهُ صَعُودًا ﴿۱۷﴾ إِنَّهُ فَكَّرَ

زه ځکاوم به اوخیژوم دهٔ لره په لویه چړهائۍ بانده. يقيناً دهٔ سوچ اوکړو

او نقد مالونه دی تولو ته شامل دے. وَبَنِينَ شُهُودًا حاضروؤ د پلار سره په هرمجلس اوجرګه کښ چه د سفرکولو د تجارتونو د پاره حاجت نه لری. وَمَهَّدتُّ لَهُ تَمْهِيدًا په نيز د عربو تيارول د سامان دی د پاره د آرام او آسانتيا يعنی د ژوند د وسعت او آسانتيا د پاره ئے دهٔ لره ډير اسباب او سامان ورکړی دے ډيرو نعمتونو او د مال قسمونو ته اشاره ده. ثُمَّ يَطْمَعُ يعنی روستو د تکذيب د قرآن او د رسول نه طمع د لياتوالی لری حال دا دے چه په ناشکرئ سره نعمتونه کميږی. أَنْ أَزِيدَ په دنيا کښ نور نعمتونه ورکول يا په آخرت کښ جنت ورکول په زعم د هغه سره.

سلا دا متصل دے د مخکښ سره نو دا ردعيه دے د هغه د اميدونو قطع کول کوی يا كَلَّا په معنیٰ د حقا سره دے او ابتدا د کلام ده.

عَنِيدًا صيغه د مبالغې ده د عناد نه دے يعنی عناد کول د هغه کسب او عادت ګرځيدلے دے او عناد د توحيد سره او د رسالت سره او د قرآن سره او د خبر د بعث سره عناد کوی، د هر يو حق خبرے سره عناد کوونکے دے، سره د علم نه انکار کوونکے دے.

سکا دا تخويف دے دغه عنادی ته. سَأُرْهِقُهُ د ارهاق نه اخستے شوے دے او ارهاق اخته کول د انسان دی په يو کار بانده په مشقت سره. صَعُودًا مشقت د داسے عذاب چه هيڅ راحت به ورسره نه وی. او په حديث د احمد او ترمذی کښ راغلی دی چه دا نوم د يو غر دے چه اويا کاله به هغه ته ورخيژی او بيا به ئے دغه شان خکته راغوځوی ليکن دا حديث منکر او غريب دے ابن کثير دغسے فرمائيلی دی.

وَقَدَّرَ ﴿۱۸﴾ فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴿۱۹﴾ ثُمَّ قُتِلَ

او اندازه ئې اولګوله، نو پس تباه دې شي څه رنګه اندازه ئې اولګوله، بيا دې تباه شي

كَيْفَ قَدَّرَ ﴿۲۰﴾ ثُمَّ نَظَرَ ﴿۲۱﴾ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ﴿۲۲﴾

چه څه رنګه اندازه ئې اولګوله، بيا ئې اوکتل، بيا ئې تندے تريو کړو او رنګ ئې بدل شو،

۱۸ـ ۱۹ـ ۲۰ـ دا تفسير دَ عناد دے چه په عنيداً کښې ذکر شو او لس احوال دي دَ تکذيب کوونکي دَ رسول او قرآن دَپاره په زجر ورکولو سره. اِنَّهٗ ضمير عنيداً ته راجع دے. فَكَّرَ مراد دا چه هر کله دَ دهٔ نه دَ قرآن او نبي په باره کښې تپوس اوکړيشونو دهٔ په هغې باندے دَطعن دَپاره سوچونه اوکړل وَقَدَّرَ يعني دَطعن کولو دَپاره په زړه کښې څه منصوبه جوړه کړله. فكّر ترتيب دَ مقدماتو دَ کلام دے او تقدير په هغې باندے نتيجه مرتب کولو دَپاره کلام جوړول دی. فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ دا په طريقه دَ دُعا دَ شرده اودَ الله تعالیٰ دَطرف نه په واقع کښې موجود ده او مراد دَدے نه اهلاک اولعنت کول دي. كَيْفَ دَپاره دَ تعجب دَ الله تعالیٰ نه دے بلکه دَپاره دَ تعجيب دے. ثُمَّ قُتِلَ الخ په دے کښې تکرار او کثرت دَلعنت ته اشاره ده يا اول اشارهٔ لعنت او اهلاک دَدُنيا ته او دويم اشاره ده لعنت او اهلاک دَ برزخ ته او قدار ئې دوه کرته ذکر کړو ځکه چه دَطعن کولو دَپاره ئې دوه قسمه کلمات جوړ کړے دي يو سحر او بل قول البشر چه وروستو ئې ذکر کړے دي.

۲۱ـ ۲۲ـ ۲۳ـ دا معطوف دے په فكّر و قدّر باندے. په ثُمَّ نظر کښې اشارهٔ ده چه په وخت دَ فکر کولو کښې سترګے پټے کړے وے يا ئې لاندے نظر کوؤ نو روستو دَ فکر نه ئې سترګے او غړولے او خلقو ته ئې اوکتل.

يا مراد دَ نظر نه نظرِ عقلي دے په هغه مطاعنو کښې چه هغه ئې په زړه کښې جوړ کړے وؤ يعني دليلونه ئې ورته سوچ کول. عَبَسَ هر کله چه انسان په يو څيز کښې فکر کوي او پوره نتيجے ته او نه رسيږي نو زړه ئې تنګ او تندے ئې تريو شي دَ سترګو په مينځ کښې ئې په تندي باندے ګونځے پيدا شي دې ته عبس وئيلے شي او عَبَس په اصل کښې هغه ګنځے او غوشيان وي چه په لکئ دَ خاروي پورے اوچ شوي وي

ثُمَّ اَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ ﴿۲۳﴾ فَقَالَ اِنْ هٰذَآ اِلَّا

بیا یې شا اوګرځوله او لویي یې اوکړه ، نو اُوئیل یې نه دے دا مګر

سِحْرٌ يُّؤْثَرُ ﴿۲۴﴾ اِنْ هٰذَآ اِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ ﴿۲۵﴾

جادو دے نقل کړے شوے ، نه دے دا مګر وینا ده د بنده ـ

اوکله عبس راځي په معنیٰ دَ صرف خفګان ښکاره کيدل په تندی کښې لکه سورة عبس سره کښې . وَبَسَرَ دَ تندی دَ چونړ کولو نه روستو په مخ باندے دَ خفګان اثر راشي مخ یې خړ شي او بدل شي دے ته بسور وئیلے کیږي. بعضو دا فرق کړے دے چه عبوس دَ خبرو کولو نه روستو وي او بسور دَ خبرو کولو نه مخکښې وي او دواړه په مخ کښې وي لیکن اول قول دلته صحیح دے . ثُمَّ اَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ په دے ثم کښې اشاره ده چه دَ طعن کولو دَپاره ورته هیڅ ثبوت ملاؤ نشو او تنګ شو نو پکار دا وه چه تصدیق یې کړے وے لیکن دَ عناد دَ وجے نه شا یې اوګرځوله یعنی تکذیب یې اوکړو او دا دَ جهل دَ وجے نه نه وُو بلکه وَاسْتَكْبَرَ دَ تکبر دَ وجے نه وُو .
او استکبار سپک ګنړل دَ حق خبرے او دَ حق نه په ضد سره انکار کولو ته وئیلے شي لکه چه په حدیث کښې راغلے دی او سین دَ استکبر دلیل دے چه دے استحقاق دَ لوئي نه لري په زوره باندے لوئي کوي .

۲۴ ـ ۲۵ په دے کښې تفصیل دَ قدّر دے چه دوه کرته ذکر وُو .
اِنْ هٰذَآ اِلَّا په طریقه دَ حصر سره یې اوئیل یعنی چا وئیل چه دے مجنون دے چا وئیل چه دے شاعر دے او قرآن شعر دے چا وئیل چه دے کاهن دے نو دے مکذب دَ هغې تردید اوکړو چه دا حکمونه غلط دی بلکه صرف سحر دے چه په هغې سره اولاد دَ مور او پلار نه او رونړه دَ یو بل نه جدا کوي یعنی یو شخص ایمان راوړي نو دَ هغه بل سره یې دشمني پیدا شي . يُؤْثَرُ په دے کښې اشاره ده چه دا زوړ سحر دے دَ مخکښې ساحرانو نه نقل کړے شوے دے یعنی مجرّب دے .
اِنْ هٰذَآ اِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ (سوال) په دواړو جملو کښې حصر دے او حال دے

سَاُصْلِيْهِ سَقَرَ ﴿۲۶﴾ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا سَقَرُ ﴿۲۷﴾

زر دے چه داخل به کړم دِے اُور ته - او څه پته ده تا ته چه څه دے سقر (اور).

لَا تُبْقِيْ وَلَا تَذَرُ ﴿۲۸﴾ لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ ﴿۲۹﴾

نه پریږدی باقی دَ دوی نه هیڅوك او نه پریږدی دَ بدن نه څه څیز. سوځوونکے دے دَ څرمنې.

چه حصر په یو کښ صحیح وی یا به سحر وی یا به قول البشر وی؟

(جواب ۱) دا کلام دَ منکر دے نو هغه منکر په هغے کښ مضطرب دے کله یو طعن کوی نو کله بل طعن کوی.

جواب ۲ اول حصر په نسبت دَ کهانت او شعر سره وو او دا حصر په نسبت دَ قول دَ الله تعالیٰ سره دے یعنی دا دَ الله تعالیٰ قول نه دے.

ف ۲۶ ۲۷ دا تخویف اخروی دے په سقر سره او دَ هغے هیبتِ شان په پنځه حالاتو سره ذکر کوی.

سَاُصْلِيْهِ دَ صَلْيٌ نه ماخوذ دے معنیٰ ئے دَ هغه پوره داخلول دَ سوځولو دَ پاره. دا خاص دے دَ ادخال نه. سَقَرُ په لغت کښ وِیلے کولو او بد شکله کولو ته وئیلے کیږی دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه دا نوم دَ شپږمے طبقے دَ جهنم دے.

ف ۲۸ فرق دَ دواړو په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا چه باقی نه پریږدی هیڅ څیز (چه پکښ داخل شی) مګر هلاك به ئے کړی او په حالت دَ اهلاك کښ به ئے هم نه پریږدی ترڅو چه دوباره جوړ شی او دا سے کار به همیشه وی. دویمه وجه دا چه نه به پریږدی غوښه او نه به پریږدی هډوکی دَ دوی. دریمه وجه دا چه نه به ئے پریږدی بغیر دَ عذاب نه او نه به ئے پریږدی په حالت دَ عذاب کښ. څلورمه وجه نه به ئے پریږدی ژوندے او نه مړ.

ف ۲۹ لَوَّاحَةٌ دَ لاحه نه دے دا سے سوځول چه صورت به بدل کړی. لِلْبَشَرِ مراد دَ دے ظاهری څرمن ده یعنی ټوله څرمن دَ بدن دَ جهنمی به دا سے او سوځوی چه تور سکور به شی او بل قول دا دے چه بشر نه مراد انسانان دی.

عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ ﴿۳۰﴾ وَمَا جَعَلْنَا أَصْحٰبَ النَّارِ

په هغې باندې مقرر دي نورلس[۱۹] - او نه دي مقرر کړي مونږ ساتونکي د اور

إِلَّا مَلٰٓئِكَةً ص وَّمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ إِلَّا فِتْنَةً

مگر ملائک او نه ده گرځولې مونږ شماره د دوی مگر امتحان

لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا لا لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ

د پاره د کافرانو د دې د پاره چه یوخ یقین اوکړي هغه کسان چه ورکړې شوي دي کتاب

وَيَزْدَادَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا إِيْمَانًا وَّلَا يَرْتَابَ

او زیاتې شي مؤمنان په ایمان کښې او شک او نکړي

الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْمُؤْمِنُوْنَ لا وَلِيَقُوْلَ

هغه کسان چه ورکړې شوي دي کتاب او مؤمنان او چه او وائي

الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْكٰفِرُوْنَ

هغه کسان چه په زړونو د هغوی کښې مرض (نفاق) دې او نور کافران

۳۰ دا عدد دې د ځوکیدارانو د جهنم چه په دوی کښې مالک (د دوی سردار) داخل دې او قرطبي وئیلي دي صحیح دا دې چه دا ټول به سرداران او نقیبان وي او د دوی د لاندې بې شماره نور ملائک دي لکه چه روستو راځي وَمَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ - او دا عدد د ډېرو حکمتونو نه ډک دې حروف د بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ نورلس دي حروف د أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰه هم نورلس دي فارغ ساعات (گهنټې) د موټځ کولو نه هم نورلس دي - دا عدد په جمع کثرت لس او په جمع قلت نهه باندې مشتمل دې - یعنې د جمع قلت انتها او د جمع کثرت ابتدا په کښې ذکر ده دا داسې اسم عدد دې چه مرکب دې بغیر د حرف عاطف نه چه د دۀ نه پره بل عدد په دې صفت سره نیشته او داسې عدد دې چه مرکب حالت کښې تنصیف تثلیث تربیع وغیره نه قبلوي یعني منجمد عدد دې سرۀ د ترکیب

باقي په راتلونکي

مَاذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا مَثَلًا ؕ كَذٰلِكَ

چه څه غوښتي دي الله تعالیٰ په دے بیان سره - د غسې

يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ

ګمراه کوی الله تعالیٰ هغه څوک چه اوغواړی او هدایت کوی

مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَمَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ

هغه چاته چه اوغواړی - او نه پیژنی لښکرے دَ رب ستا

اِلَّا هُوَ ؕ وَمَا هِيَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْبَشَرِ ﴿۳۱﴾

مګر هغه - او نه دے دا مګر یاداشت دے انسانانو لره -

نه، نو په دے عدد کښ دَ الله تعالیٰ ډیر حکمتونه دی. (والله اعلم).

سلا په دے ایت کښ ذکر دَ مصداق دَ تیرشوی اسم عدد دے یعنی چه هغه ملائک دی او ذکر دَ حکمتونو دَ دغه عدد دے. اَصْحَابَ جمع دَ صاحب په معنیٰ دَ محافظ او څوکیدار دے. او کافرانو ته چه اصحاب النار وئیلے شی هغه صاحب په ملازمه دَ اوسیدونکے دے. اِلَّا مَلٰٓئِكَةً یعنی انسانان او جنات نه دی (ستاسو دَ جنس نه نه دی) نو دَ هغے سره مقابله هم نشی کیدے ځکه ملائکة لفظ دلالت کوی په ډیر قوت باندے او دا رنګ دَ وجے دَ مخالفة الجنس نه دَ دوی امید دَ شفقت او رحم هم نشی کیدے.

وَمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ اِلَّا فِتْنَةً اه دا دَ عدد خاص (تسعة عشر) اوله فائده ده فِتْنَةً په معنیٰ دَ امتحان یا په معنیٰ دَ ګمراهئ یا په معنیٰ دَ عذاب سره دے او سبب (مضاف) محذوف دے او سبب دَ امتحان او دَ ګمراهئ دَ ډیرو وجوهو ته دے اول دا چه نورلس دی نو شل ولے نه دی او حال دا دے چه دا اعتراض خو په هر یو عدد باندے کیدیشی دویمه وجه دا چه الله تعالیٰ کمزورے دے چه صرف نورلس نوکران ئے دی لیکن ورپسے فرمائیلے دی. وَمَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ اه دریمه وجه دا چه کافرانو استهزاء کوله چه بے شمیره کافران دی نو نورلس ملائک په هغوی لره څه رنګ جهنم کښ واچوی (پاڅے په بل مخ)

او په هغې کښې په یې راګیر کړی لیکن حال دا چه یو ملك (جبرئیل) یو یو غړ او کلې هم پوره نه کولے شی او دا اعتراضونه سبب د ګمراهۍ دی.
او د سبب د عذاب دا معنی ده چه په آخرت کښې په ملائک د دوی په عذاب ورکولو پاندے مقرر وی او هغوی ته زبانیه ملائک وئیلے شی. لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ، دا متعلق دے د جعلنا سره او دویمه فائده د عدد ذکر کوی یعنی کافران اهل کتاب به د دے عدد په اوریدلو سره پوره یقین اوکړی په صداقت د رسول او قرآن باندے ځکه چه په تورات او انجیل کښې هم دا عدد ذکر دے.
لِيَسْتَيْقِنَ سین د مبالغې د پاره دے یعنی نفس یقین د دوی د مخکښې نه موجود دے لیکن اوس به یقین زیات شی. لیکن دا یقین ایمان نه دے ترڅو پورے چه اقرار د ایمان یې نه دے کړے. وَ یَزْدَادَ دا دریمه فائده ده یعنی مؤمنان د اهل کتابو نه چه د مخکښې نه د هغوی یقین او اقرار وو په صداقت د قرآن او رسول باندے او دا ایمان دے او د دے عدد په اوریدلو سره (په موافقت د تورات او انجیل سره) د دوی ایمان نور زیات شو او دا دلیل دے چه په ایمان کښې زیاتے راتلے شی لکه چه دا د ډیرو محدثینو مسلک دے.
او دے ته یې زیادت په دے وجه سره اُوئیلو چه اظهار د یقین په ژبه او عمل سره بار بار کیږی نو نورو خلقو ته د هغې علم حاصلیږی. او صرف یقین خو پټ دے د هغې د زیادت پته نه لګی.
وَلَا يَرْتَابَ الَّذِيْنَ اه دا څلورمه فائده ده (سوال) د لیستیقن نه روستو ولا یرتاب څه فایده لری او المؤمنون یې دوباره ولے ذکر کړو؟
(جواب) کله کله یقین د یو انسان حاصل شی لیکن بیا د وسوسو او شبهاتو په سبب سره په هغې کښې شک پیدا شی نو یقین زائله شی د دے وجے نه دلته یې نفی د ارتیاب اوکړه چه دا دا سے خبره ده چه په دے کښې شك شبه هم نشی راتلے او دلته د اُوْتُوا الْكِتٰبَ نه عالمان د تورات او انجیل مراد دی او مخکښې عوام مراد وو. او اَلْمُؤْمِنُوْنَ نه مراد مؤمنان د دے امت دی او مخکښې مؤمنان د کتابیانو مراد وو. (رپاتے په بل مخ)

وَلِيَقُوْلَ الَّذِيْنَ اه دا پنځمه فائده ده (سوال) دَ دے سورت دَ نزول په وخت کښې خو منافقان موجود نه وُو؟ (جواب) اول دا دے چه دا پیشن ګوئي رشتنئ ده اشاره ده چه راتلونکے زمانه کښې به منافقان پیدا کیږي او دا اعتراض به کوي۔ (جواب) دویم دا دے چه مراد دَ مرض نه شک دے او په دغه وخت په مکه معظمه کښې په کافرانو کښې بعض کسان صرف شکیان وُو دَ دے وجے سورۃ یونس ۹۴ کښې هغوی ته خطاب کړے شوے دے۔ وَالْكٰفِرُوْنَ مراد دے نه راسخین (کلک) دي یعني مراد عوام کافران دي۔ مَاذَآ اَرَادَ اللّٰهُ اه مَا په معنیٰ دَ اَیُّ شَیْءٍ او ذَآ په معنیٰ دَ الذی سره دے او ما بعد ئے صله ده یا مَآ په معنیٰ دَ اَیٌّ او ذَآ په معنیٰ دَ شَيٌّ دے او مقصود په استفهام سره انکار دے یعني دا بے مراد او بے فائدے دے۔ مَثَلًا په معنیٰ دَ حدیث (خبرے) سره دے یا په معنیٰ دَ مثال سره دے په ګمان دَ دوي کښې یعني دَ دوي خیال وُو چه په دے سره معنیٰ ظاهري مراد نه ده بلکه الله تعالیٰ په طریقه دَ مثال سره ذکر کړے ده لیکن په مثال سره مقصد څه دے؟ كَذٰلِكَ اه دا جواب دَ دے قول دے مَاذَآ او كذلك خبر دَ مبتدا محذوف دے یعني اَلْاَمْرُ كَذٰلِكَ یعني مقصد دَ دے معنیٰ ظاهري ده او فائدے پکښې اضلال دَ بعضو او هدایت دَ بعضو دے لکه چه سورۃ بقره ۲۶ کښې ذکر دے۔ یا دا جواب دَ هغوی دَ قول نه دے بلکه دا مستقله جمله دَ مخکښې دَ تاکید دَ پاره ده یعني لکه چه په دے کلام کښې دوه فائدے دي اضلال او هدایت نو دارنګ نور اقوال او افعال دَ الله تعالیٰ هم دَ دے دوه فائدو دَ پاره دي۔ او دا رو ستنئ احتمال په سورۃ بقره کښې نه وُو دَ دے وجے نه هلته ئے لفظ كذلك نه دے راوړے۔ او دا آیت صریح دلیل دے چه اضلال او هدایت په لاس دَ الله تعالیٰ کښې دي۔

وَمَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ اِلَّا هُوَ، دا جواب تحقیقي دے دَ اعتراض دَ مشرکانو چه هغوی وئیل چه نولس کسان به څه کار اوکړي؟

دَ جواب حاصل دا دے چه نولس خو مشران دي او نور ملائک دَ انسان دَ شمارے نه بهر دي او دا رنګ دا رد دے په

كَلَّا وَالْقَمَرِ ﴿۳۲﴾ وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ ﴿۳۳﴾

یقیناً داسے دہ او قسم دے پہ سپوږمئ باندے، او پہ شپہ باندے کلہ چہ شا او گرځوی،

وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ ﴿۳۴﴾ إِنَّهَا لَإِحْدَى

او پہ صبا باندے کلہ چہ رنړا کړی، یقیناً دا یو دے دَ

فلاسفہ یونانیین وغیرہ باندے چہ ھغوی وئیلے وو پہ نولس کښی لس عقول عشرہ دی او نہہ نفوس دی او دا قول دَ دوی انکار دے دَ ملائکو نہ۔ وَمَا هِيَ پدے ضمیر کښی درے توجیہات دی اول دا راجع دے ایاتِ قرانیہ او دلیلونو تہ نو ترغیب الی القرآن دے۔ دویم ضمیر راجع دے نار تہ یعنی ذکر دَ سقر کښی مقصد تخویف اخروی دے۔ دریم دا راجع دے جنود تہ یعنی پہ ذکر دَ دے لښکرو کښی دَ قدرت او دَ علم دَ اللہ تعالیٰ تذکیر او یادداشت دے بشر تہ۔ او دا مرجع نزدے دہ۔

۳۲ تا ۳۴ كَلَّا ردعیہ دے یعنی رد دے پہ انکار دَ منکرینو (منافقینو او کافرینو) یا پہ معنیٰ دَ حقاً سرہ دے۔ او جلالین محلی وئیلے دی چہ دا پہ معنیٰ دَ أَلَا سرہ دَ پارہ دَ تنبیہ دے۔ وَالْقَمَرِ تحقیق دَ قسم مخکښی ذکر شویدے۔ أَدْبَرَ دا لفظ دَ اضدادو نہ دے یعنی شا گرځول او راتلل دواړو دَ پارہ استعمالیږی نو یو معنیٰ دا چہ شپہ شا او گرځوی دویمہ دا چہ شپہ روستو راشی پہ ورځ پسے۔ وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ هر کلہ چہ ادبار دلالت کوی پہ تیریدلو باندے نو حرف دَ إِذْ (چہ دلالت کوی پہ ماضی باندے) ئے راوړو او هر کلہ چہ صبا پہ شپے پسے رنړا کوی او استقبال سرہ تعلق لری نو حرف دَ إِذَا ئے راوړو۔ أَسْفَرَ دَ دے معنیٰ دَ کشف او دَ خروج دہ یعنی دَ تیرے دَ شپے نہ راوځی او رنړا اوکړی۔ پہ قمر کښی خو اختلاط دَ رنړا دَ سپوږمئ او تیرے دَ شپے وی او دَ شپے خو صرف تیرے دی او دَ صبا خو صرف رنړا دہ او دا ټول تصرفات دَ اللہ تعالیٰ او دَ هغہ عظیم قدرت دے۔

الْكُبَرِ ﴿۳۵﴾ نَذِيْرًا لِّلْبَشَرِ ﴿۳۶﴾ لِمَنْ شَآءَ

لویو خیزونو نه ، ویره ورکوونکے انسانانو ته، هغه چالره چه غواړی

مِنْكُمْ اَنْ يَّتَقَدَّمَ اَوْ يَتَاَخَّرَ ﴿۳۷﴾ كُلُّ

ستاسو نه دا چه مخکښ شی یا روستو شی . هر یو

نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ رَهِيْنَةٌ ﴿۳۸﴾ اِلَّا

نفس په خپل عمل کښ په گانړه وی ، مګر

۳۵ سے ۳۷ دا جواب قسم دے. اِنَّهَا ضمیر راجع دے ایاتونو او دلیلونو دَ قرآن ته لکه چه تیر شوی ضمیر ہِیَ کښ دا توجیه وه او دَ روستو جملو سره دَ دے پوره مناسبت دے یا ضمیر راجع دے سقر ته یا تکذیب دَ نبی صلی الله علیه وسلم ته راجع دے په تاویل دَ خصلت سره یا قیامت ته راجع دے.

لَاِحْدَى الْكُبَرِ معنیٰ دَ احدایٰ دا ده چه غټ او لوئے هیبت ناک خیزونه خو ډیر دی لیکن دَ هغے نه دا یو داسے غټ دے چه نظیر ئے نیشته دے. نَذِيْرًا لِّلْبَشَرِ دا صفت دَ قرآن او دَ رسول دے او صفت دَ نارِ سقر او دَ قیامت هم کیدے شی او منصوب بنا په حالیت سره دے یا دا په معنیٰ دَ مصدر سره دے او منصوب دے بنا په تمیز کیدلو. لِمَنْ شَآءَ بدل دے دَ للبشر نه یا متعلق دے په نذیرًا پورے. اَنْ يَّتَقَدَّمَ مراد دَ دے نه ایمان راوړل دی ځکه چه هغه تقدم دے په دنیا کښ خیر ته او په آخرت کښ جنت ته. اَوْ يَتَاَخَّرَ مراد دَ دے نه کفر او شرک کول دی چه په هغے سره روستو شو دَ خیر دَ دنیا نه او محروم دے دَ جنت نه او دا دوه قسمونه په سورة الحجر ۲۴ کښ ذکر دی. او دا مشیت په طریقه دَ زورنے سره ذکر دے لکه سورة کهف ۲۹.

۳۸ دا تخویف دے (یتاخر) والو ته كُلُّ نَفْسٍ مذکر مؤنث ټولو ته شامل دے. بِمَا كَسَبَتْ دا ئے دَ تخصیص دَ پاره مقدم کړے دے یعنی صرف په خپل گناه نه په پردی گناه سره ځکه چه لا تزر وازرة وزر اخری. رَهِيْنَةٌ په معنیٰ دَ مرهونت دے یعنی

أَصۡحَـٰبَ ٱلۡيَمِينِ ﴿٣٩﴾ فِي جَنَّـٰتٖ يَتَسَآءَلُونَ ﴿٤٠﴾

ښي لاس والا ۰ په جنتونو کښې به وي ۔ تپوسونه به کوي ۰

عَنِ ٱلۡمُجۡرِمِينَ ﴿٤١﴾ مَا سَلَكَكُمۡ فِي سَقَرَ ﴿٤٢﴾

دَ مجرمانو نه ، څه څيز داخل کړے تاسو په سقر (اور) کښې ۔

بند او راګير به وي په عذاب کښې (سوال) رهينة په معنیٰ دَ مفعول سره دے په دې کښې مذکر او مؤنث يو شان دي نو مؤنث ولے ذکر شو؟ (جواب) قرطبي وئيلے دي دلته معنیٰ وصفي مراد نه ده بلکه رهينة اسم دَ رهن دے او تانيث په اعتبار دَ نفس سره دے ۔(سوال) په سورة طور ۲۱ اودے ايت کښې څه وجه دَ فرق ده ؟ (جواب) لفظي فرق خو دا دے چه هلته امرئ لفظ مذکر دے نو خبر ئې هم صيغه دَ مذکر ذکر کړه او دلته نفس کښې معنیٰ دَ تانيث ده ، او وجه دَ فرق دا ده چه سورة طور کښې دَ جنت والو ذکر دے نو لفظ دَ مذکر دَ هغوی سره مناسب دے دَ شرافت دَ وجې نه او دلته مراد جهنم والا دي ځکه چه جنت والا ئې ترينه روستو مستثنیٰ کړيدي ۔ او هلته دَ رهن معنیٰ مونږ په تفصيل سره ذکر کړيده ۔ او استعمال دَ رهن په دواړه ځايونو کښې په طريقه دَ استعارة او تشبيه سره دے ۔
۳۹ تا ۴۱ دا استثناء متصل ده دَ کل نفس نه يعنی اصحاب اليمين دَ ايمان او عمل صالح په وجې سره حق ادا کړيدے نو ځان ئې خلاص کړو لکه چه مديون دائن ته دين (قرض) ادا کړي نو خپله ځان ئې آزاده کړي ۔
فِي جَنَّاتٍ يکو نون مقدر پورے متعلق دے مستقل وصف دے او يتساءلون مستقل وصف دے او يتساؤلون ئې مطلق ذکر کړيدے يعنی کورنئے کښې به دَ يو بل نه حال تپوس کوي لکه سورة طور ۲۵ او سورة صافات ۵۰ کښې دي ۔ عَنِ الْمُجْرِمِينَ دا مستقل تپوس کول دي (سوال) په سورة مؤمنون ۱۰۱ کښې معلوميږي چه هيڅوک به تساؤل نشي کولے ؟
(جواب) هغه حال په ميدان حشر کښې مخکښې دَ فيصلے نه دے او دا حال په جنت کښې د ننه دے ۔ مُجْرِمِينَ هغه کسان دي چه هغوی پټ کفر او شرک په خپل عملونو سره ښکاره کړے دے دَ دې وجې نه

قَالُوْا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّيْنَ ﴿۴۳﴾ وَ

او ... نه ... موږ ګڼ اررو ... دَ ... موږ ... نه وو ... په اوایئ ... دوی

لَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِيْنَ ﴿۴۴﴾ وَكُنَّا

او دوو موږ ... مسکین ته ... خوراک ... ورکوو ... نه موږ

نَخُوْضُ مَعَ الْخَآئِضِيْنَ ﴿۴۵﴾ وَكُنَّا نُكَذِّبُ

او دوو موږ چې تکذیب موکوو ... مشغولتیا کوو ... دَ مشغولتیا ... سره ... په عبثو کښ مشغولینو ... چه

روستو ئې هغه اعمال ذکر کړے دي چه په هغې سره دَ دوی کفر ښکاره شوے دے اګرچه هغه مطلقًا کفر نه دے.

سطر ۴۲ لفظ دَ سلك کنایه ده دَ ډیر تنګ والی دَ سقر نه لکه چه تنګ سوري کښ غټ تار یا غټه څیز داخلیدلے شي.

سطر ۴۳ په دے کښ اشاره ده چه ترک دَ صلوٰة سبب دَ دخول دَ سقر دے او دا رنګ کافرانو ته به عذاب وي په ترک دَ فروعو سره سره دَ کفر نه. لفظ دَ مُصَلِّیْنَ په صیغه جمع سره اشاره ده چه صلوٰة دَ دوی دَ صحابو په شان نه وو او دا رنګ دَ هغوی دَ جماعت نه ئې نفرت وو. او ترک دَ صلوٰة اشاره ده ترک دَ ټولو عباداتو ته.

سطر ۴۴ مراد ترینه ترک دَ عباداتو مالیو دے چه مصرف دَ هغې په شرع کښ مسکینان دی لکه زکوٰة او نذر لِلّٰه تعالیٰ. اشاره ده چه دوی به نذر دَ غیر الله کوو چه مصرف دَ هغې منجوران او ملنګان او پیران دَ دوی وو.

سطر ۴۵ خَوْض باطل بحث کول او عمل کول دی یعنی هر باطل مجلس او باطل جماعت او ګمراه خلقو سره موږ ملګرتیا کوله. دَ شرک او کفر مجلسونو کښ کیناستل او دَ فسق وفجور کارونو کښ شرکت کول لکه عرسونه میلادونه رډ یداعاتو په رنګ ) سنیما ګانے وغیره دے ټولو ته دا لفظ شامل دے. مفسر الوسي ذکر کړے دی چه کومو جلسو اجتماعاتو مجلسو نو کښ دَ صحابه کرامو عیبونه ویلے کیږي هغه هم په دے کښ داخل دی.

بِيَوۡمِ الدِّيۡنِ ﴿۴۶﴾ حَتّٰٓى اَتٰىنَا الۡيَقِيۡنُ ﴿۴۷﴾

دَ ورځې دَ جزاء ، تر دے پورے چه راغے مونږ ته مرګ .

فَمَا تَنۡفَعُهُمۡ شَفَاعَةُ الشّٰفِعِيۡنَ ﴿۴۸﴾

نو نفع نه ورکوی دوی ته سفارش دَ سفارش کوونکو .

فَمَا لَهُمۡ عَنِ التَّذۡكِرَةِ مُعۡرِضِيۡنَ ﴿۴۹﴾

نو څه وجه ده دوی لره چه دَ نصیحت دَ قران نه مخ اړوی ،

كَاَنَّهُمۡ حُمُرٌ مُّسۡتَنۡفِرَةٌ ﴿۵۰﴾ فَرَّتۡ مِنۡ

ګویا کښی چه دوی خرۂ دی تښتنه کوونکی ، چه تښتنه کوی دَ

۴۶ دَ دے ټولو جرمونو منشاء دا ده چه په قیامت باندے عقیده نه لری بلکه ښکاره انکار کوی . دا ټولے صیغے دَ لم نك . وکنّا) دلالت کوی چه دا کارونه دَ دوی عادت ګرځیدلے وو .

۴۷ الۡيَقِيۡنُ په معنیٰ دَ مرګ دے لکه سورة حجر ۹۹ کښی ځکه چه عقل والا بلکه مطلق شعور والا مرګ باندے یقین کوی په مرګ کښی اختلاف نیشته اګرچه دَ هغے په اسبابو کښی یا دَ هغے نه په مابعد حالاتو کښی اختلاف دے . او په دے جمله کښی اشاره ده چه دوی تر مرګه پورے توبه دَ ګناهونو نه نه ده کړے .

۴۸ حرف دَ فَا دلالت کوی چه ماقبل جرمونه سبب دَ حرمان دَ شفاعت دی . فَمَا تَنۡفَعُهُمۡ تخصیص په ضمیر دَ هُمۡ سره دلالت کوی چه دَ دے قسم مجرمانو نه علاوه نورو مؤمنانو ګنهګارو دَ پاره هم شفاعت کیدے شی دا عقیده دَ اهل سنت والجماعت ده او نفی دَ نفع نه مراد نفی دَ نفس شفاعت ده یعنی دے مجرمانو دَ پاره شفاعت نیشته نو نفع به څه رنګ وی .

۴۹ نه ۵۱ دا زجر دے او سبب ذکر کوی دَ تیر شوے ذکر شوؤ جرمونو چه هغه اعراض دے دَ قران کریم نه . فَمَا لَهُمۡ استفهام دَ فائدے او دَ دلیل دے یعنی دَ اعراض دَ قران دَ پاره دَ دوی څه دلیل دے او څه فائده ده .

قَسْوَرَةٍ ﴿٥١﴾ بَلْ يُرِيدُ كُلُّ امْرِئٍ

ازمرى نه . بلكه غواړى هر سړے

مِّنْهُمْ أَنْ يُؤْتَىٰ صُحُفًا مُّنَشَّرَةً ﴿٥٢﴾

دَ دوى نه چه ورکړے شى هغه ته پاڼړے خورے ورے .

كَلَّا ۖ بَلْ لَا يَخَافُونَ الْآخِرَةَ ﴿٥٣﴾

هيچرے نيشته . بلكه دوى نه ويريږى دَ آخرت نه .

كَلَّا إِنَّهُ تَذْكِرَةٌ ﴿٥٤﴾ فَمَنْ شَاءَ

يقيناً دا خوامخوا نصيحت دے . نو څوک چه غواړى

كَأَنَّهُمْ تشبيه دَ اعراض دَ دوى دَ وحشى خرونو سره ده ځکه چه هغوى په نفرت کولو او تختيدلو کښ مشهور دى. مُسْتَنْفِرَةٌ باب استفعال کښ اشاره ده چه نفرت دَ دوى دَ طبيعت تقاضا ده ګويا که دَ دے طلب کوى.
قَسْوَرَةٍ دَ دے دوه معنے مشهورے دى يو اسد (ازمرے) چه حمار وحشى دَ هغه نه ډير ويريږى، دويم ويشتونکے (ښکار کوونکے) انسان. او قسورة مفرد او جمع دواړه استعماليږى. او قَسْوَرَةٍ شور کولو ته هم ويلے شى. اشاره ده چه قران بيانوونکے پشان دَ ازمرى په شجاعت کښ او پشان دَ ښکار کوونکے دے په دعوت دَ خلقو کښ او دَ هغه نه اعراض کوونکى پشان دَ وحشى خرونو دى.
۵۲ دا هم زجر دے دَ دوى په قول قبيحه باندے او په دے کښ ډير احتمالات دى اول دا چه هر يو شخص ته دے دَ قران پشان بيګاره کتاب ورکړے شى لکه په سورة انعام ۱۲۴ کښ دى دويم دا چه هر يو شخص ته دے دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه پيغام وى دَ دے نبى په صداقت باندے. دريم دا چه هر شخص ته دَ اُور نه براءت نامه را اوليږلے شى څلورم دا چه هر شخص ته دے دَ هغه دَ ګناهونو او دَ هغے دَ کفارے فهرستونه ورکړے شى او دا ټولے دَ دوى دَ عناد خبرے دى.
۵۳ كَلَّا ردعيه دے يعنى دا اراده دَ دوى نشى پوره کيدے بلکه دَ دے سبب دَ آخرت نه انکار کول دى.
۵۴ ۵۵ دا كَلَّا په معنىٰ دَ حقا او استفتاحيه دے په دے (پاتے په بل مخ)

ذَكَرَهٗ ﴿٥٥﴾ وَمَا يَذْكُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ؕ

نصیحت یے واخلی۔ او نه اخلی دوی نصیحت مگر چه او غواړی الله تعالیٰ

هُوَ اَهْلُ التَّقْوٰى وَاَهْلُ الْمَغْفِرَةِ ﴿٥٦﴾

هغه لائق دے دَ دے چه ویره ترے اوکړیشی او هغه لائق دے دَ بخنے کولو۔

جمله کښ تاکید دَ مضمون دَ سورت دے تَذْكِرَةٌ تنکیر دَ وجے دَ تعظیم نه دے یعنی دَ تذکیر په هره شعبه او په هره مناسب طریقه باندے پوره مشتمل دے دَ هیچا عذر ئے پریخودلے نه دے دَ دے وجے ورپسے په حرف فَ سره تفریع اوکړه فَمَنْ شَآءَ ذَكَرَهٗ، مِنْهُ ئے نه دے وئیلے یعنی دا قرآن دِ ے لولی او دَ دے درس و تدریس دِ ے کوی او په دے باندے دِ ے عمل کوی په شَآءَ لفظ کښ اشاره ده چه دَ قرآن نه دَ وعظ حاصلولو دَ پاره پوره اراده او توجو کول ضروری دی. او شربینی وئیلے دی چه دَ دے مثال دَ خوږ سمندر دے څوک چه غواړی نو چونګونه او کړی ترینه څکوی نقصان پکښ نه راځی۔

۵۵ په دے کښ تصریح ده چه بنده کارونه په مشیّت (اراده) دَ الله تعالیٰ سره دی دارنګ په سورة تکویر ۲۹ کښ هم دی لیکن په هغه سورت کښ کلام دے په مشیت باندے نو دَ انسان مشیت ئے په مشیت دَ الله تعالیٰ باندے موقوف کړو او په دے سورت کښ بحث دے په تذکیر باندے نو تذکیر دَ انسان ئے مشروط کړو په مشیت دَ الله تعالیٰ باندے۔

هُوَ اَهْلُ التَّقْوٰى یعنی په تذکیر دَ قرآن سره تقوىٰ دَ شرک او کفر نه حاصلیږی او په تقوىٰ سره مغفرت حاصلیږی او دا دواړه خاص دی په الله تعالیٰ پورے دَ دے وجے نه اهل ئے اوئیل او احمد او ترمذی حدیث نقل کړیدے چه ستاسو رب فرمائیلی دی " زهٔ اهل یم دَ دے چه زما نه تقوىٰ اوکړے شی نو ما سره به بل الٰه نه جوړوی نو اهل یم دَ دے چه دا سے شخص ته به بخنه کووم ". خو دا حدیث ضعیف دے۔

ختم شو تفسیر دَ سورة مدثر په فضل دَ الله تعالیٰ سره

| سُوْرَةُ الْقِيٰمَةِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۴۰ رُكُوْعَاتُهَا ۲ |
|---|---|---|

لَآ اُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۝۱ وَلَآ اُقْسِمُ

داسے نه ده ، قسم کوؤم په ورځ ذَ قیامت ۰ او داسے نه ده، قسم کوؤم

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة القيامة

ربط دَ دے دَ ما قبل سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښ زجر وؤ په معرضینو عن القران باندے نو په دے سورت کښ تخویف اخروی دے هغوی لره۔ دویمه وجه دا ده چه مخکښ تیزی ورکول وؤ په تبلیغ دَ قران باندے او په دے سورت کښ ادب دے دَ تعلم دَ قران۔ دریمه وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ رد وؤ په مکذبینو دَ حشر باندے نو په دے سورت کښ اثبات دَ حشر دے (ربوهه شئ) چه دَ دے سورت نه تر سورة الاعلی پورے پنځه سورتونو کښ دَ قیامت اثبات دے په شواهدو او په دلیلونو سره او ذکر دَ حالاتو دَ قیامت دے په تفصیل سره او په هر سورت کښ جدا جدا عنوان دے.

**دعویٰ دَ دے سورت** اثبات دَ قیامت دے په ذکر دَ جمع العظام سره په ۳ کښ او دَ الله تعالیٰ یو نوم ئې مکرر ذکر کړے دے (رَبّ).

**خلاصه دَ سورت**. اول ئې دوه شواهد ذکر کړیدی او دعوی دَ سورت ده تر ۴ پورے بیا زجر دے په انکار دَ حشر باندے په ۵ ۶ کښ بیا لس حالات دَ قیامت ذکر کوی دَ پاره دَ تخویف اخروی تر ۱۵ پورے. بیا ذکر کوی ادب دَ قران په عدم تعجیل سره او په اتباع دَ قران سره او دا کار وته دَ الله تعالیٰ په پاره کښ. دَ قران جمع کول، لوستل، بیا نول. او په دے کښ مقصد دے اشتغال په قران باندے دَ پاره دَ یاداشت دَ قیامت تر ۱۹ پورے بیا زجر دے په محبت دَ دنیا او ترک دَ اخرت باندے او بشارت دے اهل اخرت ته ریاتے په بل مخ)

بِالنَّفۡسِ اللَّوَّامَةِ ۝۲ اَيَحۡسَبُ الۡاِنۡسَانُ

| په نفس | ملامته کوونکې۔ | آیا گمان کوی | انسان |
|---|---|---|---|

تر ۲۳ پورے بیا تخویف دے دُنیا پرستو ته په ذکر دَحالت دَ نزع سره تر ۳۰ پورے۔ بیا زجر دے په څلورامورو سره انکار دَ قیامت او دَ توحید او رسالت او قران سرهٔ دَ زجرِ شدید نه په انکار دَ بعث بعد الموت او اثبات دَ بعث دے په دلیل سره۔

تفسیر ۱ ۲ لَآ په مقام دَ قسم کښ راوړل عادت دَ عربو دے اکثر په مینځ دَ کلام کښ۔ او په اول دَ کلام کښ هم کله کله راځی ځکه چه دا کلام الله دَ ټولو کښ کلام سره په ربط او ترتیب سره ذکر کړے دے لکه چه مخکښ سورت کښ تکذیب دَ قیامت یئے ذکر کړو نو دلته فرمائی لَآ یعنی تکذیب نه دے جایز نو په دے کښ نفی دَ انکار سابق ده۔ او په قراءة دَ ابن کثیر قاری کښ لَآ په غیر دَ الف نه دے نو په دے کښ معنیٰ دَ تاکید ده دا سے بحث په تفسیر دَ سورة الواقعه کښ تیر شوے دے۔

اُقۡسِمُ بِيَوۡمِ الۡقِيٰمَةِ مراد دَ یوم القیامة نه دَ هغې احوال دی چه مخکښ سورتونو کښ ذکر دی او څه په روستو سورتونو کښ ذکر کوی دغه حالات شاهد دی چه قیامت او هډوکی راجمع کول او دوباره ژوندی کول یقینی دی۔ وَلَآ اُقۡسِمُ بِالنَّفۡسِ اللَّوَّامَةِ تکرار دَ لا اقسم دَ پاره دَ تاکید دے او دا رنګ دویم حالت چه (سُّدًى بَنَانَه دے) دَ دے اثبات هم مقصد دے۔ نَفۡسِ اللَّوَّامَةِ هغه مؤمن دے چه دنیا کښ هر وخت دَ ځان سره حساب کوی که څه ګناه اوکړی نو توبے اوباسی او که څه خوراک څښاک اوکړی نو ځان سره وائی چه دا ما دَ څه مقصد دَ پاره اوکړو او ما څه شکریه ادا کړے ده۔ او دَ دهٔ ذکر سورة آل عمران ۱۳۵ کښ هم دے۔ هر کله چه ورځ دَ قیامت وخت دَ حساب دے دَ ټولو سره او نفسِ لوّامه حساب کوونکے دے دَ خپل ځان سره دَ دے وجے نه دواړه یئے په یو ځائے کښ جمع کړل۔ او جواب دَ قسم محذوف دے یعنی لتبعثن بجمع العظام (ضرور به ژوندی کړے شئ په طریقه دَ جمع کولو دَ هډوکو ستاسو سره) او مناسبت دَ قسمونو دَ جواب سره دا دے چه هر کله دَ

أَنْ لَّنْ نَّجْمَعَ عِظَامَهٗ ﴿۳﴾ بَلٰى

چه چرے به جمع نه کړو مونږ هډوکی دَ دهٔ - ولے نه بلکه

قٰدِرِيْنَ عَلٰٓى أَنْ نُّسَوِّيَ بَنَانَهٗ ﴿۴﴾

قدرت لرو په دے چه برابر کړو بندونه دَ گوتو دَ دهٔ -

ربُّ العالمين په مخکښې قيام يقيني دے په يو ورځ کښې نو معلومه شوه چه مرګ نه روستو بيا ژوندای کول هم هغه ته څه ګران نه دی - او هرکله چه نفس دَ مؤمن دَ ګناه نه توبے اوباسی او ځان سره حساب کوی نو دا ضروری ده چه دَ ټولو هډوکی راجمع کړېشی او دوباره ژوندی کړے شی دَ پاره دَ حساب - او بل مناسبت دا دے چه په ورځ دَ قيامت الله تعالیٰ دَ ډيرو څيزونو په جمع کولو قادر دے (جمع دَ بدن او روح - جمع دَ ټولو انسانانو په يو ميدان کښې - جمع دَ ټولو عملونو په مخکښې دَ انسان وغيره) نو دَ هډوکو په جمع باندے هم قادر دے او هرکله چه په يو نفس کښې خيال دَ ګناه کولو او محبت او اخلاص دَ توبے کولو دواړه ئے جمع کړے دی نو معلومه شوه چه دَ هډوکو په جمع کولو او بندونو برابرولو باندے هم قدرت لری -

۳ دا زجر دے مشتمل دے په دعویٰ دَ سورت باندے همزه دَ استفهام توبيخی دے - اَلْإِنْسَانُ الف لام عهدی دے مراد ترينه انسان منکر دَ قيامت دے او دا سے انکار په سورة يٰس ۷۸ کښې او سورة اسراء ۴۹ او ۹۸ او سورة مؤمنون ۳۵ ۸۲ او سورة صافات ۱۶ ۵۳ او سورة واقعه ۴۷ او سورة النازعات ۱۱ کښې هم ذکر شوے دے -

۴ بَلٰى په دے باندے وقف کول پکار دے دا ايجاب دے دَ نفی مخکښې - قَادِرِيْنَ دا حال دَ ضمير متکلم دے دَ فعل مقدر نه يعنی نجمعها قادرين -

عَلٰى أَنْ نُّسَوِّيَ بَنَانَهٗ په دے کښې دوه قولونه دی اول دا چه لګه مونږ قدرت لرو دَ بندونو په فنا کولو او خاورے کولو

بَلْ يُرِيْدُ الْاِنْسَانُ لِيَفْجُرَ اَمَامَهٗ ۝٥

بلکه غواړی انسان چه انکار اوکړی دَ مخې دَ حالاتو ته.

يَسْـَٔلُ اَيَّانَ يَوْمُ الْقِيٰمَةِ ۝٦ فَاِذَا

تپوس کوی کله به وی ورځ دَ قیامت . نو کله چه

بَرِقَ الْبَصَرُ ۝٧ وَخَسَفَ الْقَمَرُ ۝٨

ګیړے پرے شی سترګے . او توره شی سپوږمۍ .

نو دا رنګ قدرت لرو دَ دے بندونو په دوباره جوړولو یا ندے او داخو واړه هډوکی او باریک جوړخ دے نو معلومه شوه چه دَ غټو هډوکو په جمع کولو خو ضرور قدرت لرو. دویم قول دا دے چه قدرت لرو چه ګوتے دَ لاسونو او خپو هموارے کړو او دَ اوښ پشان یوه خیړه تریته جوړه کړو او بیا به وریا ندے هیڅ کار نشے کولے او دا پشان دَ سورة واقعه سلا شو لیکن اول قول غوره دے .

ف ۵ دا هم زجر دے او معطوف دے په مخکښ استفهام یا ندے نو په دے کښ هم استفهام توبیخی مقدر دے او قرینه دَ دے لفظ دَ يَسْـَٔلُ اَيَّانَ دے یا بَلْ جواب دے دَ مخکښ استفهام یعنی دَ دے انسان تپوس کول مقصود نه دے بلکه اراده دَ فجور او انکار ده او يَسْـَٔلُ مستقل زجر دے . لِيَفْجُرَ فجور نه مراد انکار او تکذیب دے .

اَمَامَهٗ ضمیر راجع دے انسان ته او مراد دَ راتلونکے نه عذاب دَ قبر او بیا بعث او حساب او میزان دے . یا ضمیر راجع دے یوم القیامة ته او مفعول دَ یفجر پټ دے یعنی لیفجر بالحق (چه انکار کوی دَ حق نه مخکښ دَ راتللو دَ قیامت ته) اَيَّانَ دا استفهام دَ استبعاد (لرے ګڼړل دَ عقل نه) په ځائے کښ استعمالیږی په طریقه دَ انکار سره .

ف ۶ ۷ دا تخویف دے په ذکر دَ هیبتونو دَ ورځ دَ قیامت سره او دا جواب دَ اَيَّانَ دے په طریقه دَ تخویف سره . بَرِقَ په معنیٰ دَ تحیّر او دَ دهشت دے یا په معنیٰ دَ اوچت والے او په ځائے با ندے او دریدل دَ سترګو لکه سورة ابراهیم س۴۳ کښ او دا حالت په وخت دَ

وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ۙ﴿۹﴾ يَقُوْلُ الْاِنْسَانُ

او جمع کړېشي نمر او سپوږمۍ ، وائي به انسان

يَوْمَئِذٍ اَيْنَ الْمَفَرُّ ﴿۱۰﴾ كَلَّا لَا وَزَرَ ﴿۱۱﴾

په دغه ورځ چه کوم ځائے دے د تختېدلو. چرے نیشته ، نیشته پټ کیدل.

مرګ او په وخت د بعث په دواړو کښ دے. وَخَسَفَ الْقَمَرُ دا خسوف د همیشه د پاره دے او خسوف د قمر په دنیا کښ د یو وخت د پاره وی. وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ مراد د جمع نه د دواړو خسوف دے یعنې دواړه به یو شان بے رڼا شی. یا مراد دا دے چه د مغرب د طرف نه به دواړه یو ځائے خړ راښکاره شی او دا قول د ابن عباس او ابن مسعود رضی الله عنهم نه روایت دے یا دا چه په ورځ د قیامت به دواړه راجمع کړېشي او په اور د جهنم کښ به ئے واچوی د پاره د ملامته کولو د هغه چا چه د دوی عبادت ئے کوؤ د عذاب د پاره به ئے نه اچوی.

(سوال) الشمس مؤنث دے نو جمعت ئے ولے او نه وئیل ؟

جواب دے په ډیرو وجوهو سره اول دا چه دا په معنیٰ د جمع بینهما سره دے دویمه وجه دا ده چه په دے کښ تغلیب د مذکر (قمر) ئے کړے دے په مؤنث باندے دریمه وجه دا ده چه شمس مؤنث غیرحقیقی دے نو تذکیر ورسره جائز دے - (فائده) په دے ایاتو نو کښ مقصد زائل کول د رڼا کانو دی په طریقه د ترقیٔ د ادنیٰ نه اعلیٰ ته یعنې اول ئے بصر ذکر کړو چه د هغے رڼا کمه ده بیا ئے قمر ذکر کړو چه د بصر نه زیاتے رڼا والا دے بیا ئے شمس ذکر کړو چه د ټولو نه زیات دے.

سئله ۱۰ سئله ۱۱ سئله ۱۲ دا هم د قیامت د مصیبتونو ذکر دے. اَلْاِنْسَانُ هر انسان مراد دے که مؤمن وی او که کافر وی د وجے د هیبت نه به دا سے وائی. یا مراد د دے نه صرف کافر دے - اَيْنَ الْمَفَرُّ دا مصدر دے په معنیٰ د فرار سره او فرار د الله تعالیٰ نه کوی د وجے

إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمُسْتَقَرُّ ﴿١٢﴾ يُنَبَّؤُا

ستا رب ته په دغه ورځ قرار دے ذ ټولو. خبر به ورکړے شي

الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ ﴿١٣﴾

انسان ته په دغه ورځ په هغه عمل چه مخکښ ئے لیږلے دے او روستو ئے پریخے دے

بَلِ الْإِنسَانُ عَلَىٰ نَفْسِهِ بَصِيرَةٌ ﴿١٤﴾

بلکه انسان خپل ځان لره لیدونکے دے ،

وَلَوْ أَلْقَىٰ مَعَاذِيرَهُ ﴿١٥﴾ لَا تُحَرِّكْ بِهِ

اگر چه غورځوی بهانے . مه خوځوه په دے قرآن سره

دَ شرم نه یا فرار دَ جهنم نه دَ وجے دَ ویرے نه. كَلَّا ردعیه دے یعني فرار نشي کیدے او لَا وَزَرَ تفسیر دَ كَلَّا دے یا ترقي ده په کلام کښ یعني ځائے دَ پناه ځئ نیشته دے نو فرار به چرته اوکړی. وَزَرَ په لغت کښ هر هغه څیز ته وئیلے شي چه په هغے سره پناه حاصلیږی قلعه وی او که غر وی. اِلٰى رَبِّكَ مقدم کړے دے دَ پاره دَ تخصیص.

الْمُسْتَقَرُّ ځائے دَ رجوع یا ځائے دَ آخری فیصلے لکه سورة نجم ۴۲ کښ.

۱۳ دا هم حال دَ آخرت دے په وخت دَ حساب یا دَ وزن دَ اعمالو یا صحیفو تقسیمولو په وخت کښ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ په دے کښ توجیه دی ۱ قَدَّمَ، دَ مرګ نه ئے مخکښ کړیدی نیک یا بد عملونه وَأَخَّرَ دَ مرګ نه روستو نیه طریقه یا بده طریقه ئے پریخودلے ده. ۲ قَدَّمَ ګناه ئے کړے دے أَخَّرَ طاعت ئے پریخودلے دے ۳ کړے دے طاعت دَ الله تعالیٰ او برباد کړیدے حق دَ الله تعالیٰ ۴ قَدَّمَ صدقه ئے کړیدی دَ پاره دَ ځان خپل وَأَخَّرَ څه مالونه ئے پریخودلے دی دَ پاره دَ وارثانو ۵ په اول عمر کښ کړیدی او په آخری عمر کښ کړیدی. صحیح دا ده چه دا الفاظ دے ټولو معانو ته شامل دی هیڅ منافات ئے نیشته دے.

۱۴-۱۵ بَلْ دَ پاره دَ ترقي دے دَ يُنَبَّؤُا نه یعني اِخبار ته حاجت نیشته

لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ﴿١٦﴾ اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ

ژبه خپله چه تادی کوے په دے سره. یقینًا زمونږ په ذمه باندے جمع کول دده دی

انسان پخپله په ځان باندے گواه دے. بَصِيْرَةٌ یعنی نفس او اندامونه دَ ده گواه دی دَ ده په عملونو باندے لکه په سورة اسراء ١٤ او سورة نُور ٢٤ کښ دی.

سوال:- بصیرت مؤنث دے او انسان خو مذکر دے؟

جواب:- اول دا چه مراد ترینه جوارح (اندامونه) دی جَوَارِحُهٗ شَاهِدَةٌ دویم دا چه تَا په بصیرة کښ دَ پاره دَ مبالغے دہ نه دَ دَ پاره دَ تانیث. دریم الانسان کښ لام جاره پټ دے للانسان علی نفسه جوارح بصیرة. مَعَاذِيْرَهٗ جمع دَ معذار ده په معنیٰ دَ پردے دے یعنی اگر چه په ځان باندے پردے اچوی او خپل عملونه پټوی دَ وجے دَ شرم نه. یا مفرد دَ دے مصدر میمی دے په معنیٰ دَ عذر سره یعنی اگرچه عذرونه (بهانے) پیش کوی لکه سورة غافر ٥٢ کښ او سورة نحل ٢٨ کښ او سورة مرسلات ٣٦ کښ.

١٦ ١٧ ١٨ ١٩ په دے ایاتونو کښ ذکر دَ ادب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته په وخت دَ وحی راوړلو دَ جبرئیل علیه السلام او لوستلو دَ هغے کښ نبی صلی الله علیه وسلم ته. ځکه حدیث صحیح دَ بخاری کښ ثابت ده چه نبی صلی الله علیه وسلم به په اوله زمانه دَ وحی کښ ډیر تکلیف برداشت کوؤ چه کله به جبرئیل علیه السلام وحی لوستله نو دهٔ به ورسره شونډے خوځولے او لوستل به ئے کول او په ځان باندے به ئے مشقت تیرولو دَ دے دَ پاره چه هیر نشی نو الله ورته اول ایت کښ اول ادب او خودلو چه دا سے عجلت مه کوه. بیا ئے ورته درے ذمه وارئے ذکر کړلے ١ جمع کول دَ قران په سینه دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښ ٢ او لوستل دَ هغے اسانول چه دا دَ ژبے سره تعلق لری. او ٣ روستو دَ لوستلو نه دَ هغے تفسیر او وضاحت دَ مقاصدو. او په دریم ایت کښ دویم ادب ئے او خودلو چه دَ جبرئیل دَ لوستلو په وخت کښ پوره غوږ کیداه او عمل په

وَ قُرْاٰنَهٗ ﴿١٧﴾ فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ ﴿١٨﴾

او لوستل دَ دے۔ نو هرکله چه مونږ ئے اولولو نو روان شه په لوستلو دَ دے پسے۔

هغے بانده شوروکړه۔ لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ دا نهی دَ شفقت دَ پاره ده ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم به شونډے اوژبه خوځوله په وخت دَ لوستلو دَ جبرئیل علیه السلام کښې۔ او دلته ئے لسان ذکر کړو او په حدیث کښې شفتین ذکر کړے دی نکته دا ده چه اصل لوستل خو په لسان سره وی او شونډے خو صرف په بعضِ حرفونو کښې دَ لسان سره تعاون کوی نو قرآن اصل ذکر کړو او حدیث کښې ئے فرع او معاون ذکر کړے دے۔ بیا صحابه کرامو خو ژبه دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ وخت دَ لوستلو کښې نه لیدله بلکه شونډے لیدلے نو حدیث کښې دَ شونډو ذکر اوشو او الله تعالیٰ خو عالم دے په پټ بانده یعنی هغه خو لیدله چه دے خو ژبه خوځوی نو قرآن کښې دَ ژبے ذکر اوکړو۔
لِتَعْجَلَ بِهٖ شریعتی ذکر کړے دے چه هرکله تعجیل په قرآن لوستلو کښې منع دے نو معلومه شوه چه په نورو کارونو کښې مناسب نه دے او امام شعبی وئیلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم دَ وجے دَ محبت دَ قرآن او دَ هغے دَ خوږوالی نه په ژبه بانده عجلت کوؤ نو منع او شوه چه په دے سره کلام الله کښې دَ یو بل نه دَ کلماتو جدائی راځی او حال دا دے چه کلمات دَ قرآن دَ یو بل سره مربوط دی، او دا آیت پشان دَ سورة طٰه ۱۱۴ دے۔ اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَ قُرْاٰنَهٗ مراد دَ جمع نه په سینه کښې راجمع کول دی یعنی دَ هیریدلو نه۔ بیځ کول لکه په سورة اعلیٰ ۶ کښې دی او دا دلیل دے چه الله تعالیٰ هرکله دَ دے جمع کولو ذمه وار دے نو دارنګ دَ جمع دَ قرآن په یو مصحف کښې هم ذمه وار دے نو معلومه شوه چه دا قرآن چه اوس مجموع دے دا هم په جمع کولو دَ الله تعالیٰ سره دے اګرچه الله تعالیٰ دَ دے دَ پاره ابوبکر رضی الله عنه او بیا عثمان رضی الله عنه سبب اوګرځول۔
وَ قُرْاٰنَهٗ دلته معنیٰ مصدری مراد ده یعنی لوستل دَ قرآن او چلول دَ دے ستا په ژبه بانده لکه په سورة مریم ۹۷ او سورة دخان ۵۸ کښې ذکر دی۔

ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ ﴿۱۹﴾ كَلَّا بَلْ تُحِبُّوْنَ

بیا یقینًا زموږ په ذمه بانډے وضاحت کول دَ دے دی۔ چرے داسے نه دہ، بلکہ مینه کوئے تاسو

فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ مراد دَ قرأناه نه لوستل دَ جبرئیل علیه السلام دی ځکه چه هغه کلام دَ الله تعالیٰ دے او په اِذن دَ الله تعالیٰ سره جبرئیل علیه السلام لوستولو۔ فَاتَّبِعْ اه مراد دا چه غوږ ورته کیده بیا ئے اولوله په هغه طریقه چه په تا بانډے لوستلے شوی دے او اتباع دَ احکامو او شرائعو دَ قرآن کوه۔ ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ، بیان دَ الفاظو او دَ معانو دَ قرآن نبی صلی الله علیه وسلم ته دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دے او دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ طرف نه صحابه کرامو ته او بیا دَ هغوی په واسطے سره رفته رفته ټولو خلقو ته قرآن رسول دَ الله تعالیٰ ذمه داری ده۔ بَيَانَ کله په طریقه دَ تفسیر القرآن بالقرآن وی او کله تفسیر دَ قرآن په حدیث سره وی او کله په اقوالو دَ صحابه کرامو او کله په اقوالو دَ تابعینو سره وی۔ او دیته بیانِ تفسیر ویلے شی۔ ثُمَّ دَ پاره دَ تفاوت دَ ماقبل او مابعد دے یا دَ پاره دَ تراخی دے ځکه چه بیانِ تفسیر اکثر روستو واقع کیږی دَ ضرورت دَ مخاطب دَ وجے نه۔ (تنبیه) ربط دَ دے ایاتونو دَ ماقبل او مابعد سره په څو وجوهو سره دے یو وجه هغه چه موږ په خلاصه کښ ذکر کړے ده دویمه وجه دا ده چه جمع دَ هډوکو په ورځ دَ قیامت او جمع دَ نمر او سپوږمۍ بانډے الله تعالیٰ قدرت لری ځکه چه جمع دَ قرآن بانډے قادر دے نو په انسان کښ هیڅ هډوکے او ذره نشی پاتے کیدے لکه چه په قرآن کریم کښ هیڅ حرف نشی ضائع کیدے۔ دریمه وجه دا ده چه دَ ورځ دَ حساب دَ پاره لوئے عمل صالح شغل دَ قرآن کریم دے دَ شرعی ادابو سره برابر او هرکله چه دَ قرآن نه غافل کوونکے څیز دَ دنیا محبت دے دَ دے وجے نه روستو ایاتونو کښ په هغے بانډے زجر ورکوی۔

الْعَاجِلَةَ ﴿٢٠﴾ وَتَذَرُوْنَ الْاٰخِرَةَ ﴿٢١﴾

دَ دُنیا سره او پریږدئ اخرت لره ـ

وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ﴿٢٢﴾ اِلٰى رَبِّهَا

بعضِ مخونه به په دغه ورځ تازه وی ، خپل رب ته به

نَاظِرَةٌ ﴿٢٣﴾ وَوُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ بَاسِرَةٌ ﴿٢٤﴾

کتونکی وی ـ او بعضِ مخونه به په دغه ورځ بد رنګه وی ،

سـ٢٠ سـ٢١ په دے کښ زجر دے په حب دَ دنیا چه انسان لره دَ قران نه غافل کوی کَلَّا په معنیٰ دَ حقا سره دَیا ردع ده دَ هغه چاچه ایمان په تفسیر او بیان دَ قران باندے نه لری ـ تُحِبُّوْنَ دَ محبت تقاضاداده چه دنیا او مالونه او عزت دَ هغے لره دَ اخرت په کارونو باندے ترجیح ورکوی ـ الْعَاجِلَةَ په دے تعبیر کښ اشاره ده چه دَ قران او دَدین دَ کارونو سره عجلت مناسب نه دے ځکه چه عجلت دَدنیا دَ محبت نتیجه ده ـ او دنیا ته عاجله دَ دے وجے نه وئیلے شی چه زر فنا کیږی یا عاجل ده په نسبت دَ اخرت سره چه هغه روستو دے ـ
وَتَذَرُوْنَ اشاره ده چه محبت دَ دنیا سبب دے دَپاره دَ پریښودلو دَ اخرت ځکه چه شریعت لیکلے دی چه دَدنیا او دَ اخرت مثال دَ دوه بنو (بنځو) دے دَ دواړو رضا ګرانه ده او دا رنګ په سورة دهر سـ٢٧ کښ ذکر دی او تُحِبُّوْنَ تَذَرُوْنَ خطاب کافرانو ته دے او هغه مؤمنان چه منهمک دی په دنیا کښ هغوی ته هم شامل دے ـ
سـ٢٢ سـ٢٣ دا بشارت دے اهل اخرت دے وُجُوْهٌ ئے ذکر کړو ځکه دَ نضارت اثر اول په مخ باندے ښکاره کیږی نو دا ذکر دَ جزء اشرف او مراد ترینه کل بدن دے ـ نَاضِرَةٌ تازه او سپین او رڼا والا به وی په دلیل دَ سورة العمران سـ١٠٦ او سورة عبس سـ٣٨ سره ـ اِلٰى رَبِّهَا دا تقدیم دَ دے دَپاره دے چه دَ دوی لوئے مقصد صرف دیدار دَ الله تعالیٰ دے ـ نَاظِرَةٌ دَ نظر نه دے او هرکله چه دَ نظر په صله کښ اِلٰى وی نو صرف په معنیٰ دَکتلو سره وی دَ انتظار

په معنیٰ نه وی. او دا په ډیرو ایاتونو کښ دے لکه سورة توبه ۱۲۷ سورة یونس ۳۳ سورة عبس ۲۳ سورة احزاب ۱۹۔
او کله چه دَ دے په صله کښ فِیْ راشی نو په معنیٰ دَ فکر او سوچ کولو وی لکه سورة اعراف ۱۸۵ او کله چه بغیر دَ صلے نه راشی نو کله په معنیٰ دَ انتظار او مهلت سره راځی۔ دلته صله اِلٰی دلیل دے چه دَ ناظرة معنیٰ "دیدان کوونکے" ده۔ نو دا ایت صریح دلیل دے چه په جنت کښ به مؤمنان دَ الله تعالیٰ دیدار کوی او دارنګ محدثینو دَ سورة تطفیف ۱۵ نه استدلال کړیدے او ابن کثیر لیکلی دی چه دا مسئله په صحیح احادیثو کښ په متواتر طریقو سره ثابت ده چه دَ هغے جواب او انکار ممکن نه دے او په اخر دَ بحث کښ ویلی دی چه په دے باندے اجماع دَ صحابه کرامو او تابعینو او سلف صالحینو او ائمو دَ اسلام ده۔ او دَ دے مسئلے نه معتزله او اباضیه انکار کړے دے او هغوی دلیل نیولے په ۱۰۳ سورة انعام سره دَ هغے یو جواب قرطبی ذکر کړے دے چه دا خاص دے په دنیا پورے په قرینه دَ دے ایت او احادیث متواتره سره. دَ دے وجے نه عائشه رضی الله عنها دَ لیلة المعراج دَ نفی رویت دَ پاره دا ایت پیش کړے دے چه هغه د نیوی دیدان دے۔ او دویم جواب دا دے چه ادراک په معنیٰ دَ احاطے سره دے لکه فلما ادرکه الغرق یعنی سترګے دَ انسانانو الله تعالیٰ باندے احاطه نشی کولے ځکه دیدان دَ الله تعالیٰ دیدان دَ مخلوق سره مشابهت نه لری۔ او په حدیث دَ بخاری او مسلم کښ چه تشبیه دَ شمس او قمر سره ورکړیده دَ هغے وجه شبه ئے ورسره ذکر کړیده چه په یو بل باندے تیل ټال نه کوی دَ وجے دَ ازدحام نه هر مؤمن بنده به ئے مستقل دیدار کوی۔ دَویم دلیل دَ هغوی ( په طریقه دَ جواب سره دَ دے ایت نه ) دا دے چه ابن جریر دَ مجاهد نه نقل کړیدی چه معنیٰ دَ دے ایت دا ده چه "دَ ثواب او دَ نعمتونو دَ رب انتظار به کوی" نو په هغے باندے ثعلبی او ازهری رد کړے دے او قرطبی نقل کړیدی چه دا قول

تَظُنُّ اَنۡ یُّفۡعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ ﴿۲۵﴾ کَلَّاۤ

گمان به کوی دا چه کیږی به دَ هغې سره آفت ملا ماتوونکے - هیچرې دا سې نه دی،

خطا دے دَ څو وجونه اول وجه دا ده چه دَ قانون عربیت نه خلاف دے لکه چه مونږ ذکر کړو چه دَ نظر په صله کښې الیٰ راشی نو دَ انتظار په معنیٰ بانده نه راځي دویمه وجه دا چه جنتیانو ته دومره نعمتونه حاصل دی څومره چه نفس او زړه یې غواړی په قرینه دَ سورة زخرف ۷۱ سره نو دَ هغې سره انتظار دَ هیڅ خیز نیشته بلکه انتظار خو مِن وجه عذاب دے لکه چه عرف کښې مشهوره ده چه انتظار دَ قتل نه زیات سخت دے. دریم دلیل دَ دوی هغه احادیث دی چه په هغې کښې حجابه النور یا الارداء الکبریاء علی وجهه راغلی دے دَ هغې دقیق جواب دا دے او دا جواب دَ حدیث دَ نبی صلی الله علیه وسلم په فصاحت او بلاغت بانده بناء دے هغه دا چه لفظ دَ حجاب او رداء په عارضی اموړو بانده دلالت کوی چه همیشه نه وی نو اشاره ده چه الله تعالیٰ به دغه حجاب او رداء په جنت کښې لرے کړے وی او مؤمنانو له به طاقت ورکړی په خپل دیدار بانده. او په دے مسئله کښې دَ امام دارقطنی رساله ده چه نوم یې رویة الله دے او دَ عقیده دَ اهل سنت والجماعت ټولو کتابونو دا مسئله په تفصیل سره لیکلے ده نور بحث په هغې کښې اوګورئ.

۲۴ تا ۲۵ دا تخویف اخروی دے بَاسِرَةٌ دَ بسر یو معنیٰ په تفسیر دَ سورة مدثر کښې تیره شویده دویمه معنیٰ دا ده چه رنګ به یې بدل وی یعنی تور به وی لکه سورة اٰل عمران ۱۰۶ سورة یونس ۲۷ او سورة عبس ۴۰ کښې. تَظُنُّ په معنیٰ دَ یقین سره دے لیکن هر کله چه په مخو بانده اثر اوشو نو دَ دے نه ورته دا معلومه شوه چه اَنۡ یُّفۡعَلَ بِهَا الخ. او په علاماتو سره چه کوم خیز معلومیږی نو په هغې کښې ظن هم استعمالیږی.

فَاقِرَةٌ په اصل کښې دا دے چه داغ اولګوی په پوزه دَ اوښ بانده په ګرم سیخ سره تر دے پورے چه هډوکی ته ا پاتے په بل مخ

إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ﴿۲۶﴾ وَقِيلَ مَنْ رَاقٍ ﴿۲۷﴾

[ کوم وخت چه اورسی روح مرئی ته او اُوئیلے شی څوک دے دم اچوونکے ]

او رسی او دا ډیر ذلت لره مستلزم دے ۔ دا رنګ فاقرة دَ فقا رالظهر نه ماخوذ دے یعنی دَ ملا هډوکے نو فاقرة هغه مصیبت دے چه دَ ملا هډوکے مات کړی مراد ترینه لوئے عذاب او هلاکت دے په سبب دَ دخول دَ اور دَ جهنم سره دَ همیشوالی دَپاره ۔

۲۶ دا هم تخویف دے په ذکر دَ احوالو دَ ځنکدن سره. کَلَّا ردعیه دے یعنی هیچرے کافر ایمان نه لری په قیامت باندے یا محبت دَ عاجله سره هیچرے نه دے پکار یا کَلَّا په معنیٰ دَ حقًّا سره دے ۔

إِذَا بَلَغَتِ ضمیر نفس ته راجع دے اګر چه ذکر نه دے لیکن دَ قرینے نه معلومیږی ۔

التَّرَاقِيَ جمع دَ ترقوة ده او ترقوے دوه دی دَ نحر (دَ مرئی دَ کوتی) نه چاپیره دوه هډوکی وی، او جمع ذکر کولو کښ مبالغه ده چه دَ مرئی په هر طرف باندے دَ ساه وتلو مصیبت په وی ۔

۲۷ رَاقٍ دَ رقیه نه ماخوذ دے رَقٰی یَرْقِی په معنیٰ دَ دم اچولو دے نو قِیلَ نه مراد دا دے حاضرین په وخت دَ ځنکدن کښ دا وینا کوی چه څوک شته چه دم واچوی (په دے ګمان چه دے بیمار دے) یا څوک شته چه سورة یٰس او لولی او تلقین او کړی (په دے خیال چه دے مرکیږی) یا دَ رقی نه ماخوذ دے رَقِیَ یَرْقٰی بره ختل یعنی ملائک په کور نئے کښ اوائی چه څوک به دَ ده روح راخیژوی دَ بدن نه مستقر دَ ارواحو ته او هر کله چه فاعل دَ دے ډیر دی یو معلوم نه دے دَ دے وجے نه قیل ئے په صیغه دَ مجهول سره ذکر کړو او په مَنْ باندے سکته وینا په اوله توجیه سره دَ وجے دَ خفګان دَ حاضرینو نه ده او وینا په دویمه توجیه باندے دَ وجے دَ ابهام دَ راقی نه ده ۔

وَّظَنَّ اَنَّهُ الْفِرَاقُ ﴿۲۸﴾ وَالْتَفَّتِ السَّاقُ

او گمان به اوکړی چه یقیناً دا وخت دَ جدائۍ دے او یو ځائے به شی یو پنډے

بِالسَّاقِ ﴿۲۹﴾ اِلٰی رَبِّكَ يَوْمَئِذِ الْمَسَاقُ ﴿۳۰﴾

دَ بلے پنډے سره، ستا رب ته په دغه ورځ ورتلل دی۔

فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلّٰى ﴿۳۱﴾ وَلٰكِنْ كَذَّبَ

نو تصدیق ئے نه دے کړے او نه ئے مونځ کړے دے، او لیکن تکذیب ئے کړے دے

سه۲۸ دلته هم ظن په معنیٰ دَ یقین دے او قرینه په هغے روستو اَنَّ دَ تاکید دے او ضمیر دَ اَنَّهٗ دغه وخت ته راجع دے یا ضمیر شان دے۔ اَلْفِرَاقُ جدائۍ دَ روح دَ بدن نه یا جدائۍ دَ دنیا او دَ مال او اهل نه او اولاد نه۔ او مفسر رازی ویلے دی چه دا دلیل دے چه روح یو جوهر قائم بالذات دے روستو دَ جدا کیدلو دَ بدن نه مستقل وجود لری۔

سه۲۹ سه۳۰ دا هم حال دَ سختۍ دَ ځنکدن دے او سَاقُ په معنیٰ حقیقی سره دے نو مراد دا دے چه یو پنډے بلے پنډے له راغونډوی دَ وجے دَ سختے نه یا به دواړه پنډے په کفن کښې دَ یو بل سره یو ځائے کړیشی۔ یا په معنیٰ مجازی سره کنایه ده دَ دوه سختو نه یعنی یوه سختی دَ بلے سختۍ سره یو ځائے شی جدائۍ دَ دنیا او ملاقات دَ احوالو دَ مرګ چه هغه اوله ورځ دَ آخرت ده یا دوه کارونه دی کار دَ انسانانو چه بدن سنبالوی او کار دَ ملائکو چه روح سنبالوی۔ اِلٰی رَبِّكَ دا خطاب دَ ملائکو دے په وخت دَ روح راویستلو کښې یا عام خطاب دے انسانانو ته چه آخری مرجع رب العالمین طرف ته ده۔ اَلْمَسَاقُ مصدر میمی دے په معنیٰ دَ سوق سره۔

سه۳۱ سه۳۲ دا زجر دے هغه انسان ته چه دَ دے سورت په سه۳ کښې ذکر وو په څلور امورو سره اول فَلَا صَدَّقَ یعنی تصدیق دَ رسول صلی الله علیه وسلم ئے په هیڅ طریقه سره نه دے کړے او دَ دے تعمیم دَ پاره مفعول حذف کړے شوے دے او لَا په فعل ماضی

وَتَوَلّٰى ﴿۳۲﴾ ثُمَّ ذَهَبَ اِلٰٓى اَهْلِهٖ يَتَمَطّٰى ﴿۳۳﴾

اومخ ئې اړولے دے . بیا لاړه خپل کور ته لوئي کوونکے

اَوْلٰى لَكَ فَاَوْلٰى ﴿۳۴﴾ ثُمَّ اَوْلٰى لَكَ

تباهي ده تالره نو تباهي ده ، بیا تباهي ده تالره

کښې په معنی د لَمۡ سره راځي د دویم وَلَا صَلّٰى مونځ دَ الله تعالیٰ دَپاره نه کوی یعني توحید نه مني او دا رنګ په لاصدق کښې نفی دَ ایمان ده او په لاصلی کښې نفی دَ عمل صالح ده . دریم وَلٰكِن كَذَّبَ لفظ لٰكِن ئې دَ دے وجې نه راوړو چه نفی دَ تصدیق مستلزم دَ تکذیب نه ده ځکه کله کله نفی دَ تصدیق دَ وجې دَ شک او دَ تردّد نه وی.
څلورم وَتَوَلّٰى دَ دے فرق دا دے، تکذیب دَ قیامت ئې اوکړو او اعراض ئې اوکړو دَ قرآن کریم نه دویم فرق دا دے چه تکذیب ئې په ژبه سره اوکړو او اعراض ئې په مخ او باقی بدن سره اوکړو حاصل دا چه دَ څلورو اصولو دَ ایمان (توحید، رسالت، آخرة، قرآن) نه خالی دے دا رنګ ظاهرًا او باطنًا دواړه کافر دے.
۳۳ ۳۲ په دے کښې دَ ده دیر عناد ذکر دے یعني په دغه څلورو کفریاتو باندے هیڅ خفګان او ندامت نه ښکاره کوی بلکه اولټه تکبر او لوئي کوی . اِلٰٓى اَهْلِهٖ مراد دَ دے نه تابعداران شاګردان مریدان دَ ده دی لکه چه په سورة تطفیف ۳۱ او سورة انشقاق ۱۳ ۱۴ کښې دی. يَتَمَطّٰى په اصل کښې يتمطط دے اوګدیدلو ته وئیلے شی یعني دَ تکبر دَ وجې نه خپل سټ او خپله ملا اوګدوی او خپل قدمونه اوګده اوګده اخلی یا دَ مطا نه ماخوذ دے شاه ته وئیلے شی یعني شاه تاوی دَ وجې دَ تکبر نه او لاسونه وهي په وخت دَ رفتار کښې.
۳۴ ۳۵ هرکله چه څلور ګناهونه ئې ذکر کړل نو دَ هغې په بدله کښې څلور هلاکتونه ذکر کوی قرطبی دَ څلورو فرق دا سے ذکر کړے چه وَيۡل (هلاکت) دے وی تالره په حال دَ ژوند کښې بیا دے هلاکت وی تالره په حال دَ مرګ کښې بیا په ورځ دَ بعث کښې

فَأَوْلٰى ﴿۳۵﴾ أَيَحْسَبُ الْإِنْسَانُ أَنْ يُّتْرَكَ

تو تباهي ده. ایا ګمان کوی انسان دا چه پریخودلے شی

سُدًى ﴿۳۶﴾ أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّنْ مَّنِيٍّ

بے کاره - ایا نه وو دے ټکړه دَ منيئ

يُّمْنٰى ﴿۳۷﴾ ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوّٰى ﴿۳۸﴾

چه اچولے شی په رحم کښ، بیا شوه ټکړه دَ وینے نو جوړ ئے کړو او برابر ئے کړو،

بیا په ورځ دَ دخول دَ نار کښ. (سوال) مخکښ خو پنځم خصلت هم ذکروو يَتَمَطّٰى؛ (جواب) دغه ذکر دَ عادت دَ دهٔ دے مخکښ دَ تکذیب او اعراض کولو نه ځکه دَ هغے عوض ئے ذکر نه کړو. اَوْلٰی په معنیٰ دَ وَیْل (هلاکت) دے. دویمه معنیٰ دا چه اولی په معنیٰ دَ ښه لائق دے او مبتدا محذوف ده یعنی العذاب اولی لك. دریمه معنیٰ اولی په معنیٰ دَ غوره دے خبر ئے محذوف دے اولی لك الهلاك من غیره غوره دے تا لره هلاکت دَ سلامتیا نه.

۳۶ دا هم زجر دے په انکار دَ حساب او دَ بعث بعد الموت سره او متعلق دے دَ ابتدا دَ سورت سره یعنی ایحسب الانسان ان لن نجمع عظامه

سُدًى، مهمل چه نه به مکلف کیږی په احکامو الٰهیو سره په دنیا کښ او نه به سوال وجواب وی په قبر کښ او نه به بعث بعد الموت وی او نه په حساب کتاب وی دا خیال ئے غلط دے ځکه دَ شان دَ الله تعالیٰ نه دا لرے خبره ده چه دَ ظالم و مظلوم او مطیع او عاصی په مینځ کښ به هیڅ فرق نه کوی.

۳۷ ۳۸ ۳۹ دا دلیل دے په اثبات دَ بعث بعد الموت باندے په قیاس کولو سره په اول پیدائش باندے سرهٔ دَ ذکر دَ تحقیر دَ انسان منکر نه. نُطْفَةً سا سکے، لږے او به مِنْ مَّنِيٍّ هغه چه په شا دَ نارینه او په سینه دَ زنانه کښ ده. يُّمْنٰى دا قید ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو چه صرف دَ نطفے دَ منی نه انسان نه جوړیږی تر څو پورے چه شهوت سره په رحم کښ نه وی اچولے شوے او هر کله چه انسان په (باقی په بل مخ)

فَجَعَلَ مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ ﴿۳۹﴾

نو جوړه یې کړه ددغه نه جوړې نارینه او زنانه

أَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَنْ يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ ﴿۴۰﴾

آیا نه دے دغه ذات قدرت لرونکے په دے چه ژوندی به کړی تول مړی .

وخت دَ شهوت کښې بے اختیاره وی دَ دے وجے نه يُمْنَىٰ یې مجهول ذکر کړے دے. ثُمَّ كَانَ په معنیٰ دَ صار سره دے. فَخَلَقَ عام دے یعنی دَ علقے نه روستو دَ هغه غوښے هډوکی او اندامونه وغیره یې جوړ کړل فَسَوَّىٰ شکل او قد وقامت برابروَل. مِنْهُ ضمیر منی ته یا انسان ته راجع دے الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ دا دواړه نوعے دَ انسان کله په جمع پیدا شی او کله جدا جدا او کله دا سے وی چه دواړه او صاف پکښې جمع وی او هغه خنثیٰ دے نو ایت هغه ته هم شامل دے. نو دَ هغه ذکر ته حاجت نیشته لکه چه قرطبی وئیلے دی.

سـ۴۰ دا نتیجه دَ مخکښې دلیل ده ذَٰلِكَ ذات دَ الله تعالیٰ چه موصوف دے په لویو صفاتو سره او په صفت دَ خالقیت سره اوّلًا.

بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَنْ يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ یلکه قدرت په دوباره ژوندی کولو یا ندے مساوی دے دَ اول سره یا زیات اسان دے بنا په هغه دوه توجیهاتو باندے چه په سورة روم سـ۲۷ کښې ذکر دی. په حدیث دَ ابوداؤد او احمد او ابن جریر کښې وارد دی چه نبی صلی الله علیه وسلم به دَ دے په جواب کښې وئیل سبحانك فبلی او سبحانك وبلی او صِرف بلی او یل حدیث دَ ابوداؤد کښې امر دے په وئیلو دَ بلی سره نو دا وئیل ضروری دی که په موقع کښې دننه وی او که بهر وی.

ختم شو تفسیر دَ سورة القیامة بحمد الله تعالیٰ

| سُوْرَةُ الدَّهْرِ مَدَنِيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۳۱ — رُكُوعَاتُهَا ۲ |
|---|---|---|

هَلْ اَتٰى عَلَى الْاِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ

یقیناً راغلے دے په انسان باندے یو وخت دَ زمانے نه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**سورة الدهر** او دے ته سورة الانسان او سورة الابرار او سورة امشاج او سورة هل اتیٰ هم وئیلے کیږی.

**ربط دَ دے سورت** دَ مخکښ سره په ډیر وجوهو سره دے اوله وجه داده دَ هغه سورت په اخرکښ دلیل وو دَ اثبات دَ بعث دَ پاره نو دَ دے سورت په اول کښ بعینه هغه دلیل دے دَ بعث دَ اثبات دَ پاره او دے ته تشابه الاطراف وئیلے کیږی. دویمه وجه داده چه مخکښ سورت کښ ادب دَ قران ذکر کړے وو نو په دے سورت کښ نعمت دَ قران ذکر کوی او شکریه دَ هغے نعمت هم. دریمه وجه داده چه په هغه سورت کښ دَ مؤمنانو دَ پاره بشارت اجمالیه وو او په دے سورت کښ بشارت تفصیلیه ذکر کوی.

**دعویٰ دَ دے سورت** اثبات دَ بعث بعد الموت دے په قیاس کولو سره په اول پیدائش باندے سرهٔ دَ بشارت تفصیلیه چه هغه لس نعمتونه دَ جنت دی. او دَ معرفت الهیه دَ پاره ئے څلور اسماء حسنیٰ ذکر کړے دی، الله، رب، علیم، حکیم.

**خلاصه دَ دے سورت** داده اول ذکر کوی خلق دَ انسان په پنځه حالاتو سره دَ پاره دَ استدلال په بعث بعد الموت باندے سرهٔ دَ تخویف اخروی مختصر نه تر ۴ پورے بیا تفصیلی بشارت دے مؤمنانو لره چه دَ هغوی ئے پنځه صفات ذکر کړیدی تر ۱۰ پورے او لس جزاگانے دَ هغوی ذکر دی تر ۲۲ پورے او دَ سورت په اخر کښ ذکر دَ نعمت دَ قران دے او دَ هغے دَ شکر ئے دَ پاره پنځه خطابات ذکر کړی

باقی په بل مخ

لَمْ یَكُنْ شَیْـًٔا مَّذْكُوْرًا ۝۱ اِنَّا خَلَقْنَا

| چه نه وؤ دے څه څیز | یاد کړے شوے (په خاص نوم)۔ | یقیناً پیدا کړو مونږ |
|---|---|---|

الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ اَمْشَاجٍ ۖ نَّبْتَلِیْهِ

| انسان لره | دَ | نطفې | ګډے وډے نه، | ازموؤ دا ازموؤ هغه |
|---|---|---|---|---|

تر ۳۲ پورے او بیا زجر دے په محبت دَ دنیا سره او ترغیب دے قرآن کریم ته په اختتام دَ سورت کښ۔

تفسیر: ۱-۲ په دے ایاتونو کښ دَ انسان ابتدائی حال ذکر کوی او مراد ترینه استدلال دے په دوباره ژوندی کولو باندے چه الله تعالی په دغه حالاتو باندے قادر دے نو په دوباره ژوندی کولو خو ضرور قدرت لری۔ هَلْ استفهام تقریری دے په معنیٰ دَ قد سره ځکه هر عاقل انسان دَ دے ابتدائی حال اقرار کوی۔ اَلْاِنْسَانَ مراد دَ دے نه جنس انسان دے په قرینه دَ دویم ایت سره اګرچه دا احتمال هم شته چه مراد ترینه ادم علیه السلام شی۔ حِیْنٌ دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه حین اوګد وخت ته وئیلے شی چه خاص مقدار ئے معلوم نه وی او بعض اهل علمو دَ دے تخصیص کړیدے په څلویښت کلونو او اوؤ کلونو او دوه کاله او شپږ میاشتے او دوه میاشتے لیکن اول قول صحیح دے۔ مِنَ الدَّهْرِ دهر ټول وخت دَ دنیا ته وئیلے شی۔ لَمْ یَكُنْ شَیْـًٔا مَّذْكُوْرًا (سوال) چه هیڅ څیز نه وؤ یعنی معدوم وؤ نو معدوم ته دَ زمانے تیریدلو نسبت څنګه کیدے شی؟ (جواب) دلته نفی دَ څیز مطلقًا نه ده بلکه نفی دَ قید مراد ده چه مذکورا دے۔
(سوال) هرکله چه مذکور نه وؤ نو الانسان ئے ولے ځنګه اوئیل؟
(جواب) الانسان ئے په اعتبار دَ مایؤول الیه سره اوئیل۔ (سوال) دَ خو نطفه ده په شا دَ پلار او په رحم دَ مور کښ نو څه رنګ اوئیل شو چه مذکور نه وؤ؟ (جواب) اول دا دے چه مذکور په معنیٰ دَ معین دے په خاص علم سره او نطفه خو اسم جنس دے۔ دویم جواب دا دے چه مذکور په معنیٰ دَ ذکر کړے شوے دے

فَجَعَلْنٰهُ سَمِيْعًاۢ بَصِيْرًا ۝۲ اِنَّا هَدَيْنٰهُ

نو جوړ کړو مونږ دَ هغې ته اوریدونکے لیدونکے ۔ یقیناً خود لے ده مونږ دهٔ ته

په عزت سره . دریم جواب مراد دا دے چه نه ووَ مذکور په نیزدَ خلقو اگرچه دَ الله تعالیٰ په علم کښې معین او مذکور ووَ . نُّطْفَةٍ اَمْشَاجٍ یعنی نطفهٔ دَ سړی او دَ زنانه ګډه وډه شوه او دا نطفه دَ مختلف اخلاطو او طبائعو نه جوړه کړے شویده او دا دلیل دے چه زنانه دَپاره هم نطفه شته او صحیح احادیث هم پدے باندے دلیل دے . (سوال) نطفه مفرد دے او امشاج جمع ده نو دا صفت څنګه صحیح کیږی ؟
جواب اول دا دے چه نطفه په معنیٰ کښې جمع ده نو صفت ئې په جمع سره جائز دے . دویم جواب زمخشری وئیلے دے چه امشاج جمع نه ده مفرد دے لکه بُرْمَةٌ اَعْشَارٌ او ابوحیان په دے قول باندے رد کړیدے چه دا دَ قول دَ سیبویه نه خلاف دے . نَّبْتَلِيْهِ ضمیر انسان ته راجع دے او مراد دَ ابتلاء نه مکلف کول دی په اوامرو او نواهی شرعیو سره یعنی پیدائش دَ انسان دَپاره دَ ابتلاء دے مهمل نه دے یا ضمیر راجع دے نطفه ته په اعتبار دَ ماء سره یعنی اړوؤ راړوؤ دهٔ لره حالاتِ مختلفه ته په رحم دَ مور کښې (علقه ، مضغه ، عظاما وغیره)
فَجَعَلْنٰهُ سَمِيْعًاۢ بَصِيْرًا بنا په دویم احتمال سره (چه ضمیر راجع شی نطفه ته) فآ دَ تعقیب دَپاره صحیح ده یعنی روستو دَ دغه انقلاباتو نه سمع او بصر ورکړے شول او بنا په اول احتمال باندے علتِ غایت (چه ابتلاء ده) مقدم ذکر کړے دے اگرچه په اصل کښې روستو دے لیکن مقصد ابتلاء ده او اهم ده . یا مراد دَ سمیع بصیر نه پوره عقل ورکول دی دَپاره دَ دے چه استدلال او کړی دَ مسموعاتو او مبصراتو نه او ابتلاء خو په نفس بلوغ سره ده او اعطاء دَ عقل کامل ورپسے متصل ده دَ دے وجے نه فآ ئې راوړله او سمیع ئې مقدم کړو په بصیر باندے څکه چه سمع او آیاتِ مسموعه ډیره فائده ورکوی په نسبت دَ بصر او دَ مشاهداتو سره څکه چه مشاهدے سره استدلال کول بیا هم عقل ته محتاج وی .

السَّبِيلَ اِمَّا شَاكِرًا وَّاِمَّا كَفُوْرًا ﴿۳﴾

لار یا به وی شکر کوؤنکے او یا به وی ناشکری کوؤنکے۔

اِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَلٰسِلَا۟ وَاَغْلٰلًا وَّ

یقیناً تیار کړیدی مونږ کافرانو لره زنځیرونه او طوقونه او

سَعِيْرًا ﴿۴﴾ اِنَّ الْاَبْرَارَ يَشْرَبُوْنَ مِنْ كَاْسٍ

اُور بل کړے شوے۔ یقیناً نیکان خلق به څښی د پیالو ډکو نه

كَانَ مِزَاجُهَا كَافُوْرًا ﴿۵﴾ عَيْنًا يَّشْرَبُ

چه ګډون به د هغے کافور وی، یوه چینه ده څښی به

سے ہر کله چه صرف اندامونه او قوتِ عقلیه د هدایت د پاره کافی نه دی بلکه هدایت خو په وحی پاندے موقوف دے د دے وجے نه پدے ایت کښ اوفرمائیل اِنَّا هَدَیْنٰهُ السَّبِیْلَ مراد د دے نه هدایت دے په واسطه د انبیاء علیهم السلام اوکتابونو منزلو سره۔ السَّبِیْلَ صرف لار د خیر او د حق مراد ده یا لار د خیر او د شر دواړه لکه په سورة بلد کښ دی. اِمَّا شَاکِرًا اه فعل پټ دے اما ان یکون شاکرا اه یا حال دے د ضمیر د هدینٰه یا د السبیل نه مراد شاکر مؤمن دے اوکفور مشرک دے شاکرین لږ دی اوکفر کوؤنکی ډیر دی د دے وجے نه شاکر ئے اسم فاعل او کفور ئے په مبالغے سره ذکر کړو۔

سے دا تخویف اخروی دے د پاره د کفور. سَلٰسِلَا په دے باندے تنوین راوستلو باندے قرطبی تفصیلی بحث کړے دے او دا ترقی ده د ادنیٰ نه اعلیٰ ته او د لاندے نه پاندے ته ځکه سلاسل عذاب په خپو کښ دے او اغلال په سټ کښ وی اولاس ورسره تړلے شوے وی او د سعیر اثر په ټول بدن باندے دے او دا سے په سورة غافر کښ هم تیر شویدی۔

۵ سے دا بشارت دے شکر کوؤنکو لره نو د هغوی پنځه اوصاف او لس بشارات ئے ذکر کړیدی۔ الاَبْرَارَ جمع د بَرٌّ ده رپاتے په بل مخ)

يُّشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللهِ يُفَجِّرُوْنَهَا تَفْجِيْرًا ۝٦

څښي لره بندګان دَ الله تعالیٰ چلوي به هغې لره په چلولو سره.

يُوْفُوْنَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُوْنَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهٗ

پوره کولے دوي منتونه او ويره يې کوله دَ هغه ورځ نه چه دي سختئ دَ هغې

مُسْتَطِيْرًا ۝٧ وَيُطْعِمُوْنَ الطَّعَامَ عَلٰى

خورے ورے. او خوراک ورکوؤ دوي خوراک په

نيکي او احسان کوؤنکے دَ مخلوق سره لکه چه ادا کوؤنکي دَ حق دَالله تعالیٰ لره هم ابرار دي. او ابرار هغه کسان وي چه هيڅ چا ته اذی نه رسوي. مِنْ كَاْسٍ هغه لوښي ته وئيلے شي چه مشروب پکښې موجود وي خالی ته کاس نه وئيلے کيږي كَانَ مِزَاجُهَا دَ عادت دَ دنيا والو پشان چه مشروباتو سره يې څيز ګډيږي دَ پاره دَ زياتي فائدے او مزے. كَافُوْرًا دا په برودت (يخ والي) او خوشبويۍ کښې مشهور دي ليکن دا کافور دَ دنيا نه دي ځکه چه په هغې کښې بعض ضررونه هم شته دے بلکه دا تشبيه ده دَ کافور سره په صورت او شکل کښې او حقيقت يې روستو ايت کښې ذکر کړے دے. عَيْنًا دا بدل دے دَ كَافُوْرًا نه بِهَا بَا په معنیٰ دَ مِنْ سره يا بَا سببيه ده معنیٰ دا ده بسبب مَزْجِهَا.

عِبَادُ اللهِ اضافت دَ عبد او عباد چه يو نوم دَ الله تعالیٰ ته اوکړے شي په قرآن کښې نو مراد تري نه هغه خلق دي چه بندګي يې الله تعالیٰ لره خاص کړے وي او دَ هر قسم شرک نه ځان بچ ساتي او دغه مؤمنان دي او کله چه اضافت ضمير ته وي نو کله مؤحدين مراد وي لکه اِنَّ عِبَادِيْ لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ او کله عام مراد وي لکه وَلَا يَرْضٰى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ. يُفَجِّرُوْنَهَا تَفْجِيْرًا يعنی دَ هغې جاري کول او چلول په دَ دوي په خوښه باندے وي.

ـــــ په دے کښې دَ ابرارو دوه صفتونه ذکر کوي يُوْفُوْنَ دَ دے نه مخکښې کانوا پټ دے فراء او جرجاني وئيلي دي يا دا استيناف دے يعنی جواب دَ سوال پټ دے که څوک تپوس اوکړي چه دَ څه

# حُبِّهٖ مِسْكِيْنًا وَّيَتِيْمًا وَّاَسِيْرًا ۝۸

مینه دَهغه مسکین ته او یتیم ته او قیدی ته .

وجے ته دوی له دا سے نعمتونه ورکیدے شی نو دائے وجه ذکرشوه.
النَّذْرِ نذر شرعی دے ته وئیلے شی چه مکلف شخص په ځان باندے دَطاعا نو دَ الله تعالیٰ دَپاره دا سے څیز لازم کړی که دهٔ نه وے لازم
کړے نو په دهٔ باندے نه واجبیدلو او نذر غیر شرعی هغه دے چه
دَ غیرالله دَپاره وی یا نذر دَگناه وی. او په دے ایت کښ دَ نذر نه
عامه معنیٰ مراد ده یعنی هرهغه څیزچه دَ هغے وفا په بنده باندے
واجب وی عقود عهود. مونځ، زکوٰة، صوم، حج، عمره وغیره.
وَيَخَافُوْنَ يَوْمًا په اول وصف کښ امتثال دَ اوامرو ته اشاره وه نو
په دے وصف کښ اجتناب دَ منهیاتو مراد دے یعنی دَ قیامتِ ویرے
دَ وجے ځان دَگناهونو نه بچ ساتی ذکر دَ سبب مراد تری نه مسبب دے.
شَرُّهٗ مُسْتَطِيْرًا مراد دَ شر نه هغه سختی ده چه په ورځ دَ قیامت کښ
واقع کیږی اسمانونه چودل ستوری خرکیدل زمکه باندے زلزله
راتلل غرونه فنا کیدل وغیره. مُسْتَطِيْرًا اوګډ اوخور او عام دے
ټول عالم ته وئیلے شی. كَانَ فعل ماضی په معنیٰ دَ مستقبل سره دے.
ﮨ دا بل صفت دَ ابرار دے مخکښ ذکر دَ حقوق الله وو او دا ذکر
دَحقوق العباد دے. الطعام که ډیر وی اوکه لږ وی دَ طاقت موافق.
عَلٰى حُبِّهٖ په دے ضمیر کښ درے اقوال دی اول دا چه راجع دے دَالله تعالیٰ
ته یعنی ریاء اوسمعت وغیره دَپاره نه دی دویم قول دا چه راجع دے
اطعام ته دا قول دَ فضیل بن عیاض دے چه صدقات ورکولو سره
ئے محبت دے. دریم دا چه راجع دے طعام ته او دَ محبتِ طعام
دوه مطلبه دی یو دا چه طعام محبوب وی او کرهٔ او قیمتی وی دویم
داچه دَ مرګ ته ئے ورنژدے ورکړی ځکه چه په حال دَ ځنکدن کښ
دَ انسان دَ خپل مال نه محبت قطع شی. مِسْكِيْنًا دا فقیر ته هم شامل دے
ځکه دا دواړه لفظونه چه دَ یو بل نه جدا ذکر شی نو دَ دواړو معنیٰ
یوه وی او چه یو ځائے ذکر شی نو بیا په مینځ کښ ریاتے په یل مخ)

إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللَّهِ لَا نُرِيدُ مِنكُمْ

(وئيل ئي) يقيناً مونږ خوراک درکوو تاسو ته د الله تعالىٰ په مخ ته غواړو ستاسو نه

جَزَآءً وَلَا شُكُورًا ۝۹ إِنَّا نَخَافُ

بدله او نه شكريه كول - يقيناً ويره كوو

فرق كيدے شي - اَسِيْرًا قيدى اگر چه كافروى او و يتزه ، مريئي ، بنځه دے ټولو ته شامل دے دَ دے درے وارو تخصيص او ترتيب پدے وجے سره دے چه دا ټول عاجزدى دَ اكتساب كولو نه ، مسكين عاجز دے پخپله دَ كسب نه او يتيم خو پخپله هم عاجز دے او هغه دَ پاره دا سے هم څوک نيشته چه كټه ورله اوكړى او دَ اسير خو قدرت نيشته په هيڅ طريقے سره دَ اكتساب هر قسم دروازے ورته بندى دى نو دا سے محتاجانو ته طعام وركول دَ ايمان والو لوئے صفت دے - او دا ايت دليل دے چه مشرک هم مصرف دَ صدقے نفلى دے هاں فرضى صدقے په دۀ باندے نشى كيدے -

سو دا بل صفت دے په تقدير دَ يقولون سره او دا په لسان قال سره يا په لسان حال سره دے - لَا نُرِيْدُ په دے كښ مقصد اظهار دَ اخلاص او وسعت راوستل دى په طبيعت دَ محتاج باندے يعنى په سبب دَ دے وينا سره هغه محتاج شخص به طعام بنه په ازادئ سره قبلوى -

شُكُوْرًا په دے كښ ثنا او دُعا هم داخل ده چه صاحب طعام ئے دَ محتاج نه غواړى ځكه په دے سره ثواب كښ نقصان راځى - او دَ دے ايت په تفسير كښ قرطبى يو روايت دَ على او فاطمه رضى الله عنهما په باره كښ نقل كړيدے او اول او اخر كښ په هغے باندے سخت رد كړے دے چه دا موضوعى دے -

مِنْ رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوْسًا قَمْطَرِيْرًا ⑩

دَ رب خپل نه دَ ورځې سختې ډيرے سختې نه.

فَوَقٰهُمُ اللّٰهُ شَرَّ ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَلَقّٰهُمْ

نو بچ او ساتلی دوی لره الله تعالیٰ دَ سختئ دَ دغه ورځ نه او ورئے کړه دوی ته

نَضْرَةً وَّسُرُوْرًا ⑪ وَجَزٰىهُمْ بِمَا صَبَرُوْا

تازګی او خوشحالی. او بدله ئے ورکړه دوی ته په سبب دَ صبر دَ دوی

جَنَّةً وَّحَرِيْرًا ⑫ مُّتَّكِـِٕيْنَ فِيْهَا عَلَى الْاَرَآئِكِ

جنت او ريښم. تکيه به وهی په هغے کښ په پالنګونو باندے

سلے دا دَ ابرار بل صفت دے او دا تاکيد دَ لا نرید منکم اه دے.

اِنَّا نَخَافُ مِنْ رَّبِّنَا مخکښ خوف صرف دَ ورځ دَ قيامت نه وو او دا خوف دَ الله تعالیٰ نه دے دَپاره دَ دے چه دَ هيبتونو دَ قيامت نه ئے بچ او ساتی په رحم وکرم سره. يَوْمًا عَبُوْسًا قَمْطَرِيْرًا دا صفتونه دَ يومًا دی په اعتبار دَ حال دَ کافر سره يا عبوس متعدی دے، يا لذات صفت دَ يوم دے.

عَبُوْس شونډے چورړے کوُنکے مخونو لره خرکوُنکے، تنګه، يعنی سخته.

قَمْطَرِيْرًا اوګده، سخته، تند لے او روژو لره چورړے کوی.

سلا دَ دے ايت نه تفصيل دَ بشارت شوروشو. فَوَقٰهُمْ هرکله چه تير شوی اعمال سببونه وو دَپاره دَ ما بعد نو فاء ئے پکښ راوړله.

او وَقٰهُمْ ئے په لَقّٰهُمْ باندے مقدم کړيدے دَ دے وجے نه چه دفع دَ ضرر مقدم وی په منفعت حاصلولو باندے. لَقّٰهُمْ نَضْرَةً اه تازګی رنړا په مخونو کښ دا نعمت ظاهری دے وَسُرُوْرًا خوشحالی په زړه کښ دا نعمت باطنيه دے. خوشحالی دَ زړه سبب دے دَ تازګے دَ مخ ليکن دلته ئے دَ مخ تازګی مقدم کړه ځکه چه هغه زر او هرچا ته معلوميږی او دا په بدله دَ خوف او دَ محنت دَ دوی په زړونو دَ دُنيا کښ ده.

سلا بِمَا صَبَرُوْا يعنی صبر ئے کړے دے په مخکښ ذکر کړے شوے صفاتو باندے او دے صبر ته ثبات علی الدين وئيلے کيږی.

لَا يَرَوْنَ فِيهَا شَمْسًا وَّلَا زَمْهَرِيرًا ﴿۱۳﴾

نه به وینی په هغې کښې ګرمي او نه یخني .

وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلٰلُهَا وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا

او راکاږه به وي په دوی باندې سورې د هغې او راکوزشوې به وي غوږچکو ته د هغې

تَذْلِيلًا ﴿۱۴﴾ وَيُطَافُ عَلَيْهِمْ بِاٰنِيَةٍ مِّنْ

په راکوځیدلو . او ګرځولې به شي په دوی باندې لوښي د

جَنَّةً دا ذکر د سکن د دوی دے۔ وَحَرِيرًا دا ذکر د لباس دے او دواړه یې نکره ذکر کړل اشاره ده چه د دے حقیقت د مخلوق نه مجهول او نا اشنا دے لا تعلم نفس ما اخفي لهم من قرة اعين (الم سجده)۔

سلا مُتَّكِئِينَ حال دے د جزا هم د ضمیر نه۔ اَلْاَرَآئِكِ جمع د اريكة ده پالنګ د ناوے ته وئیلے کیږي مطلق تخت یاکټ ته نشي وئیلے .

شَمْسًا وَّلَا زَمْهَرِيرًا مراد د دے نه ګرمي او ډیره یخني ده اودادواړه حالات پکښ نیشته یا زمهریر سپوږمۍ ته وئیلے شي نو مراد د دے نه ورځ او شپه راتلل دي یعني یو رڼا به همیشه وي نه به بدلیږي پشان د شپې او ورځې د دُنیا۔

سلا وَدَانِيَةً معطوف دے په متکئین یا په لا یرون باندے۔

ظِلٰلُهَا سورے په جنت کښ د نمر د وجے نه نه دے بلکه دا سے سورے چه په دُنیا کښ د صبا ختلو نه روستو د نمر خاته پورے وي او هَا ضمیر اونو ته راجع دے

وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا اه یعني په حالت د ولاړے او ناستے او ملاستے کښ به د دهٔ په اشاره پسے راروان وي او ازغي او لرے والے به مانع نه وي او دا سے په سورة رحمٰن سکه او سورة الحاقه سټ کښ هم تیر شویدي قُطُوفٌ جمع د قِطف ده هغه میوه چه په اونه کښ پخه شي او بیا راتولولے شي د پاره د خوراک . او غوچکو نو د میوو ته هم وئیلے شي۔

فِضَّةٍ وَّأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيْرَا ﴿۱۵﴾

سپينو زرو او کلاسونه چه وی په شيشه

قَوَارِيْرَا مِنْ فِضَّةٍ قَدَّرُوْهَا تَقْدِيْرًا ﴿۱۶﴾

شيشه جوړه شوې د سپينو زرو نه اندازه کړې به ئې وی هغه په خاص انداز۔

۱۵ - ۱۶ دا د خوراک څښاک حالات ذکر کوی وَيُطَافُ مجهول صيغې سره اشاره ده چه خادمان ډير قسمونه وی غلمان او ولدان او حورے وغيره بِاٰنِيَةٍ داجمع د اناء ده او د دے جمع بيا او انی راځی. مِنْ فِضَّةٍ دا يو قسم د جنت دے چه په هغې کښ به هر څيز د سپينو زرو نه جوړ وی او بل قسم جنت هغه دے چه د هغې نعمتونه د سرو زرو نه جوړ دی لکه زخرف سے کښ دی. يا دواړه قسمونه به په يو جنت کښ وی ليکن وذهب دلته محذوف دے. عرب په خپله محاوره کښ يو څيز ذکر کړی او د هغې بالمقابل لره حذف کړی لکه سرابيل تقيکم الحر، نو البرد ئې حذف دے. وَأَكْوَابٍ دا سے لوښی د څښلو چه کړے او سنت ئې نه وی او هغه پشان د کلاسونو دی. كَانَتْ قَوَارِيْرَا يعنی صفائی او شفافت کښ پشان د شيشے دی قارورة هغه لوښی ته وئيلے شی چه د شيشے نه جوړ وی او په هغې کښ او په او خوراک قرار نيسی او مراد د دے نه دلته شيشے دی. قَوَارِيْرَا مِنْ فِضَّةٍ په دې کښ جواب د وهم دے چه دا شيشے دی نو بيا خو به زر ماتيږی او بل دا چه د شيشے په اصل کښ تور والے دے؟ حاصل جواب دا دے چه د دے اصل د سپينو زرو نه دے نو تور والے پکښ نيشته اګر چه صفائی او شفافت ئې د شيشے پشان دے يعنی دوه صفتونه متضاد پکښ په قدرت د الله تعالی سره جمع شويدی. قَدَّرُوْهَا اه ضمير فاعل راجع دے خادمانو ته يا جنتيانو ته او مراد د تقدير نه دا دے چه نه به د دوی نه زياتی کيږی او نه به کميږی او نه هغه لوښی ډير درانهٔ دی او نه ډير سپک دی په مقدار د اراد ے د دوی او د موړوالی د دوی به وی۔

وَيُسْقَوْنَ فِيْهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا

او څښولے به شی په دوی باندے په هغے کښ د کے پیالے چه وی به گډاون د هغے

زَنْجَبِيْلًا ﴿۱۷﴾ عَيْنًا فِيْهَا تُسَمّٰى

زنجبیل (ادرک) - چینه ده په هغے کښ نوم ورته وئیلے شی

سَلْسَبِيْلًا ﴿۱۸﴾ وَيَطُوْفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ

سلسبیل - او ګرځی به راګرځی دَ دوی خدمت لره هلکان

مُّخَلَّدُوْنَ اِذَا رَاَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا

همیشه به وی کله چه ته وینے هغوی گمان به اوکړے په هغوی باندے ملغلرے

مَّنْثُوْرًا ﴿۱۹﴾ وَاِذَا رَاَيْتَ ثَمَّ رَاَيْتَ نَعِيْمًا

خورے ورے - او کله چه ته او وینے هغه ځائے نو او به وینے نعمتونه

کے ۱۸ مخکښ دَ طعام لوښی ذکر شول اوس دَ څښلو نعمت ذکر کوی. زَنْجَبِيْلًا په اصل کښ ادرك (رسونړ) ته وئیلے کیږی او دا په طبیعت کښ گرم دی لکه چه کافور طبعًا یخ دی یعنی لکه چه په دنیا کښ په مشروباتو کښ کله کافور او زنجبیل استعمالیږی نو په جنت کښ به هم داسے وی اگرچه کافور او زنجبیل چینے دی په جنت کښ او بے شماره فائدے او ډیر لذتونه پکښ دی. عَيْنًا بدل دے دَ كَأْسًا یا دَ زنجبیلًا. سَلْسَبِيْلًا هغه مشروب چه په مرئی کښ په اسانه سره تیریږی دَ وجے دَ خائسته خوند دَ هغے نه او دَ ډیر لذت نه او دَ پوره صفائی دَ هغے نه او دَ ابوالعالیه نه روایت دے چه سلسبیل ورته دَ دے وجے نه وئیلے شی چه دَ جنت په لارو او په کورونو کښ به هغه په اسانه سره بهیږی.

سے۱۹ دَ مطعومات او مشروباتو دَ نعمتونو دَ ذکر نه روستو دَ خدمتگارانو ذکر کوی. يَطُوْفُ طواف نه مراد هر وخت دَ خدمت دَ پاره تلل راتلل او حاضر اوسیدل دی. وِلْدَانٌ یعنی خادمان په عمر دَ عدم بلوغ کښ

وَّمُلْكًا كَبِيْرًا ﴿٢٠﴾ عٰلِيَهُمْ ثِيَابُ سُنْدُسٍ

او بادشاهي لویه . بره طرف ددوی به جامې د نرو ریښمو

خُضْرٌ وَّاِسْتَبْرَقٌ ز وَّحُلُّوْٓا اَسَاوِرَ مِنْ

شنو وی او غټ ریښم (ربه لاندې وی) او اچولې کیږي به دوی ته بنګړي د

فِضَّةٍ ج وَسَقٰىهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُوْرًا ﴿٢١﴾

سپینو زرو، او څښوی به دوی ته رب د دوی د څښلو څیز پاکوونکي .

تعبیر یې په ولدان سره د دې وجې نه دې چه جنتیانو ته به داسې محبوب وي لکه اولاد د هغوی صرف خدمت کول به مقصد نه وي.
مُخَلَّدُوْنَ تبدیلي او مرضونه یوړا والې فنا به ور باندې نه رائحي .
لُؤْلُؤًا مَّنْثُوْرًا تشبیه ده په حسن او صفائي او ډیر والي او خواره واره کیدلو د خدمت د پاره په جنت کښې . د دوی صفت یې په منثور سره اوکړو ځکه چه دوی د خدمت د پاره ښکاره دي او د حورو په صفت کښې لُؤْلُؤٌ او بیض مکنون وئیلي دي ځکه چه هغوی د خدمت د پاره نه استعمالیږي .
نمبر ۲۰ د خاص تفصیلي نعمتونو نه روستو اجمالي او عام نعمتونو ته اشاره کوي چه د هغې شمار مخلوق ته معلوم نه دې د دې وجې نه نعيمًا یې نکره ذکر کړیدې. ثَمَّ په معنیٰ د مکان سره مفعول دې د رأیت د پاره. نَعِيْمًا یعنې هر طرف ته قسما قسم نعمتونه دي او ونا اشنا دي چه د بیان کولو نه بهر دي . وَمُلْكًا كَبِيْرًا د دې حد هم صرف الله تعالیٰ ته معلوم دې او بعض مفسرینو د هغې ذکر کړې دې سلامونه د ملائکو په جنتیانو باندې ، تاجونه په سرونو د هغوی، بې شماره بنګلې او د الله تعالیٰ دیدار کول او بې شماره خدمتګاران او باغونه وغیره . عٰلِيَهُمْ ضمیر راجع دې جنتیانو ته که خادمان وي او که مخدومان وي اګرچه په درجاتو د لباس کښې د دوی تفاوت دې .
سُنْدُسٍ نري ریښمو ته وئیلې کیږي او دا د هغه جامو د پاره استعمالیږي چه د پاسه طرف ته وي . وَاِسْتَبْرَقٌ غټ ریښمو ته (رپاکې په بل مخ)

إِنَّ هٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَآءً وَّكَانَ

يقيناً دا ده تاسو لره بدله او دے

سَعْيُكُمْ مَّشْكُوْرًا ﴿٢٢﴾ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا

عمل (كوښښ) ستاسو قبول كړے شوے - يقيناً مونږ يو نازل كړيدے مونږ

وټيلے شى چه په هغے كښ چمك وى ځكه چه دَ برق نه ماخوذ دے او دا دَ جامے په اَستر كښ استعماليږى لكه چه سورة رحمان ۵۴ كښ تير شويدى. او دا عطف دے په ثياب باندے په تقدير دَ ثياب سره او دواړه قسمونه جامے په دَ دوى دَ بدنونو دَ پاسه وى يا بطائنها مقدر دے په قرينه دَ سورة رحمان سره او دا بيا عطف دے په عاليهم باندے.
مِنْ فِضَّةٍ او سورة فاطر ۳۳ او سورة حج ۲۳ كښ ئے ذهب ذكر كړيدى په اعتبار دَ تقسيم دَ جنتيانو سره دوه قسمونو ته ذهب دَ پاره دَ مقربون او فضة دَ پاره دَ ابرارو، يا دا چه دَ دوى لاسونو ته به دواړه قسمونه اساور اغوستلے شويوى ذهب او فضه دواړه يا ذهب به دَ پاره دَ زنانو وى او فضه به دَ پاره دَ نارينو وى يا به ذهب دَ پاره دَ جنتيانو وى او فضه به دَ ولدانو دَ پاره وى. طَهُوْرًا نجس به نه وى پشان دَ شرابو دَ دنيا، او دَ خيرو نه به هم پاك وى او دَ دے نه به بوئے بول او واړه بول نه جوړيږى. شَرَابًا طَهُوْرًا معلوميږى چه دا دَ كافور او دَ زنجبيل نه علاوه نا اشنا مشروبات دى چه دَ هغے نه به ئے روستو وركوى دَ دے وجے نه ئے نكره ذكر كړيدى.
۲۲ دلته يقال پټ دے يعنى ملائك يا الله تعالى به ورته وائى - إِنَّ هٰذَا ما قبل مذكور ټولو نعمتونو ته راجع دے. كَانَ لفظ دَ كان ئے په دے سورت كښ دَ نعمتونو سره بار بار ذكر كړو اشاره ده دَ دے ثبات او بقا ته. مَشْكُوْرًا شكر دَ اعمالو دَ طرف دَ الله تعالى نه قبوليت دَ هغے دے او په هغے باندے ستا ئنه كول دى. وَكَانَ واؤ دَ پاره دَ علت دَ ما قبل دے (كان لكم جزآء) يا دا اشاره ده زيادت دَ جزاء ته وخت په وخت.

عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ تَنْزِيْلًا ﴿۲۳﴾ فَاصْبِرْ لِحُكْمِ

په تا باندے قرآن لږ لږ نازلول. نو صبر کوه فیصله

رَبِّكَ وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ اٰثِمًا اَوْ كَفُوْرًا ﴿۲۴﴾

دَ رب ستا ته او مه منه خبره دَ دوی نه دَ ګنهګار یا کفر کوونکی.

۲۳ په دے ایت کښې ذکر دَ صداقت دَ قرآن دے ربط ئې دَ مخکښې ایاتونو سره دا دے چه هر کله احوال دَ قیامت ذکر شول نو اوس ذکر کوی چه دا تفصیلات حاصلیږی دَ قرآن نه چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه حق نازل کړے شوے کتاب دے او په دے کښې تسلی هم ده نبی صلی الله علیه وسلم ته چه دَ دے حق کتاب په رسولو کښې په تکلیفونو راځی دَ هغے برداشت به کوے. تَنْزِيْلًا په دے کښې اشاره ده چه دَ قیامت حالات په قرآن کښې لږ لږ په جدا جدا سورتونو کښې ذکر کیږی دَ پاره دَ تذکیر.

۲۴ په دے ایت کښې پنځه اوامر او یو نهی ذکر کوی دَ پاره دَ دعوت کوونکی په مقابله دشمنانو دَ دین کښې. اول صبر (په دین حق باندے کلک اوسیدل او انتظار کول دَ حکم دَ الله تعالیٰ چه امداد او فتح ده). دویم دَ مخالفینو دَ اطاعت نه ځان ساتل. اٰثِمًا منافق یا هغه چه کارونه دَ ګناه کوی. اَوْ كَفُوْرًا نیګاره کافر او مشرک او هغه چه زړه کښې کفر ساتی داسے کسان دَ قرآن نه منع کول کوی شرک او مداهنت ته بلنه کوی نو دَ دوی خبره به نه منئ.

سوال: وَاوْ ئې ولے ذکر نه کړو یعنی اثما وکفورا ځکه چه دَ دواړو اطاعت خو حرام دے؟

جواب: که چرے وَاوْ ئې راوړے وے نو دا وهم پیدا کیدلو چه دَ دواړو په یوځائے او په یوځل اطاعت منع دے او جدا جدا اطاعت جائز دے او دا صحیح نه ده او هر کله چه اَوْ ئې ذکر کړو نو معنیٰ دا ده چه دَ هر یو اطاعت په نهی سره مستقل دے یعنی دَ هر یو به اطاعت نه کوئے نه متفردًا او نه مستقلًا. دویم جواب دَ فراء نه نقل دے چه اَوْ په معنیٰ دَ لَا سره دے.

وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً وَّأَصِيلًا ﴿۲۵﴾

او یادوه نوم دَ رب ستا صبا او بیگاه ۔

وَمِنَ الَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهٗ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا

او دَ شپې نه سجده کوه هغه ته او پاکي وایه دَ هغه دَ شپې

طَوِيلًا ﴿۲۶﴾ إِنَّ هٰٓؤُلَآءِ يُحِبُّونَ الْعَاجِلَةَ

اوږدې پورې ۔ یقینًا دا هغه کسان دي چه مینه کوي دَ دنیا سره

۲۵ ۔ ۲۶ په دې کښې درې اوامر ذکر دي دَ پاره دَ تثبت په حق باندې. هرکله چه دَ اثم او کفور نه مخالفت اوکړې شي نو دَ هغوي دَ طرف نه دَ دشمنۍ ضرور اظهار کیږي نو دَ هغوي دَ شر نه دَ بچ کیدلو دَ پاره دا علاج دې ذکر، تسبیح، سجده. وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ په دې کښې اوقاتو دَ مونځونو ته اشاره ده. بُكْرَةً دَ صبا مونځ ۔ أَصِيلًا دَ ظهر او عصر مونځ وَمِنَ الَّيْلِ دَ ماښام ما سخوتن مونځ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيلًا دَ تهجد مونځ ۔ او مونځ ټول ذکر دَ الله تعالی او تسبیح باندې مشتمل دې. یا مراد دَ ذکر نه عام دې په مونځ کښې د ننه وي او که بهر وي او په هر وخت کښې یا الله او یا رحمٰن او نور نومونه دَ الله تعالی یادول او په مصیبت کښې الله تعالی ته رامدد شه وئیل او دَ الله تعالی نه هر وخت دعا غوښتل دا ټول په واذکر اسم ربك کښې داخل دي ۔ او بُكْرَةً وَّأَصِيلًا ذکر دَ دوه طرفونو دَ ورځې دې او مراد ترینه ټول اوقات دَ ورځې دي ۔ وَمِنَ الَّيْلِ حرف دَ مِن کښې اشاره ده چه ټوله شپه مونځ او ذکر نیشته بلکه په څه حصّه دَ شپې کښې خوب کول هم شته دې. وَسَبِّحْهُ مراد دَ دې نه په سجده کښې تسبیح وئیل دي یا عام دې. تسبیح دا چه الله تعالی دَ هر نقصان او عیب نه پاک دې. دَ هغه سلبي صفتونه (چه قرآن او سنت کښې ذکر دي) په عقیده کښې ساتل او په ژبه یادولو سره دَ الله تعالی سره دَ محبت پیدا کیدلو لویه ذریعه ده دلیل دَ یاداشت دَ آخرت دې ۔

وَيَذَرُوْنَ وَرَآءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيْلًا ﴿۲۷﴾

او پریږدي روستو دَ ځان نه ورځ درنه ۔

نَحْنُ خَلَقْنٰهُمْ وَشَدَدْنَآ اَسْرَهُمْ ۚ

مونږ پیدا کړیدي دوي او کلک کړیدي مونږ بندونه دَ دوي

وَاِذَا شِئْنَا بَدَّلْنَآ اَمْثَالَهُمْ تَبْدِيْلًا ﴿۲۸﴾

او هر کله چه اوغواړو مونږ نو بدل به راولو دَ دوي پشان بدل راوړل ۔

اِنَّ هٰذِهٖ تَذْكِرَةٌ ۚ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ

یقینًا دا نصیحت دے ۔ نو څوک چه غواړي او دِ ے نیسي

ف۲۷ هر کله چه ذکر او تسبیح دَ الله تعالیٰ دلیل دَ محبت دَ اخرت او جنت دے هغه مخکښ ذکر شو نو اوس زجر ورکوي محبت کوونکي دَ دنیا سره ته اودَ هغې دَ وجې دَ الله تعالیٰ دَ ذکر او دَ اخرت نه غفلت کوونکي ته ۔ وَرَآءَهُمْ دا لفظ دَ اضدادو نه دے یعني په معنیٰ دَ وړاندے او روستو دواړو راځي او دلته دواړه معاني صحیح دي۔ ثَقِيْلًا دَ هغې ذکر په سورة اعراف ف۱۸۷ کښ دے او ثقل په معنیٰ دَ ډیرے سختیٔ سره دے۔

ف۲۸ دا دلیل دے په اثبات دَ قیامت پشان دَ ابتدا دَ سورت او زجر هم دے دنیا پرستو خلقو ته۔

اَسْرَهُمْ دا دَ اِسار نه ماخوذ دے هغه مزي ته وئیلے شي چه په هغې سره دَ اوبښ پالان تړلے شي۔ اسیر (قیدي) هم دَ دے نه اخستلے شویدي او اَسْرَ نه مراد اندامونه او پیوندونه دَ یو بل سره یو ځائے کول او په پلو سره تړل ۔ اَمْثَالَهُمْ یعني دوي به هلاک کړو او دَ دوي په ځائے به نور انسانان پیدا کړو چه هغوي به تابعداري کوونکي وي لکه سورة نساء ف۱۳۳ او سورة ابراهیم ف۱۹ ف۲۰ او سورة فاطر ف۱۶ ف۱۷ کښ چه ذکر دي۔ یا دا چه دَ دوي شکلونه به مسخ کړے شي ناکاره شکلونو ته لکه په سورة یٰس ف۶۷ کښ نو بیا به دے امثال په معنیٰ دَ اشکالو سره دے۔

إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا ﴿٢٩﴾ وَمَا تَشَآءُونَ إِلَّآ

خپل رب ته لار. او نه شئ غوښتې تاسو څه خیز مګر

أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا

چه اوغواړي الله تعالىٰ. یقیناً الله تعالیٰ دے پوهه

حَكِيمًا ﴿٣٠﴾ يُدْخِلُ مَن يَشَآءُ فِى رَحْمَتِهِۦ ۚ

حکمتونو والا. داخلوی هغه چا لره چه اوغواړي ئې په رحمت خپل کښ

وَٱلظَّٰلِمِينَ أَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًۢا ﴿٣١﴾

او ظالمان چه دي تیار کړیدے دوی لره عذاب درد ناک.

س۲۹ دا پشان دَ سورۃ مزمل س۱۹ دے نو هلته اشارۃ ده تذکرۃ دَ ادا یو دَ دعوت ته سرۃ دَ یادا شت دَ عذاب دنیوی ته او دلته اشاره ده اثبات دَ قیامت او احوالو دَ هغې ته سره دَ ادایو دَ دعوت ته.

س۳۰ س۳۱ دا دَ سورۃ مدثر س۵۶ او سورۃ تکویر س۲۹ پشان دے وَمَا تَشَآءُونَ مفعول محذوف دے یعنی الایمان والطاعة. یا حذف کړیشویدے دپاره دَ تعمیم فَمَن شَآءَ او وَمَا تَشَآءُونَ دلیل دے چه دَ انسان مشیت هم شته دے مجبور محض نه دے. او إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ اشارة ده چه انسان سره قدرت مستقله بخپل کارونو کښ نیشته دے نو په دیکښ رد دے په جبریة او قدریة دواړو باندے. او مفسر شربینی دَ دے ایت په تفسیر کښ ښه تشریح کړیده. عَلِيمًا عالم دے په اهل دَ هدایت باندے نو دَ هغوی دَ هدایت اراده اوکړی. حَكِيمًا دَ چا دَ اضلال مشیت اوکړی په دیکښ هم حکمتونه دی. يُدْخِلُ اه په دیکښ دَ هدایت والو ذکر دے. رَحْمَتِهِۦ نه مراد هدایت دے په دنیا کښ او جنت دے په اخرت کښ. وَٱلظَّٰلِمِينَ دویم فریق ته اشارة ده چه دَ هغوی دَ هدایت اراده ئې نه ده کړے او عامل ناصبه حذف دے (وَيُعَذِّبُ الظَّالِمِينَ) او تفسیر دَ دغه عامل روستو موجود دے او دیته اضمار عَلَىٰ شَرِيطَةِ التفسیر وئیلے شی.

ختم شو تفسیر دَ سورۃ الدهر په فضل دَ الله تعالیٰ سره.

| اٰیاتها ۵۰ / رکوعاتها ۲ | بسم الله الرحمن الرحيم | سُوْرَةُ الْمُرْسَلٰتِ مَكِّيَّةٌ |
|---|---|---|

وَالْمُرْسَلٰتِ عُرْفًا ﴿۱﴾ فَالْعٰصِفٰتِ

قسم دے په هغه هواګانو چه چلولے شی نرمے (پوله پسے) نو هغه هواګانے چه ماتول کوی

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة المرسلات او دَ دے بل نوم سورة العرف دے

ربط دَ دے سورت دَ ماقبل سره په دوه وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه په مخکښې سورت کښې زجرونه په منکرینو باندے لږ لږ نو په دے سورت کښې زجرئے په لفظ دَ وَیْل سره لس کرته ذکر کړیدے. دویمه وجه داده چه په مخکښې سورت کښې اثبات دَ بعث بعد الموت وو په یو دلیل سره نو په دے سورت کښې دَ هغے اثبات کوی په شواهدو او ډیرو عقلی دلیلونو سره.

دعوی دَ سورت اثبات دَ ورځ دَ جزا دے په شواهدو او دلیلونو سره او دعوی په ۷ کښې ده په دے سورت کښې اسماء حسنٰی نیشته لیکن صفات فعلیه دَ الله تعالٰی یوولس ذکر دی.

خلاصه دَ سورت داده - اوّل پنځه شواهد دی دَ پاره دَ دعوے دَ سورت تر ۷ پورے بیا څلور احوال دَ وخت دَ فنا دَ عالم دی تر ۱۱ پورے بیا تخویف اخروی په ذکر دَ یوم الفصل او دَ هغے هیبتونه تر ۱۵ پورے بیا ذکر دَ تخویف دنیوی دے تر ۱۹ پورے. بیائے ذکر کړیدی درے دلیلونه عقلیه سره دَ زجر نه منکرینو ته تر ۲۸ پورے بیا تخویف اخروی په ذکر دَ لس حالاتو دَ اور او دَ ورځ دَ فصل تر ۴۰ پورے بیا بشارت دے متقینو ته په ذکر دَ اوو حالاتو تر ۴۵ پورے او په آخر کښې درے زواجر دی اول زجر تنعم دَ دنیا سره دَ جرمونو نه په ۴۶ کښې دویم زجر په اعراض کولو سره دَ عمل دَ توحید نه په ۴۸ کښې دریم زجر په اعراض

عَصۡفًا ﴿۲﴾ وَّالنّٰشِرٰتِ نَشۡرًا ﴿۳﴾ فَالۡفٰرِقٰتِ

| ما تول | او هغه چه خوروِل کوی خورول | نو | جُدا کوونکی |
|---|---|---|---|

فَرۡقًا ﴿۴﴾ فَالۡمُلۡقِیٰتِ ذِكۡرًا ﴿۵﴾ عُذۡرًا

| جدا کول | نو راغورځوونکی | دَ | وحی | دَپاره دَ عذار |
|---|---|---|---|---|

کولو سره دَ قرآن ته په سٰ۵ کښی۔

تفسیر سلـ دَ اکثر مفسرینو قول دا دے چه مراد دَ دے او دَ مابعد نه هواګانے دی او بل قول دا چه مراد دَ دے نه ملائک دی بل قول دا دے چه رسولان علیهم السلام مراد دی او موصوف محذوف دے یعنی والنفوس المرسلات۔ او بل احتمال دا دے چه مراد دَ دے نه ایاتونه او سورتونه دَ قرآن دی۔ وَالۡمُرۡسَلٰتِ دا صفت په ماقبل څلورو څیزونو کښی شته دے یعنی رالیږلے شویدی دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه عُرۡفًا دا په معنیٰ دَ معروف سره دے یعنی اوامر او نواهی دَ الله تعالیٰ یا په معنیٰ دَ متتابع ( پرله پسے ) دے نو بنا په اوله معنیٰ دا منصوب دے په تقدیر دَ حرف جر سره یعنی بالعرفِ او بنا په دویم حال دے۔

سلـ دا صفت هم په دغه څلورو امورو کښی موجود یری ځکه عاصفات دَ عصف نه دے په معنیٰ دَ هلاکولو او ماتولو سره نو بعض تیزے هواګانے او نور ماتوی ملائک هم کافرانو لره هلاکوی رسولان هم دلیلونه دَ اهلِ باطل ماتوی ایاتونه هم دَ مشرکانو حجتونه باطلوی او هلاکوی۔ او عَصۡفًا دا مفعول مطلق دَ پاره دَ تاکید دے یعنی پوره او کامل عصف۔

سلـ دا صفت هم په دغه ټولو امورو کښی شته دے۔ یعنی هواګانے خوروی وریځو لره او ملائک هم خوروی وریځے او بارانونه او رحمتونه دَ الله تعالیٰ او رسولان او ایاتونه دَ الله تعالیٰ په دعوت سره نشر و اشاعت دَ دین حق کوی۔

سلـ هواګانے وریځو لره دَ یو بل نه جدا کوی ملائک او رسولان او ایاتونه دَ حق او باطل مینځ کښی فرق راولی او شربینی دَ دے ایت په تفسیر کښی ایاتونه دَ قرآن هم لیکلی دی لکه چه مونږ اولیکل

سلـ ملائک او رسولان او ایاتونه دَ الله تعالیٰ وحی ( احکام ) پیش کوی او هواګانے

أَوْ نُذْرًا ﴿٦﴾ إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَوَاقِعٌ ﴿٧﴾

او دَ پاره دَ ويرولو يقيناً هغه چه وعده يئے كيدېشي تاسو سره خامخواه واقع كيدونكے دے

فَإِذَا النُّجُومُ طُمِسَتْ ﴿٨﴾ وَإِذَا السَّمَاءُ

نو هر كله چه ستورى بے نُوره شي او هر كله چه آسمان

باران را غورځوى او دَ ذكر اطلاق په باران باندے هم كيديشي ځكه چه په هغے سره ذكر دَ رحمت دَ الله تعالىٰ بعض انسانانو ته اوكړيشي .

سك دا مصدرونه دى متعلق دى الملقيات سره او منصوب دى بنا په مفعول له كيدلو سره يا بدل دى دَ ذكرًا نه يعني وحى راليږلو كښ مقصد عذر دفع كول دَ خلقو او ويره وركول دى او چه ذكر په معنىٰ دَ باران شي نو په باران سره دَ خلقو نه عذر ردَ سوكړے او دَ قحط زائله شي او دَ چا دَ پاره سبب دَ انذار اوګرځي .(فائده) په دريم آيت كښ واو ذكر دے او باقي څلورو كښ فا ذكر ده دَ دے وجه داده چه عصف مستلزم نه دے نشر لره ځكه چه عصف سره تبا هي او هلاكت راشي نو معلومه شوه چه نشر مستقل وصف دے او ارسال پسے عصف او نشر پسے فرق او فرق پسے القاء دَ ذكر لازمه وى نو فا ئے راوړله چه دلالت كوى په سببيت او لزوم باندے .

سك دا جواب قسم دے مَا تُوعَدُونَ مراد دَ دے نه ټول هغه احوال دى چه قرآن او سنت كښ دَ قيامت په باره كښ دَ هغے وعده كړيشويده نفخ في الصور ، بعث دَ بدنونو ، جمع كول دَ ټول مخلوق ، تقسيم دَ عملنامو ، حساب كول هر چا لره جزا وركول دَ خير او شر ، وزن دَ عملونو ، احوال دَ جهنم ، احوال دَ جنت وغيره دا ټول مراد دى مناسبت په مينځ دَ قسمونو او دَ جواب قسم كښ دادے چه دغه ټول امور واقعيه محسوسه دى نو قدرت دَ الله تعالىٰ په دغه امورو باندے دليل دے چه الله تعالىٰ دَ قيامت په امورو باندے قادر دے او هر كله چه مراد دَ هغے نه رسولان او آيا تونه دَ قرآن شي نو مناسبت ښكاره دے چه هغوى كوم خبرونه وركړيدى هغه بالكل واقع كيدونكى دى

سك سك سك سك دا تفصيل دَ بعض ما توعدون دے چه دا رپاتے په بل مخ)

فُرِجَتْ ⑨ وَإِذَا الْجِبَالُ نُسِفَتْ ⑩ وَإِذَا

کولاو کړی شی او هر کله چه غرونه والوځولے شی او هر کله چه

الرُّسُلُ أُقِّتَتْ ⑪ لِأَيِّ يَوْمٍ أُجِّلَتْ ⑫

دَ رسولانو وخت پوره کړی شی. کومے ورځے ته روستو کړے شوی دی.

خلور لوئے امور دی او دا رنګ په بکښ وخت دَ وقوع دَ ما توعدون ذکر کوی. طُمِسَتْ طمس محوکول او ورانولو ته وئیلے شی مراد دَ دے په سورة تکویر ۲ او سورة انفطار ۲ کښ ذکر دے یعنی اول به تر ینه رنړا محو شی نو بیا به او دو ړیږی ختم به شی. وَإِذَا السَّمَآءُ فُرِجَتْ السماء اسم جنس دے ټول اسمانونه مراد دی. فُرِجَتْ فرج په لغت کښ چودل دی یعنی اسمانونو کښ به انفطار او انشقاق راځی او دروازے به پکښ جوړے شی لکه په سورة انفطار ۱ او انشقاق ۱ او سورة نبا ۱۹ کښ دی.
وَإِذَا الْجِبَالُ نُسِفَتْ الجبال الف لام دَ پاره دَ استغراق دے نُسِفَتْ نسف الوځول دَ یو سو دَ دانو نه او اجزاء دَ یو ځیز دَ یو بل نه جدا کیدل، په تا دُ سره تختول، دَ ویخ نه ویستل دا ټول معانے صحیح دی دا سے په سورة طه ۱۰۵ کښ هم دی. أُقِّتَتْ په اصل کښ وقتت دے دَ وقت نه ماخوذ دے یعنی په وقت مقرره کښ به رسولان راجمع کړے شی لکه په سورة مائده ۱۰۹ کښ دی او په دے کښ معنی دَ تاخیر وی وقت مقرره ته دَ دے وجے نه روستو استفهام دَ تاجیل ذکر کوی. ۱۲ ۱۳ په دے کښ يُقَالُ پټ دے. لِأَيِّ يَوْمٍ دا استفهام دَ پاره دَ عظمت او هیبت دَ هغے ورځے دے او دا جمله جواب دے دَ فَإِذَا دَ پاره یا دا حال دے دَ ضمیر دَ اقتت نه او جواب دَ اذا پټ دے یعنی وقع ما توعدون.
أُجِّلَتْ ضمیر رسولانو ته راجع دے یا تیر شوے ټول احوالو ته راجع دے.

لِيَوْمِ الْفَصْلِ ﴿١٣﴾ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ

ورځ دَ فيصلے ته - او څه پوهه درکړے ده تا ته چه څه ده ورځ

الْفَصْلِ ﴿١٤﴾ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿١٥﴾

دَ فيصلے - تباهي ده په دغه ورځ تکذيب کوونکو لره.

اَلَمْ نُهْلِكِ الْاَوَّلِيْنَ ﴿١٦﴾ ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ

آيا نه دي هلاک کړي مونږ مخکني خلق - بيا به دا دلو دوي پسے

الْاٰخِرِيْنَ ﴿١٧﴾ كَذٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِيْنَ ﴿١٨﴾

روستو خلق - دغسے کار کوؤ مونږ دَ مجرمانو سره.

لِيَوْمِ الْفَصْلِ جواب دے په تقدير دَ اُجِّلَتْ سره او دا نوم دے دَ نومونو دَ قيامت نه ځکه چه په دغه ورځ به جدائي راشي دَ مخلوق دَ يو بل نه او فيصلے به اوکړے شي.

١٤ تا ١٥ دَ ذکر دَ عظمت دَ هغه ورځ ته دوباره عظمت ذکر کوي په وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الْفَصْلِ سره او دريم کرت ذکر کوي په وَيْلٌ ٠١ه سره. او دا آيت يې په دے سورت کښ لس کرته راوړے دے ځکه چه حق خيزونه ډير دي او دَ هر يو تکذيب مستقل سبب دَ وَيْل دے نو دَ هغه خيزونو حقو نه يې لس ذکر کړيدي اول پدے آيت کښ تکذيب دَ يوم الفصل مراد دے (وَيْل) مبتدا نکره ده ځکه چه دا دُعاءِ شر ده او هغه سبب دَ جواز دَ ابتدا کيدے شي.

١٦ تا ١٨ دا تخويف دنيوي دے مکذبينو لره. اَوَّلِيْنَ لکه قوم دَ نوح عليه السلام او عاديان ثموديان قوم دَ صالح عليه السلام قوم دَ لوط عليه السلام اصحاب مدين قوم تبّع قوم فرعون چه دا په قرآن کښ ذکر دي اَلْاٰخِرِيْنَ دَ دے نه مراد مشرکينِ مکّه او دَ روستو زمانے منکرين دي ځکه چه دوي ټول په تکذيب کښ شريک دي نو په جزاء کښ به هم شريک وي. كَذٰلِكَ نَفْعَلُ تاکيد دے دَ نتبعهم الآخرين دَ پاره او دَ آخرين نه يې تخصيص دَ مجرمانو راکړے په بل مخ)

وَيۡلٌ يَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُكَذِّبِيۡنَ ﴿۱۹﴾ اَلَمۡ نَخۡلُقۡكُّمۡ

تباهي ده په دغه ورځ تکذيب کوونکو لره - ايا مونږ نه يئ پيدا کړي تاسو

مِّنۡ مَّآءٍ مَّهِيۡنٍ ﴿۲۰﴾ فَجَعَلۡنٰهُ فِیۡ قَرَارٍ

د اوبو سپکو نه - نو حصار کړي دي مونږه هغه په ځائے د قرار

مَّكِيۡنٍ ﴿۲۱﴾ اِلٰى قَدَرٍ مَّعۡلُوۡمٍ ﴿۲۲﴾

مضبوط کښې تر نيټې مقرر پورے ،

اوکړو يا دَ الاخرين نه مکے والا مراد دی او دَ كَذٰلِكَ نَفۡعَلُ نه دَ روستو زمانو مجرمان مراد دی تر قيامته پورے.

سـ۱۹ دلته دَ مکذبين نه هغه خلق مراد دی چه قصے او واقعات دَ هلاکت دَ هغکتو مجرمانو نه مني او دَ روستو مجرمانو دَ تخويفاتو تصديق نه کوی کوم چه مخکښې درے آيا تونو کښې ذکر شول.

سـ۲۰ سـ۲۱ سـ۲۲ دا دليل عقلی نفسي دے دَ اول پيدائيش دَ انسان، دَ اثبات دَ بعث بعد الموت دَ پاره. مَآءٍ مَّهِيۡنٍ دا نطفه ده چه کمزورے او په دی او سپکے دی يعني نفرت ترينه کيدے شي برابره خبره ده که پاکه وی او که پليته وی دَ دے نه دَ پليت والی دَ مني استدلال نشي کيدے.

او مراد دَ مَآءٍ نه جنس او يه دی يعني اوبه دَ سړی او دَ زنا نه ځکه چه نورو نصوصو سره ثابت دی چه خلق دَ بچی دَ دواړو اوبو نه شويدے قَرَارٍ مَّكِيۡنٍ مراد دے نه رحم دَ مور دے چه سرهٔ دَ ثقل دَ حمل نه په رحم کښې محفوظ وی.

اِلٰى قَدَرٍ مَّعۡلُوۡمٍ مراد ترينه وخت دَ ولادت دے چه شپږ مياشتې يا نهه مياشتې وی يا په اکثر عادت اگر چه کله کله دَ دے نه زيات شي. مَّعۡلُوۡمٍ يعني په اعتبار دَ عرف او عادت دَ نساؤ سره معلوم دے يا دا چه پوره ورځ او وخت دَ پيدائيش سرهٔ دَ تفصيلی احوالو دَ بچی نه صرف الله تعالىٰ خبر دے او عالم دے لکه ويعلم ما في الارحام. او دا رنګ په سورة رعد سـ۸ کښې دی.

فَقَدَرْنَا ۖ فَنِعْمَ الْقٰدِرُوْنَ ﴿۲۳﴾ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ

نو قدرت لرونکي يو – تباهي ده په دغه ورځ | نو قدرت لرو موږ نو ښه

لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۲۴﴾ اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ كِفَاتًا ﴿۲۵﴾

تکذيب کوونکو لره – ايا نه ده ګرځولې موږ دا زمکه | راغونډونکې ،

اَحْيَآءً وَّاَمْوَاتًا ﴿۲۶﴾ وَّجَعَلْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ

ژوندو لره او مړو لره ، او جوړ کړي دي موږ په دې (زمکه) کښې غرونه

فَقَدَرْنَا بعضو اهلِ لغتو فرق کړيدے په صيغې دَ تخفيف او تشديد کښ يعنې مخفف دَ قدرت نه دے نو دا تاکيد دَ ماقبل دے يعنې خلق دَ انسان په دغه طريقه ذکر شوے سره خاص قدرت دَ الله تعالىٰ دے بل هيڅوک دا سے قدرت دَ خَلق نه لري او بعض اهلِ لغتو دَ مخفف او مشدّد يوه معنىٰ کړيده يعنې تقدير کول يعنې الله تعالىٰ اندازه او تقرر کړيدے دَ وخت دَ ولادت او دَ احوالو دَ دے. يې او دَ هغه دَ سعادت يا شقاوت نو قادرون په معنىٰ دَ مقدّرون سره دے نو په دے معنىٰ سره اشاره ده مسئلے دَ تقدير ته ليکن دا تقدير خو په کتاب دَ ملائکو کښ وي او اصل تقدير خو ډير مخکښ دے لکه چه دا مسئله په خپل ځائے کښ واضح شوے ده.

۲۴ دلته دَ مکذبين نه مراد هغه دي چه خلق دَ انسان پدغه طريقے سره په قدرت دَ الله تعالىٰ سره نه مني او دَ هغه تقدير هم نه مني يا داسے قدرت دَ الله تعالىٰ نه سيوا غيرالله لره ثابتوي نو دَ هغوي دَ پاره وَيل دے.

۲۵ – ۲۶ پديکښ دويم دليل عقلي آفاقي سفلي دے. كِفَاتًا دا اسم جنس دے يعنې دَ هر جمع کوونکي دَ پاره لوښے وي يا بل څيز. يا دا اسم آله ده يا مصدر دے مبني للفاعل دے يا جمع دَ کافت يا دَ کِفت ده. اَحْيَآءً وَّاَمْوَاتًا دا مفعول دے دَ کفات هر کله چه کفات جمع يا مصدر شي. او که اسمِ آله شي نو بيا دَ دے دَ پاره فعل ناصبه پټ دے (تجمع) راجمع کوي ژوندي په شا باندے پدے سره آباد دي (يا تے په يل مخ)

شٰمِخٰتٍ وَّاَسْقَيْنٰكُمْ مَّآءً فُرَاتًا ﴿٢٧﴾

رنګ او خښولے دی مونږ په تاسو اوبه خوږے.

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿٢٨﴾ اِنْطَلِقُوْٓا

تباهی ده په دغه ورځ تکذیب کوونکو لره. لاړ شئ هغه

اِلٰى مَا كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿٢٩﴾ اِنْطَلِقُوْٓا

څيز ته چه تاسو د هغے تکذیب کوؤ. لاړ شئ

کروندے کوی ګرځی نورے فائدے تری نه اخلی او جمع کوی مړو لره په دفن کیدلو او دا دلیل دے چه دَ مړو دفن کول ضروری دی او قرطبی و ئیلی دی چه دا رنګ خپل ومخته او نوکونه پریکړے شوی هم په زمکه کښ دفن کول پکار دی.

سـ٢٧ دا بل دلیل عقلی آفاقی وسطی دے. رَوَاسِیَ غرونه چه زمکے لره کلکه وی شَامِخَاتٍ شامخ هر رنګ څیز ته وئیلے شی مراد دا سے غرونه دی چه دَ هغے سرونو ته ختل مشکل وی. فُرَاتًا هغه اوبه چه تندہ ماتوی او فصلونو ته فائده ورکوی او دا اوبه دَ سیندونو، نهرونو، چینو او کوہانو دی. (فائده) په دے درے دلیلونو کښ (خلق دَ انسان او خلق دَ زمکے او خلق دَ غرونو) کښ مناسبت دے هغه دا دے چه دَ نطفے نه دَ انسان پیدائش دے او دَ زمکے نه دَ بوټو پیدائش دے او دَ غرونو نه دَ اونو بوټو، معدنیاتو او اوبو پیدائش دے نو هغه الله تعالیٰ چه په دے درے قسمونو خلق باندے قدرت لری نو ضروری خبره ده چه هغه په بعث بعد الموت باندے قدرت لری او دا سے وصف په آسمان کښ ښکاره نیشته دَ دے وجے نه دلته آسمانی دلیل ئے نه دے ذکر کړے.

سـ٢٨ مراد دَ دے نه هغه خلق دی چه دَ زمکے دَ پیدائش او دَ فائدے نه او دَ غرونو او اوبو دَ پیدائش نه انکار کوی چه الله تعالیٰ نه دی پیدا کړی یا دَ الله تعالیٰ سره دَ دے په پیدائش کښ شریک شته نو دا سے مکذب لره وَیْلٌ دَے. سـ٢٩ دا تخویف اخروی دے او یقال دلته پټ دے (پاتے بل مخ)

إِلَىٰ ظِلٍّ ذِي ثَلَاثِ شُعَبٍ ﴿٣٠﴾ لَّا ظَلِيلٍ

سوری ته چه درے خانګو والا دے، نه دے سورے ورکوونکے

وَلَا يُغْنِي مِنَ اللَّهَبِ ﴿٣١﴾ إِنَّهَا تَرْمِي

او نه فائده ورکوی د شغلو نه - یقینًا دا اُور ویشتل کوی

بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ ﴿٣٢﴾ كَأَنَّهُ جِمَالَتٌ صُفْرٌ ﴿٣٣﴾

په بسرو چه پشان د بنګلو دی - ګویا چه هغه اوښان بے مُهارا دی -

مَا كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ مراد د دے نه عذاب د اور د جهنم دے او مَا موصوله دے یا مَا مصدریه دے او مضاف محذوف دے یعنی الی جزاء تکذیبکم یعنی د دے نه مخکښ ئې خلور کرته تکذیب ذکر کړیدے نو د هغے سزا ذکر کوی۔

۳۰ تا ۳۱ دا تفصیل د مخکښ اجمال دے ظِلٍّ ذِي ثَلَاثِ شُعَبٍ مراد د ظل نه سورے د لوګی (لوخړے) د جهنم دے لکه سورة واقعه ۴۳ کښ ذکر دی۔ او هرکله چه لوګے په زور سره راوځی نو هغه تقسیم شی درے حصّو ته اشاره ده چه دا لوګے به ډیر په زور سره راوځی۔ او سیوطی اتقان کښ وئیلی دی چه دا په اصل کښ په جهنم والو پورے استهزاء ده ځکه شکل مثلّث چه درے بازوګان او درے ګوټونه ئې وی هغه چه په هر بازو بانده اودروے نو سورے ترینه نه پیدا کیږی یعنی په ظاهر کښ سورے او حقیقت کښ سورے نه دے لکه چه فرمائی لَّا ظَلِيلٍ نه دے سورے ورکوونکے د تمر نه او سورے فائده ورکوونکے د تمر د ګرمئ نه۔

وَلَا يُغْنِي مِنَ اللَّهَبِ، اغنا په معنیٰ د دفع کولو سره دے۔ اشاره ده چه دا ظل خلاف دے د ظل د مؤمنانو نه ځکه هغه خو ظل ظلیل دے۔

۳۲ ۳۳ إِنَّهَا ضمیر راجع دے اور ته ځکه ظل او لهب دلالت کوی په اور بانده۔ شَرَرٍ هغه ټکړے چه د اور نه هر طرف ته الوځی او هغے ته بسری وئیلے شی لیکن د دنیا د اور بسری ریاګے په بل ځ

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۳۴﴾ هٰذَا يَوْمُ

تباهي ده په دغه ورځ تکذيب کوونکو لره . دا ورځ ده

لَا يَنْطِقُوْنَ ﴿۳۵﴾ وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ فَيَعْتَذِرُوْنَ ﴿۳۶﴾

چه نه به شي کولے دوي خبرے، او نه به اذن (حکم) کيږي دوي ته چه بهانے اوکړي.

ډير تړي وي او دَ جهنم بَسَرى گَالْقَصْرِ پشان دَ لوئے ښکلے يا لرګي پريکړے شوي يا وېخونه دَ غټو اونو او غرونه دا لفظ په دے ټولو معانو سره راځي دا تشبيه په غټ والى کښ ده او بله تشبيه په رنګ کښ ذکر کوي په دے قول سره گَأَنَّهٗ جِمٰلَتٌ صُفْرٌ. جِمٰلَةٌ په يو قراءت کښ وزن دَ فِعَالَةٌ دے او جمع دَ جمل ده لکه حجارة جمع دَ حجر ده او بل قراءت کښ په وزن دَ فعالات سره دے او دا جمع الجمع ده. اوښانو او غټے رسئ دَ کشتۍ ته وئيلے کيږي. صُفْرٌ زيړے يا تورے ځکه عرب کله صفرة په معنیٰ دَ سواد (تور) سره استعما لوي. يا خالى دَ مهارونو نه او په دے کښ بله تشبيه هم ده يعنى دَ اوښانو سره تشبيه په غټوالى کښ ده سرهٔ دَ تور والى ته يا په وخت دَ بے مهاره کيدلو کښ چه ډير خواره واره شي دا رنګ بَسَرى به خواره واره وي او دَ رسو سره تشبيه په اوګدوالى ده چه دا بَسَرى به داسے اوګده وي لکه دَ رسئ پشان.
۳۴ مراد په دے سره هغه خلق دي چه دَ اور دَ جهنم او دَ ظل دَ دغه مذکوره حالاتو نه انکار او تکذيب کوي.
۳۵ ۳۶ دا هم تخويف اخروي دے په ذکر دَ مختلف قسم هيبتونو دَ قيامت سره. لَا يَنْطِقُوْنَ طاقت دَ نطق کولو به نه لري (سوال) په نورو آيا تونو کښ يختصمون، يتکلمون، يتساءلون، تجادل عن نفسها، دا تعبيرات دلالت کوي چه دوي به خبرے کولے شي؟ (جواب ۱) دا دے چه ورځ دَ قيامت اوږده ورځ ده مشتمل ده په مختلفو حالاتو باندے په بعض حالاتو کښ به خبرے کولے شي دروغ بهانے او انکار دَ شرک او کفر نه او اتباع او متبوعين به دَ يو بل سره جګړے کوي خو بل حالت به ور باندے داسے دَ هيبت راځي چه هيڅ خبره به

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۳۷﴾ هٰذَا

تباهي ده په دغه ورځ تکذيب کوونکو لره - دا

يَوْمُ الْفَصْلِ جَمَعْنٰكُمْ وَالْاَوَّلِيْنَ ﴿۳۸﴾

ورځ دَ فيصلې ده راجمع به کړو مونږ تاسو او مخکني خلق .

فَاِنْ كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ فَكِيْدُوْنِ ﴿۳۹﴾

نو که وي ستاسو څه چل ول نو اوکړئ چل ما سره .

نشي کولے. (جواب ع۲) دا دے چه دلته مراد نفي دَ نطق مفيد ده يعني خبرے په نشي کولے په حجت او دليل فائده مند سره .
فَيَعْتَذِرُوْنَ . (سوال) دا جواب دَ نفي دے نو پکار وه چه مجزوم وے په حذف دَ نون سره ؟ (جواب) دا معطوف دے په لا يؤذن باندے جواب نه دے يعني نه اذن شته او نه اعتذار کول شته . دويم جواب دا چه دَ رعايت دَ فواصل الاٰيات دَ وجے نه نون نه دے حذف کړے شوے او دا هم په ضرورت کښ جائز دے .
۳۷ څوک چه دا حالت نه مني انکار او تکذيب ئے کوي نو دلته هغه مکذبين مراد دي .
۳۸ ۳۹ دا بل قسم تخويف دے مخکښ ئے او فرمائيل چه په عذرونو سره نشي بچ کيدلے او نه اذن شته دلته فرمائي چه په حيلو او کيدونو سره هم نشي بچ کيدلے او دلته هم ثِقَال (راويه و ثيلے شي) په اول کښ پټ دے .
هٰذَا کښ اشارة دَ موصوف ته په دغه صفتونو مخکښنو سره .
وَالْاَوَّلِيْنَ . (سوال) والاٰخرين ئے ولے ذکر نه کړو ؟
جواب اول دا چه دلته مکذبين دَ مخکښتو انبياؤ او دَ آخري نبي مراد دي او روستو خو نور انبياء نه راځي نو مکذبين آخرين نيشته . جواب دويم دا دے چه په لکم سره خطاب دَ آخري نبي صلی الله عليه وسلم امت ته دے او هغوي تر قيامت پورے دي . کَيْدٌ څه حيله دَ پاره دَ دفع کولو دَ عذاب او دَ پاره دَ بچ کيدلو دَ الله تعالیٰ نه لکه په سورة رحمٰن ۳۳ کښ .

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿٤٠﴾ إِنَّ

تباهي ده په دغه ورځ تکذيب کوونکو لره . يقيناً

الْمُتَّقِيْنَ فِيْ ظِلٰلٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿٤١﴾ وَّفَوَاكِهَ

متقيان به په سورو او په چينو کښې وي او ميوے به دي

مِمَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿٤٢﴾ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا هَنِيْٓـًٔا

د هغه قسم نه چه دوي يې غواړي . خورئ او څښئ په خوشحالئ سره

بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٤٣﴾ إِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي

په سبب د هغه عملونو چه تاسو کول . يقيناً د غسے بدله ورکوؤ مونږ

الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٤٤﴾ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿٤٥﴾

خائسته عمل کوونکو ته . تباهي ده په دغه ورځ تکذيب کوونکو لره .

ف۴۰ څوک چه دا جمع د ټولو خلقو او حساب نه مني نو هغه مکذبين مراد دي.

ف۴۱ ف۴۲ دا بشارت اخرويه دے متقينو ته چه هغوی په خلاف د مکذبينو دی نو د دوی جزا هم د هغوی نه خلاف ده ظِلٰلٍ دا سوری د اونو او د بنګلو دی او حقيقي دی او دا په مقابل د ظل د جهنم کښې دے عُيُوْنٍ يې جمع ذکر کړه ځکه چه د هغې انواع ډير دی په شان د انهارو د جنت . وَفَوَاكِهَ يعني ميوے به د دوی نه چاپيره هر طرف ته موجود وی.

ف۴۳ دلته يقال (او يه ويئيلے شی) په اول کښې پټ دے د کلوا او اشربوا مفعولو نه يې حذف کړيدی اشاره ده چه ماکولات او مشروبات بے شماره دی . هَنِيْٓـًٔا هغه خوراک او څښاک چه مبارک او د فائدو نه ډک وی هيڅ مرض او عيب نه پيدا کوی . بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ دا ظاهری سبب رحمت د الله تعالیٰ دے لکه چه په حديث کښې دی چه جنت ته بغير د رحمت د الله تعالیٰ نه داخله نشی کيدے.

ف۴۴ اشاره ده چه عمل خو سبب دے ليکن په شرط د احسان سره او

كُلُوا وَتَمَتَّعُوا قَلِيلًا إِنَّكُم مُّجْرِمُونَ ﴿٤٦﴾

خورئ او مزے واخلئ لږه موده يقيناً تاسو مجرمان يئ ۔

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٧﴾ وَإِذَا قِيلَ

تباهي ده په دغه ورځ تكذيب كوونكو لره ۔ او كوم وخت چه او وئيلے شي

لَهُمُ ارْكَعُوا لَا يَرْكَعُونَ ﴿٤٨﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ

دوى ته ركوع كوئ نو نه كوى دوى ركوع ۔ تباهي ده په دغه ورځ

احسان عبارت دے دَ اخلاص او اتباع سنت نه ۔

۴۵ څوک چه دَ متقيانو دَپاره دَ جنت دَ نعمتونو نه انكار كوى او دَ هغے تكذيب كوى نو دا سے خلقو لره تباهي ده ۔

۴۶ دا زجر دے متعلق دَ حال دَ مكذبينو سره او دا مقابل دے دَ حال دَ متقينو سره يعنى متقيانو ته به په آخرت كښ وئيلے شي كلوا واشربوا او مكذبينو ته په دنيا كښ وئيلے شي كلوا. قَلِيلًا موصوف حذف دے زمانًا قليلًا او هر كله چه ژوند دَ دنيا قليل دے په نسبت دَ آخرت اگرچه دنيا كښ دَ مكذبينو خوراكونه او مزے ډيرے دى دَ متقيانو په نسبت سره ليكن حقيقت كښ قليل دى په نسبت دَ آخرت سره قَلِيلًا كښ اشاره ده چه په آخرت كښ به دوى دَ دے مزو نه محرومه وى او دَ دے علت ئے ذكر كړو په دے قول سره چه اِنَّكُم مُّجْرِمُونَ يعنى گناهونه ئے بشكاره كول.

۴۷ هغه څوک چه دَ دنيا تمتع قليل نه گنړى بلكه دَ غرور دَ دُنيا دَ وجے نه جرمونه كوى دلته هغه مكذبين مراد دى ۔

۴۸ دا بل زجر دے ۔ رُكُوع عمل دَ توحيد دے نو دا ذكر دَ جزء او مراد تري نه كل دے يعنى صلوة ، يا ركوع په معنىٰ دَ خضوع كولو دَ الله تعالىٰ ته په توحيد سره نو دا عام ده په صلوة كښ او خارج دَ صلوة نه ټولو ته شامل ده ۔

او دا تفسير دَ مجرمون دے يعنى يو جرم ئے دا دے چه هغه مونځ نه كوى چه په هغے كښ ركوع ده يعنى مونځ دَ صحابه كرامو، او دَ دے تخصيص وجه دا ده چه كتابيانو كافرانو په خپلو مونځونو كښ ركوع پريخودے وه نو مونځ ئے بغير دَ ركوع نه كولو۔

لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٩﴾ فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٠﴾ ع

| تکذیب کوونکو لره - | نو په کومه یوه خبره په روستو دَدینه دوی ایمان راوړی۔ |
|---|---|

۴۹ رکوع او مو نځ نه کول دا علامت دَ مکذبینو دے دَدے وجے نه دلته ئې هم اُوئیل یومئذٍ للمکذبین۔
۵۰ هرکله چه لس کرته ئې تکذیب دَ مکذبینو ذکر کړو نو اخری زجر دا دے چه دا تکذیب په اصل کښې تکذیب دَ قران دے نو چه دوی دَ دے تکذیب کوی نو بل به کوم کلام وی چه دوی به په هغې ایمان راوړی۔
حَدِيثٍ هغه خبرے چه نقل ئې کیدے شی او دا صفت په قران کښې شته ځکه ورته حدیث وئیلے شی۔ بَعْدَهُ په دے کښې اشاره ده چه روستو دَ قرانؒ وحی منقطع ده بل کلام الله نشی کیدلے او مخکښې خو کتابونه وؤ دَدے وجے نه قَبْلَهُ ئې نه دے ذکر کړے۔
ابن کثیر حدیث دَ ابوهریره رضی الله عنه ذکر کړے دے چه څوک دا ایت اولولی نو ورپسے دِ اولولی (په طریقه دَ جواب سره) امنت بالله وما انزل۔

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة المرسلات په فضل دَ الله تعالیٰ سره۔

سُوْرَةُ النَّبَا مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۴۰ — رُكُوْعَاتُهَا ۲

عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ ﴿۱﴾ عَنِ النَّبَاِ الْعَظِيْمِ ﴿۲﴾

دَ څه په باره کښې دوی تپوس سوال کوی (دَ يو بل نه)۔ دَ لوئې خبر په باره کښې ۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة النبا او دے ته سورة عم او سورة عم يتساءلون وسورة التساؤل او سورة المعصرات هم وئيلے کيږی۔
ربط دَ دے سورت دَ مخکښې سورت سره په څو طريقو سره دے
اوله طريقه داده چه په مخکښې سورت کښې زجر ووُ په تکذيب باندے نو
په دے سورت کښې زجر دے په اختلاف او تساؤل باندے۔
دويمه طريقه داده چه په هغه سورت کښې نوم دَ قيامت ووُ په يوم
الفصل سره نو په دے سورت کښې دَ مکذبينو او متقيانو په مينځ
کښې فصل او فرق ذکرکوی په لس لس وجوهو سره۔
دريمه طريقه داده چه په هغه سورت کښې درے عقلی دليلونه ذکر
ووُ او په دے سورت کښې لس انعامات ذکرکوی په طريقه دَ دليلونو سره۔
دعویٰ دَ دے سورت زجر دے منکرينو دَ بعث بعد الموت ته
او اثبات دَ هغے دے په دليلونو او په احوالو دَ منکرينو او متقيانو
سره تخويفًا او بشارةً۔ او دوه اسماء حسنٰی (رب، رحمان) او څوارلس
صفاتِ فعليه ئے ذکرکړيدی۔
خلاصه دَ سورت۔ اول زجر دے په انکار دَ بعث بعد الموت
په طريقه دَ تساؤل او اختلاف سره تر ۵ پورے بيا ئے لس انعامات
ذکرکړی دی په دليل دَ قدرت سره په بعث بعد الموت باندے تر
۱۶ پورے بيا تخويف اخروی دے په لس وجوهو سره دَ پاره دَ
منکرينو او بشارت دے په لس وجوهو سره دَ پاره دَ متقيانو۔
تفسير ۱ ۲ ۳ دا زجر دے په انکار دَ بعث او دَ رپاتے په بل مخ)

الَّذِیْ هُمْ فِیْهِ مُخْتَلِفُوْنَ ﴿۳﴾ كَلَّا

هغه چه دوی په هغه کښې اختلاف کوی . هیچرې نه ده پکار-

سَیَعْلَمُوْنَ ﴿۴﴾ ثُمَّ كَلَّا سَیَعْلَمُوْنَ ﴿۵﴾

زر ده دوی ته به معلومه شی ، بیا هیچرې نه ده پکار زر ده دوی ته به معلومه شی -

اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ مِهٰدًا ﴿۶﴾ وَّالْجِبَالَ

آیا نه ده کړځولے موږ زمکه غوړیدلے او غرونه

قران سره - عَمَّ په اصل کښې عن ما وو دَ نون او دَ میم ادغام اوکړے شو او الف په آخر کښې حذف کړے شو دَ اختصار دَ پاره او دَ پاره دَ فرق دَ مَا استفهامیه او خبریه - یَتَسَآءَلُوْنَ باب تفاعل دے کثرت ته اشاره ده او مراد دَ تساؤل نه عبث بحثونه کول دی ځان پوهه کول ئې مقصد نه دے - عَنِ النَّبَاِ الْعَظِیْمِ دا متعلق دے په یتساءلون پټ پورے جواب دَ استفهام دے مراد دَ نباء عظیم نه بعث بعد الموت دے ځکه چه خبر دَ قیامت ډیر لوئے او درونډ دے په آسمانونو او زمکه کښې یا مراد دَ دے نه قرآن او توحید دے لکه سورة ص کښې. مُخْتَلِفُوْنَ څوک تصدیق کوی او څوک انکار. او څوک وائی چه ارواح به صرف بعث کیږی او څوک وائی بعث به دَ لږ وخت دَ پاره وی- او دَ قرآن په باره کښې اختلاف دا دے چه وائی دا سحر دے کهانت دَے شعر دے کلام دَ مجنون دے خو بو نه دی افتراء ده.

ک ۵ په دے کښې دَ زجر سره تخویف دے . او كَلَّا دواړه ردعیه دی او مرجع ئې جدا جدا ده اول كَلَّا ردع دَ تساؤل ده او دویم ردع دَ اختلاف ده او تکرار دَ سَیَعْلَمُوْنَ دَ پاره دَ کثرت دَ عذابونو دے یا اول اشاره ده عذاب دنیوی ته او دویم اشاره ده عذاب اخروی ته او احتمال شته چه كَلَّا په معنیٰ دَ حقًا سره وی -

ک ۶ ۸ او په دے ځائے کښې ذکر کوی انعامات لس او مقصد په دے کښې اظهار دَ قدرت دے په بعث بعد الموت یا ندے ځکه چه دا قدرت په دے امورو غټ دے دَ قدرت نه په دوباره ژوندی

أَوْتَادًا ﴿٧﴾ وَّخَلَقْنٰكُمْ أَزْوَاجًا ﴿٨﴾ وَّجَعَلْنَا

میخونه ۔ او پیدا کړي يي موږ تاسو جوړي ، او ګرځولے دے موږ

نَوْمَكُمْ سُبَاتًا ﴿٩﴾ وَّجَعَلْنَا الَّيْلَ

خوب ستاسو آرام ، او ګرځولے ده موږ شپه

لِبَاسًا ﴿١٠﴾ وَّجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا ﴿١١﴾

جامه ، او ګرځولے ده موږ ورځ وخت د ګټلو د روزئ ۔

کولو بانده ۔ اول انعام دا دے أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ مِهٰدًا تيار ه کړے شوے ده د پاره د آرام او سکون پشان د مهد (غيږ) د بچي د پاره . دويم انعام وَالْجِبَالَ أَوْتَادًا دا هم په طريقه د تشبيه سره د ے يعنې پشان د ميخونو چه په دے سره يئ زمکه کلکه کړے ده د پاره د د ے چه اضطرابي حرکتونه او نه کړي او لکه چه د ميخ څه حصّه بهر وي او څه حصّه دننه وي (رخخه وي) نو داسے د غرونو هم څه حصّه بهرده او څه حصّه يئ په زمکه کښ دننه ده . دريم انعام وَخَلَقْنٰكُمْ أَزْوَاجًا، ازواج مختلف قسمونه او مختلف شکلونه يا جوړے مذکر او مؤنث ته وئيلے شي.

سو سلا څلورم انعام وَجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا سُبت په اصل کښ قطع ته وئيلے شي خوب ته يئ سباتا د دے وجے نه وئيلے دی چه د کارونو او د شغل نه قطع کول کوي او بعضو وئيلے دي چه سبت اوګدا والي ته وئيلے شي او مراد ترينه راحت دے او په وخت د راحت کولو کښ انسان خپے اوګدے کړي او په دے راحت (په خوب کولو) سره يعنې د راحت نه پس انسان په نورو کارونو او عبادت کولو بانده طاقت او موهي نو داځکه نعمت دے . او هرکله چه په جنت کښ کارونه محنتونه نيشته نو ستړے والے هم نيشته نو خوب کولو ته حاجت نيشته بلکه هلته خوب کول سبب ګرځي د محروم والي د نعمتونو نه د دے وجے نه په حديث صحيح سره ثابت دي چه په جنت کښ خوب نيشته دے.

پنځم انعام وَجَعَلْنَا الَّيْلَ لِبَاسًا هرکله چه انسان په ډيرو کارونو کښ بوخت کيدلو او د خلقو نه پرده کولو ته محتاج دے (په تے په بل مخ)

وَبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعًا شِدَادًا ﴿١٢﴾ وَّجَعَلْنَا

او جوړ کړے دی مونږ ستاسو د پاسه اووه آسمانونه کلک. او جوړ کړے دے مونږ

سِرَاجًا وَّهَّاجًا ﴿١٣﴾ وَّاَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرٰتِ

چراغ پړقیدونکے. او راورولے دی مونږه د درتو وریځو نه

مَآءً ثَجَّاجًا ﴿١٤﴾ لِّنُخْرِجَ بِهٖ حَبًّا وَّنَبَاتًا ﴿١٥﴾

اوبه را بهیدونکے. د دے د پاره چه را اوباسو په هغے سره دانے او بوټی،

اوهغه په شپه کښ کیږی د دے وجے نه هغے ته لباس اوفرمائیل

او لِبَاس سُکُنا (ارام) ته هم وئیلے شی. شپږم انعام وَجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا

معاش هر هغه څیز ته وئیلے شی چه په هغے سره ژوند تیریږی

خوراک څښاک وغیره نو مضاف محذوف دے یعنی وَقْتَ مَعَاشٍ، یا

معاش صیغه د ظرف زمان ده او په دے دواړو کښ اصل وصف

پټ دے یعنی شپه تیارے والا او ورځ رنړا والا په هغے باندے دا نورے

فائدے مرتب کیږی.

سـ١٢ اووم انعام وَبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ اه، شِدَادًا محکم او مضبوط په اعتبار

د جوړخ سره لکه په سورة ملك سـ٣ کښ دی او په اعتبار د حفاظت

سره د راغورځیدلو نه او شیطانانو نه لکه په سورة انبیاء سـ٣٢

او سورة حجر سـ١٧ او سورة حج سـ٦٥ کښ دی او دا ایت صریح دلیل

دے چه آسمانونه مضبوط اجسام والا دی هسے هوا گانے نه دی.

سـ١٣ دا اتم انعام دے وَهَّاجًا ډیر پړقیدونکے چه نظر ورته نه شی

کیدے هر کله چه د نمر رنړا هم ډیره ده او فائدے یکښ هم ډیرے

دی نو د سپوږمئ ذکر ته حاجت رانغے.

سـ١٤ دا نهم انعام دے الْمُعْصِرَاتِ، هواگانے چه وریځے نچوړوی او باران

ترینه را اوباسی یا وریځے چه قریب وی باران وریدلو ته لیکن باران

ترینه لا وریدلے نه وی یا آسمانونه لیکن دا قول ضعیف دے.

سـ١٥ سـ١٦ دا لسم انعام دے او دا متعلق دے په انزلنا پورے فائدے

د باران ذکر کوی. نَبَاتًا مراد د دے نه گیاگانے او واخه ساګونه وغیره دی

وَّجَنّٰتٍ اَلْفَافًا ﴿١٦﴾ اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ

او باغونه گڼ (گڼور). یقیناً ورځ د فیصلې ده

مِيْقَاتًا ﴿١٧﴾ يَّوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ فَتَاْتُوْنَ

وخت مقرر. په هغه ورځ چه پوکے او کړیشي په شپیلۍ کښ نو راځئ به تاسو

اَفْوَاجًا ﴿١٨﴾ وَّفُتِحَتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ اَبْوَابًا ﴿١٩﴾

ډلے ډلے. او پرانستلے به شي اسمان نو شي به دروازے

وَّسُيِّرَتِ الْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا ﴿٢٠﴾

او روان به کړیشي غرونه نو شي به پړق د شګے.

دَپاره دَ خاروؤ او انسانانو هم. اَلْفَافًا اونے چه یو بل سره نزدے وی او څانګے ئے هم ډیرے وی نو یو بل کښ ننوتے وی دے ته الفاف وئیلے شي دَ الفاف مفرد نیشته او بعضو وئیلے دی چه جمع دَ لُف ده.
سکا سلا سوا سنہ دا تخویف اخروی دے په ذکر دَ هیبتونو دَ ورځ دَ قیامت او په ذکر دَ احوالو دَ جهنم سره. كَانَ په تقدیر دَ الله تعالیٰ او په علم دَ هغه کښ مِيْقَاتًا وخت مقرر کړے شوے دَپاره دَ ثواب او عذاب او دَپاره دَ انتها دَ دُنیا.
فِي الصُّوْرِ دَ دے نه دویمه نفخ مراد ده. اَفْوَاجًا ډیرے ډلے هره ډله به دَ خپل امام سره وی لکه په سورة اسراء سلا کښ ذکر دی.
اَبْوَابًا دا په حذف دَ حرف تشبیه سره دے یعنی كَالْاَبْوَابِ یا مضاف محذوف دے ذات ابوابٍ او دا به داسے شي دَپاره دَ نزول دَ ملائکو لکه سورة فرقان سه کښ چه ذکر دی. سَرَابًا دا هم په تشبیه سره دے یعنی كالسَّرابِ لکه چه سراب په سترګو باندے ښکاریږی لیکن په حقیقت کښ هیڅ نه وی نو دا رنګ به غرونه شي. امام رازی په تفسیر کبیر کښ دَ غرونو هغه احوال چه په وخت دَ فنا کیدلو دَ عالم کښ به وی په ترتیب سره داسے راوړے دی اول اندکاک لکه په سورة الحاقه سکا کښ دویم پشان دَ رنګینے وړئے لکه رباتے په بل مخ)

إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا ﴿٢١﴾ لِلطَّٰغِينَ

يقيناً جهنم دے ځائے دَ څوکئ (مورچه) - دَپاره دَ سرکشانو دے

مَـَٔابًا ﴿٢٢﴾ لَّٰبِثِينَ فِيهَآ أَحْقَابًا ﴿٢٣﴾

ځائے دَ ورتللو، او سیږی به په هغې کښې دیر زمانے پورے -

سورۃ القارعه ۵ دریم پشان دَ دوړے لکه سورۃ واقعه ۶ کښی ، څلورم نسف (الوځول) لکه په سورۃ طٰه ۱۰۵ کښی دی پنځم پشان دَ سراب جوړیدل لکه چه په دے ایت کښی دی .

۲۱ تا ۲۳ دا تخویف اخروی دےپه ذکر دَ لسوا حوالو دَ جهنم سره. مِرْصَادًا صیغه دَ ظرف ده یا مصدر میمی مبنی للمفعول دے بنا په اوله توجیه باندے مطلب ئے دا دے چه ملائک دَ جهنم انتظار کوی دَ کافرانو په جهنم کښی یا دَ جهنم دَپاسه په صراط باندے او بنا په دویمه توجیه معنیٰ دا چه جهنم تیار کړے شویدے دَپاره دَعذاب. لِلطَّاغِيْنَ هرهغه څوک چه تجاوز کوی دَ شرعی حدودو نه په عقیدہ یا په عمل کښی نو هغه طاغی دے. دا هر مشرك کافر منافق فاسق ته شامل دے. مَـَٔابًا دا بدل دے دَ مرصادًا نه او للطاغين په دے پورے متعلق دے . أَحْقَابًا جمع دَ حقب ده یو ټکړے دَ زمانے ته وئیلے کیږی او لفظ دَ ایام یا شهور یا سنة ئے نه دی وئیلی ځکه چه په دے لفظ کښی دیر هیبت دے بله وجه دا ده چه دَ احقاب انتهاء معلومه نه ده او دَ یوم او شهر او سنة انتها خو معلومه ده. او دَ دے په مقدار کښی مختلف اقوال دی یو دا چه اتیا کلونه حقب دے دویم قول څلویښت کاله دریم اویا کاله څلورم هزار میاشتے پنځم اویا زره کاله شپږم دیرش زره کاله صحیح دا ده چه دَ دے مقدار معلوم نه دے او جمع (احقاب) دَ دے انتها هم معلومه نه ده نو معلومه شوه چه دا کنایه ده دَ همیش والی نه. (فائده) بعض اهلِ علمو دَ دے نه ثابت کړیده چه جهنم به فنا کیږی لیکن دا قول دَ هغوی یو لغزش دے ، ځکه اول خو دَ حقب په مدت کښی اختلاف دے

باقی په بل مخ

لَا يَذُوقُونَ فِيهَا بَرْدًا وَّلَا شَرَابًا ﴿۲۴﴾

نه به څکي دوی په هغه کښې يخني او نه د څښکلو څه څيز.

إِلَّا حَمِيمًا وَّغَسَّاقًا ﴿۲۵﴾ جَزَآءً وِّفَاقًا ﴿۲۶﴾

مګر خوټکيدلے اوبه او ويني زوے بدله ده پوره.

إِنَّهُمْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ حِسَابًا ﴿۲۷﴾

يقيناً دوی وو چه نه يې لرلو اُميد د حساب.

وَّكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا كِذَّابًا ﴿۲۸﴾ وَكُلَّ شَيْءٍ

او دروغژن يې ګڼړل ايتونه زمونږ په دروغژن ګڼړلو. او هر يو څيز

په صحيح ستن سره يو مرفوع حديث په دے کښې ثابت نه دے دويم داچه اقوال پکښې متعارض موجود دی يو طرف ته ترجيح بغير د مرجح نه شي ورکيدلے دريم داچه جمع (احقاب) د پاره هم انتها نه ده معلوم څلورم داچه دا قول د دوی د صريح نصوصو نه خلاف دے لکه فلن نزيدكم الا عذابا، او خالدين فيها ابدا، خلود د مکين دلالت کوی په خلود د مکان باندے. او نور اهل علمو هم د دے تفصيل د دے په مناسب مواضعو کښې کړے دے.

۲۴ تر ۲۵ ۲۶ بَرْدًا په دے کښې ډير اقوال دی خوب، يخې اوبه، يخه هوا، راحت د زړه. إِلَّا حَمِيمًا وَّغَسَّاقًا اول د بَرْد نه استثناء ده او دويم د شَرَابًا نه او استثناء منقطع ده او تفسير د غسّاق سورة ص کښې ذکر شوے دے. جَزَآءً مصدر دے د فعل محذوف د پاره.

وِفَاقًا يو موافقت دا دے چه شرک ډير غټ ګناه دے او دا عذاب هم غټ دے. دويم د دوی عملونه هم ګنده وو نو عذاب يې هم ګنده دے او دا (مشرکان) هم ګنده دی.

۲۷ تر ۲۸ دا بيان د هغه عمل دے چه جزا ورسره موافق ده او دا رنګ دا ذکر د علت د عذاب دے او دا دواړه ذکر شوی عملونه د ټولو کفريانو او ګناهونو د پاره اصل منشاء ده. لَا يَرْجُونَ رجاء عقيدة

أَحْصَيْنٰهُ كِتٰبًا ﴿۲۹﴾ فَذُوْقُوْا فَلَنْ

(راګیر کړیدے هغه موږ په لیکلو سره ، نو او څکئ چرے نه

نَّزِيْدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا ﴿۳۰﴾ إِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ

زیاتوؤ موږ تاسو لره مګر عذاب - یقینًا متقیانو لره

مَفَازًا ﴿۳۱﴾ حَدَآئِقَ وَأَعْنَابًا ﴿۳۲﴾

ځائے دَ کامیابے دے ، باغونه او انګور .

ساتل او ویره کول او امید کول، او امید ساتل اګرچه ایمان نه دے لیکن نفي دَ امید نفي دَ یقین لره مستلزم ده. کِذَّابًا فِرَّاء وئیلي دي چه دا مصدر دَ فصیح لغت او دَ مبالغے دَ پاره استعمالیږي یعنی لوئے تکذیب ئے کړے دے. بِاٰیٰتِنَا ایاتونه دَ کتاب دَ الله تعالیٰ او دلیلونه دَ توحید او دَ اثبات دَ بعث بعد الموت.

۲۹ دا جمله معترضه ده جواب دَ سوال دے هغه دا دے چه دا عملونه خو دوی کړے دي لیکن کیدے شي چه دوی انکار اوکړي؟ حاصل جواب دا دے چه ټول اعمال دَ دوی الله تعالیٰ پوره لیکلي دي. کِتٰبًا دَ دے نه مراد لیکل دَ ملائکو دي په صحیفو دَ اعمالو کښ او الله تعالیٰ ته نسبت په دے وجے سره دے چه دَ هغه په امر سره دي یا مراد دَ دے نه لیکل دي په تقدیر کښ چه دَ هغے تبدیلي نشي کیدے او کِتٰبًا مصدر مفعول مطلق دے دَ احصیناه دَ پاره ځکه معنیٰ دَ دواړو شریکه ده یا په تقدیر دَ فِي سره ظرف دے.

۳۰ دا تفریع ده په مخکښ عملونو سره دَ لیکلو دَ هغے نه چه هغه سبب دَ عذاب دے. فَذُوْقُوْا یعني دَ عذاب خوند (درد) او څکئ نو مفعول پټ دے. فَلَنْ نَّزِيْدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا په دے کښ ډیر تاکید دے یو په حرف دَ لَنْ سره دویم التفات دَ غائب نه مخاطب ته. دریم نفي او اثبات دَ پاره دَ حصر. او دا دلیل دے چه عذاب دَ کافرانو به نه منقطع کیږي نو جهنم به نه فنا کیږي او دَ دے زیادت کیفیت په سورة النساء ۵۶ او سورة اسراء ۹۷ کښ ذکر کړیدے.

۳۱ ۳۲ ۳۳ ۳۴ په دے ایاتونو کښ ذکر دَ بشارت دے (پاتے په بل مخ)

وَّكَوَاعِبَ اَتْرَابًا ﴿۳۳﴾ وَّكَاْسًا دِهَاقًا ﴿۳۴﴾

او ځوانې جينکۍ همزولې دَ دوی ، او پيالې ډکې .

لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّلَا كِذّٰبًا ﴿۳۵﴾

نه به اوری دوی په هغې کښې بې فائدې خبرې او نه دروغژن کول .

روستو دَ تخويف نه او دا هم په لس طريقو سره دے مَفَازًا دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دے چه مراد په دے سره مکان دَ سير او دَ تنزه دے او روستو دَ هغې بيان دے ځکه حرف عاطف ئې نه دے ذکر کړے. او په معنیٰ دَ ځائے دَ نجات او دَ کاميابئ هم کيدے شی.

حَدَآئِقَ جمع دَ حديقة دَه دَکم باغ نه چه ديوال (احاطه) چاپيره وی نو ورته حديقه وئيلے شی بغير دَ احاطے نه هغې ته حديقه نشی وئيلے ، امام بخاری هم دا خبره ذکر کړيده - او دا لفظ شامل دے بے شمار قسمونو دَ ميوؤ او دَ اونو بوټو نه .وَاَعْنَابًا دا تخصيص بعد التعميم دے او دا ئې جمع ذکر کړه اشاره ده چه دَ دے هم بے شماره قسمونه دی .

وَكَوَاعِبَ جمع دَ کاعب ده هغه زنانه چه نوے بالغه شی او سينې ئې په ځائے باندے اولاړے وی يعنی چا مَسح کړے نه وی ځکه چه روستو دَ مَسح کولو نه هغه خکته اويزاندے شی او دا دَ نورو مرضونو نه هم بچ وی. اَتْرَابًا دا سے په سورة واقعه ۳۷ کښں تير شوے دے.

وَكَاْسًا دِهَاقًا دَ دهاق يو معنیٰ ده ډکے نو دا وَكَاْسًا دَپاره تاکيد دے ځکه کاس هم ډکے پيالے ته وئيلے شی دويمه معنیٰ نچوړ شوے صفا نو مراد دَ کاس نه شراب دی دريمه معنیٰ پرله پسے خلورمه معنیٰ مزيدار به وی.

۳۵ لَغْوًا هره بے فائدے خبره که نور نقصان پکښں وی او که نه وی، او دا جمله کنايه ده دَ استراحت او دَ آرام نه ځکه خوک چه دَ بل چا دَ طرف نه لغويات بے فائدے خبرے اوری يا دَ دهٔ دَ يو خبرے تکذيب او انکار کيدے شی نو دا سے شخص خفه او غمژن وی او جنت کښں دا دواړه نيشته دے . هاں دنيا کښں حق پرستو دا دواړه خبرے دَ منکرينو نه اوريدلے .

جَزَآءً مِّنْ رَّبِّكَ عَطَآءً حِسَابًا ﴿٣٦﴾

بدله ده دَ طرف دَ رب ستا نه بخشش ډېر

رَّبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا

رب دَ اسمانونو او دَ زمکې دے او دَ هغې چه په مینځ دَ دواړو کښ دی

الرَّحْمٰنِ لَا يَمْلِكُوْنَ مِنْهُ خِطَابًا ﴿٣٧﴾

رحمان ذات دے نه به لري وس دَ هغه سره دَ خبرو کولو۔

يَوْمَ يَقُوْمُ الرُّوْحُ وَالْمَلٰٓئِكَةُ صَفًّا

په هغه ورځ چه اودرېږي روح او ملائک صفونه۔

٣٦ جَزَآءً دا مفعول مطلق دے دَ فعل محذوف دَ پاره (جازاهم الله).
مِنْ رَّبِّكَ يعنې دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه احسان دے په هغه بانده وجوب نیشته لکه چه لفظ عطاء هم په دے بانده دلیل دے۔
حِسَابًا کافی او ډېر نه ورتیلے کېږي یا په معنیٰ دَ مقدار دَ حسنا تو دَ دوی سره دے۔

٣٧ رَبِّ په زیر سره بدل دے دَ ربك نه یا صفت دے. او الرَّحْمٰنِ هم بدل یا صفت دے. دَ دے سورت په اول کښ لس انعامات دنیویه ذکر شول هغه دلیل دے په ربوبیت او رحمانیت دَ الله تعالیٰ بانده
لَا يَمْلِكُوْنَ مِنْهُ خِطَابًا مراد دَ خطاب نه مطلق خبرے کول دي یا خبره دَ سفارش دَ چا دَ پاره، یا مراد دَ دے نه الله تعالیٰ نه امر او حکم کول دي په یکښ هیڅوک دَ هیڅ خیرے طاقت او اختیار نه لري هاں شفاعت بالاذن ترینه مستثنیٰ دے لکه سورة بقره ٢٥٥ او سورة هود ١٠٥ او په دے ایت کښ توحید دَ ربوبیت او رد دَ شفاعت شرکیه (قهریه) دے۔ لَا يَمْلِكُوْنَ ضمیر ټول اهل السموات والارض ته راجع دے او لفظ دَ مِنْهُ متضمن دے معنیٰ دَ دفع کولو لره یعنی دا سے خطاب نشي کولے چه دَ ځان نه څه تکلیف دفع کړي۔

لَا يَتَكَلَّمُوْنَ اِلَّا مَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ

خبرې به نشي کولے مګر هغه څوک چه اذن (اجازت) کړے وي هغه ته رحمٰن ذات

وَقَالَ صَوَابًا ﴿٣٨﴾ ذٰلِكَ الْيَوْمُ الْحَقُّ

او وئیلې وي حقه خبره . دغه ورځ حقه ده

۳۸ يَوْمَ دا ظرف متعلق دے په لا يملكون مخکښ پورے یا په لا يتكلمون (اتلونکي) پورے او په دے کښ عظمت شان دَ الله تعالیٰ ذکر کیږي او ورسره دَ قیامت هیبت هم ذکر کوي. الرُّوْحُ په دے کښ قرطبی اته اقوال نقل کړے دي.

ع۱ ارواح دَ بني آدم . (روح) اسم جنس دے مراد تري نه جمع ده،

ع۲ جبرئیل علیه السلام چه هغه ته روح القدوس او روح الامین هم وئیلې شوے دے.

ع۳ یو ملك دے دَ ملائکو نه چه هغه دَ ډیر غټ والي دَ وجے نه په مستقل صف وي.

ع۴ ټول بنوآدم مراد دي.

ع۵ دا مستقل لښکر دے دَ الله تعالیٰ دَ لښکرو نه غیر دَ ملائکو نه.

ع۶ قرآن مراد دے لکه چه په سورة شوریٰ ۵۲ کښ دي.

ع۷ اشراف دَ ملائکو.

ع۸ مستقل مخلوق دے په شکل دَ بنوآدم لیکن غیر دي دَ هغوی نه. ابن جریر په دے کښ توقف کړے دے او ابن کثیر څلورم قول غوره کړیدے او اکثرو مفسرینو دویم قول غوره کړے دے.

صَفًّا مصدر دے په معنیٰ دَ جمع سره یعني صفوفا یا په معنیٰ دَ حال دے یعني مصصفین. بیا په دے کښ دوه احتمالونه دي اول دا چه هر یو به مستقل صف وي نو ډیر صفونه به وي دویم دا چه ټول به یو صف شي. لَا يَتَكَلَّمُوْنَ الخ دلته مراد دَ بل چا دَ پاره شفاعت کول دي او په لا يملكون منه خطابا کښ عام مراد وو یا دَ ځان دَ پاره څه خبره کول مراد وو او دا سے په سورة هود ۱۰۵ کښ هم تیر شویدي. او په حدیث

فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰی رَبِّهٖ مَاٰبًا ﴿۳۹﴾ اِنَّآ

نو څوک چه غواړی او د دے نیسی رب خپل ته لار د ورتللو۔ یقینًا موږ

اَنْذَرْنٰكُمْ عَذَابًا قَرِیْبًا ۚۖ یَّوْمَ یَنْظُرُ

یره درکړیده تاسو ته د عذاب نږدے نه په هغه ورځ چه او به وینی

الْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ یَدٰهُ وَیَقُوْلُ

هر سړے هغه عمل چه مخکښ لیږلے دے لاسونو د ده او وائی به

الْكٰفِرُ یٰلَیْتَنِیْ كُنْتُ تُرٰبًا ﴿۴۰﴾ ع

کافر هائے ارمان دے چه وے زهٔ خاورے۔

کښې راغلي دي چه خبرے به نشي کولے هیڅوک سیوا د رسول نو نه۔
وَقَالَ صَوَابًا مراد دَ دے نه حقه وینا کول دي نو کلمه دَ توحید وئیل په دنیا کښې او صرف دَ مؤمن دَپاره شفاعت کول په آخرت کښې دا په صواب کښې داخل دي۔ نو دَ شفاعت دَپاره ئې دوه شرطونه ذکر کړل اول شرط اذن دَ الله تعالیٰ دویم شرط صواب وینا کول چه توحید ئې په دنیا کښې بیان کړيوی یا صرف دَ مؤمن دَپاره شفاعت کوی۔
۳۹ مَاٰبًا ځائے دَ واپس کیدلو خپل رب ته او هغه حاصلیږی په تصدیق دَ دے ورځې سره او تیاری کول په عمل صالح سره دَپاره دَ دغه ورځې او په دے آیت کښې ئې دَ انسان دَپاره مشیت ثابت کړے دے اګرچه دا مشیت مقیّد دے په مشیت دَ الله تعالیٰ پورے په قرینه دَ سورة مدثر ۵۶ سورة دهر ۳۰ سورة تکویر ۲۹ سره۔
۴۰ دا تاکید دے دَ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اه یعنی الله تعالیٰ ته رجوع اوکړئ دَ دے وجې نه چه عذاب قریب راروان دے۔
عَذَابًا قَرِیْبًا مراد دَ دے نه عذاب دَ قیامت دے یا عذاب دَ قبر په دلیل دَ مابعد سره، عذاب دَ دنیا مراد نه دے او هر هغه څیز چه راتلونکے وی نو قریب وی او قیامت ته قریب ریاتے په بل مخ)

وئیلې شوې دې په سورة معارج ۸ کښې.
اَلْمَرْءُ مراد ذَ دې نه هر شخص دې مؤمن او غیر مؤمن هر یو به خپل عملونو لره اوینې لکه په سورة زلزال ۸ کښې او سورة کهف ۴۹ او سورة قیامت ۱۳ کښې دی.
وَیَقُوْلُ الْکٰفِرُ الخ یعنې هر کله چه عذاب ونه او خپل ناکاره اعمال اوینې نو داسې ارمانونه به کوی،
کُنْتُ تُرٰبًا په دې کښې دوه اقوال دی اول داچه په دنیا کښې خاورې وې او انسان او مکلف نه وې دویم قول داچه خاورو سره خاورې وې یعنې دوباره ژوندون نه وې او ذَ دې تائید په سورة نساء ۴۲ کښې تیر شوې دې.

الحمد لله ختم شو تفسیر ذَ سورة النبأ په توفیق ذَ
ذَ الله تعالیٰ سره

| ایاتها ۴۶ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | سُوۡرَةُ النّٰزِعٰتِ مَكِّيَّةٌ |
| --- | --- | --- |
| ۲ رکوعاتها | | |

وَالنّٰزِعٰتِ غَرۡقًا ۝۱ وَّالنّٰشِطٰتِ نَشۡطًا ۝۲

قسم دے په هغه ملائیکو چه راکاږی روح د کافرانو په سختئ سره. او قسم دے په هغه ملائیکو چه پرانځی روح د مؤمنانو په اسانئ پرانستلو

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

**سورة النازعات** او د دے نور نومونه، سورة الساهرة، سورة الطآمّة

**ربط د دے سورت** د ماقبل سره په څو وجوهو دے اوله وجه مخکښ سورت کښ سخت زجر وؤ په منکرینو د بعث باندے نو اوس په دے سورت کښ تخویف دنیوی دے په واقعه د فرعونیانو سره. دویمه وجه په هغه سورت کښ اثبات د بعث د پاره عقلی دلیلونه وؤ نو په دے سورت کښ سره د دلیلونو نه شواهد هم ذکر کوی. دریمه وجه دا ده چه په هغے سورت کښ تخویف او بشارت طاغینو او متقینو ته په ترتیب سره ذکر کړے وؤ نو په دے سورت کښ د طاغی او د متقی تعریف ذکر کوی هم په دغه ترتیب سره. څلورمه وجه دا ده چه د هغه سورت په اول کښ زجر وؤ په سوالونو کولو باندے او د دے سورت په آخر کښ دغسے زجر دے.

**دعوی د دے سورت** اثبات د قیامت دے په شواهدو او په هیبتونو او په تخویف دنیوی او دلیلونو سره او اسماء حسنٰی پکښ درے او صفاتِ فعلیه پکښ لس ذکر دی.

**خلاصه د دے سورت**. اول ئے پنځه شواهد ذکر کړیدی بیا پنځه احوال د حشر تر ۱۲ پورے بیا پنځه آیاتو کښ زجرونه دی بیا تخویف دنیوی دے په واقعه د فرعونیانو سره په لس آیاتونو کښ بیا لس عقلی دلیلونه دی تر ۳۳ پورے بیا تخویف اخروی دے په ذکر د څلورو احوالو د قیامت، سره د ذکر د سبب نه چه طغیان دے بیا بشارت دے په ذکر د سبب د هغے سره راپاتے په بل مخ)

وَالسّٰبِحٰتِ سَبْحًا ﴿۳﴾ فَالسّٰبِقٰتِ سَبْقًا ﴿۴﴾

او قسم دے په هغه ملائکو چه لامبو وهی لامبو وهل، بیا مخکښ کیږی حکم دَ الله تعالیٰ په مخکښ کیدلو سره

ترسلے پورے بیا زجر دے په څلورو طریقو سره په سوال او جواب سره
تر اخره دَ سورت پورے۔
تفسیر: ته ۵ پورے دا قسمونه دَ پاره دَ شهادت دی او مقسم به
هغه څیزونه دی چه دا پنځه دَ هغوی صفتونه دی او صفتونه ئے په ځائے
دَ موصوف بانde قائم کړیدی او صفتونه ئے دَ دے وجے نه ذکر کړی
دی چه دخل په شهادت کښ دغه صفتونو لره دے صرف ذواتو لره نه
دے۔ بیا په دے کښ اختلاف دے دَ مفسرینو بعضو وئیلی دی چه دا
صفتونه دَ یو موصوف دَ پاره دی او عطف دَ صفت په صفت بانde
مشهور دے نو بِنا په دے بانde قسم یو دے یعنی اول واو قسمیه
دے او روستو دوه واوونه او دوه فاء گانے دَ پاره دَ عطف دی.
او بعضو وئیلی دی چه دا صفتونه دَ جدا جدا موصوفاتو دی نو پنځه
قسمونه شول. بیا په اول قول سره (چه موصوف ئے یو شی) نو په
هغے کښ مشهور پنځه اقوال دی اول دا چه دا ټول صفتونه دَ ملائکو
دی چه په قبض دَ ارواحو بانde مقرر دی دویم دا چه صفتونه دَ
حمله کوونکو اسونو دی لکه والعادیات اه پشان. دریم دا صفتونه دَ
نیکانو خلقو دی چه دعوت او تبلیغ دَ دینِ حق کوی. څلورم دا صفتونه
دَ ستورو دی پنځم دا صفتونه دَ ارواحو دَ نیکانو خلقو دی او دَ دے
نه علاوه نور اقوال هم غیر مشهور شته دے. دَ مفسر ابن جریر
رائے دا ده چه دلیل قطعی دَ هیڅ یو موصوف په تعیین بانde نیشته
نو چه دا صفتونه دَ هر موصوف سره مناسب وی (او دَ قرانِ شان
نه لرے نه وی) نو هغه ټول مراد کیدے شی او دَ مفسر ابن عطیه
نه علامه الوسی نقل کړیدی چه ما ته خلاف نه دے معلوم په دے
خبره کښ چه مراد په دے سره ملائک دی.
او الوسی وئیلی دی چه پته دِ دے نه وی چه اکثر دَ دے اقوالو لائق نه
دی دَ شان دَ عظمت دَ قران سره او پوره مناسبت نیشته دَ هغے دَ

# فَالْمُدَبِّرٰتِ اَمْرًا ۝۵ يَوْمَ تَرْجُفُ

| بیا انتظام کوونکی دی دَ بعض کارونو ۔ | په هغه ورځ چه اوبه لړزیږی |
|---|---|

قرآن سره خصوصًا حمل کول دَ دے صفاتو په ستورو بانده ےدَ نجومیانو او فلاسفو دَ قولِ باطل تائید کوی چه هغوی ستورو لره تاثیر ثابته وی او دارنګ حمل کول په ارواحو دَ نیکانو بزرګانو بانده ے دَ کم عقلو خلقو دَ غلطے عقیده ے تائید کوی چه هغوی عقیده لری چه اولیاءِ کرام روستو دَ مرګ نه هم په عالم کښ تصرّف کوی یعنی بیماران جوړوی غرق کیدونکی له نجات ورکوی او مدد کوی په مقابله دَ دشمنانو کښ په دے عقیده ے سره چه الله تعالیٰ دا تصرفات دوی ته سپارلے دی۔ او بعضِ دا خاص کوی په پنځه اولیاؤ پورے او دا ټول جهل دے (بلکه صریح شرک دے ځکه چه داخو مخلوق لره دَ الله تعالیٰ په صفتونو کښ برخه ورکوی)۔

سوال ۱:۔ امام رازی په تفسیرِ کبیر کښ وئیلے دی چه دا ارواح دَ بزرګانو چه دَ بدنونو نه جدا شی نو دَ دوی آثار او احوال په دنیا کښ ښکاره کیږی بلکه کله یو مرشد خپل ژوندی مرید ته دَ نفعے خودنه کوی۔

جواب:۔ دا قول دَ رازی بے دلیله دے دَ قرآن کریم دَ توحید دَ نصوصو نه صریح خلاف دے هغه نصوص چه دلالت کوی چه پیغمبران اولیاء روستو دَ مرګ نه دَ دنیاوالو په حال بانده ے خبر نه دی لکه سورۃ مائده ۱۰۹ کښ دی ۔ او دَ دوی ارواح دنیا ته واپس نشی راتللے لکه په سورۃ انبیاء ۹۵ او سورۃ یٰس ۳۱ کښ دی او نور ډیر آیاتونه چه صریح دی په نفی دَ مِلک او تصرف کښ دَ غیر الله نه نو دَ هغې نصوصو په خلاف کښ قول دَ هیڅ امام او مفسر صحیح نه دے که رازی وی او که غزالی وی او که نور وی او عجیبه دا ده چه رازی دَ دے په تائید کښ قول دَ جالینوس او قول " اذا تحیرتم فی الامور فاستعینوا باصحاب القبور" ذکر کړے دے جالینوس یونانی حکیم وو دَ هغه دَ اسلام ثبوت هم نیشته او دا حدیث موضوعی دے په دے بانده ے بحث په التبیان کښ ما ذکر کړے دے رپاتے په بل مخ)

لکه مجموعة الفتاوی کښې مولانا عبدالحیؒ او البلاغ المبین کښې شاه ولی اللهؒ او نورو ډیرو اهلِ علمو دے ته موضوعي وئیلي دے او هر کله چه موضوعي دے نو دَ دے تاویل کول هم ناجائز دی او دَ دے وجے نه مفسر آلوسی وریانده رد کړے دے لکه چه مخکښې ذکر شو.

سوال ۲:- دَ مفسر آلوسی دَ عبارت معنیٰ دا ده چه توقف (شک) نه دے پکار په دے خبره کښې چه کله الله تعالیٰ کرامت ورکوی بعض اولیاؤ لره روستو مرګ دَ هغوی نه نو جوړه وی مریض او خلاصوی غرق شوے او یاران دروی وغیره وغیره او کله ښکاره کوی الله تعالیٰ مثال په دَ شکل دَ هغه ولی نو کوی څه چه دَ الله تعالیٰ نه دے شخص سوال کړے وی په حرمت دَ هغه ولی سره ؟

جواب:- دَ دے هم اول جواب هغه دے چه دَ مخکښې سوال جواب څنګه اوشو چه علامه آلوسی په دے باندے هیڅ دلیل شرعي نه دے ذکر کړے او دَ دے خلاف ئے په تفسیر دَ سورة مائده ـ بحث الوسیله کښې وئیلي دی چه دهوکه دِ دے نه کړی تا لره چه دَ مخلوق نه استغاثه غوختونکے چه کله دَ هغه حاجت پوره کړے شی او مقصد ئے پوره کړے شی نو یقیناً دا ابتلاء او امتحان دے دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه او کله شیطان په شکل دَ ولی باندے مدد غوختونکی ته ښکاره شی نو دِ دے ګمان کوی چه دا دَ دهٔ کرامت دے، نه نه بلکه شیطان دهٔ لره ګمراه کړے دے ص۱۲۹/۶ روح المعانی او کوره چه دا عبارت بالکل متناقض دے دَ عبارت مخکښې سره نو معلومه شوه چه په دے مقام کښې مفسر صاحب لغزش کړے دے یا دَ دهٔ په کتاب کښې بعضِ باغیانو دَ س کړے دے. او بله وجه دا ده که چرے دا خبره صحیح شی نو دا رنګ دَ بت پرستو حاجتونه هم الله تعالیٰ پوره کوی نو هغه بت پرست به هم او وائی چه دا کرامت دَ دے بت دے العیاذ بالله په دے سره دَ شرک دروازه کولاویږی.

نو معنیٰ دَ دے آیاتونو بیا په اول قول چه صفات دَ ملائکو دی دا ده، "قسم دے په هغه ملائکو باندے چه راکاږی ارواح دَ کافرانو په ډیرے سختئ سره" نو غرقاً مفعول مطلق دے من غیر لفظه. او قسم دے

الرَّاجِفَةُ ﴿٦﴾ تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ ﴿٧﴾ قُلُوبٌ

| زړونه يه | . | راتلونکے دوسےتو ورپسے راشي | . | لړځيدونکے |
|---|---|---|---|---|

په هغه ملائکو باندے چه را پرانځي ارواح دَ مؤمنانو په اسان پرانستلو سره او قسم دے په هغه ملائکو باندے چه ځي راځي په مينځ دَ اسمان او زمکه کښ په اسان تلو راتلو سره (پښان دَ لامبو وهلو په اوبو کښ) نو نشطًا او سبحًا هم مفعول مطلق دی پس قسم دے په هغه ملائکو چه سبقت کوی حکم دَ رب ته په سبقت کولو سره (سبقًا هم مفعول مطلق دے) پس قسم دے په هغه ملائکو باندے چه تدبير کوی دَ بعض کارونو يا په امر دَ الله تعالیٰ سره، نو امرًا مفعول بهٖ يا مفعول لهٗ دے او تدبير دَ ملائکو دا دے چه الله تعالیٰ په کومو کارونو باندے مقرر کړے وی نو هغه پوره پوره ادا کوی لکه چه يو نوکر ته خوک يو کار (ډيوټي) اوسپاری او هغه يې ادا کوی. دَ تدبير نه مراد تصرفات دَ الوهيت نه دی.

فائده :- اول درے صفات يې په واو سره ذکر کړے وځکه دَ هغوی يو بل سره ارتباط او قرب نيشته او روستو دواړو کښ فاء راوړے ده ځکه چه دغه دوه حالتونه پيوست او زر دی دَ ما قبل سره.

جواب قسم دَ دے پټ دے چه روستو ايا تونه په هغې باندے دلالت کوی (لتبعثن ولتُحاسبن) يعنی دغه کارونه دَ ملائکو دَ ارواحو سره دليل دے چه دا ارواح په اختيار دَ الله تعالیٰ کښ دی کله چه اوغواړی نو بدان ته به يې واپس کړی دَ پاره دَ جزاء او حساب کتاب.

يَوْمَ دا ظرف دے دَ جواب قسم چه پټ دے. الرَّاجِفَةُ کله چه ترجف متعدی شی او مفعول يې پټ وی نو راجفه په معنیٰ دَ اولے شپيلۍ ده چه هغه به ټوله زمکه او ټول غيزونه او جرقوی او کله چه ترجف لازمی وی نو الراجفه نه مراد زمکه ده چه په هغې کښ به لويه زلزله راشی. رَادِفَةٌ دويمه شپيلۍ ده دَ پاره دَ بعث بعد الموت او په حديث سره ثابت دی چه دَ دواړو په مينځ کښ به څلويښت کاله فاصله وی پدے مينځ کښ نور څه نيشته دَ دے وجے نه دويمے شپيلۍ ته يې رادفه اُوئيل.

يَوۡمَئِذٍ وَّاجِفَةٌ ﴿۸﴾ اَبۡصَارُهَا خَاشِعَةٌ ﴿۹﴾

په دغه ورځ درزیدونکے دی ، سترګے به د دهغوی کوزے (زلالے) وی .

يَقُوۡلُوۡنَ ءَاِنَّا لَمَرۡدُوۡدُوۡنَ فِى الۡحَافِرَةِ ﴿۱۰﴾

وائی به دوی آیا موږه به واپس کړے شو زوړ حالت ته -

ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً ﴿۱۱﴾ قَالُوۡا تِلۡكَ

آیا کوم وخت چه موږ هډوکی زاړه شو . وائی دوی دا په

اِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ ﴿۱۲﴾ فَاِنَّمَا هِىَ زَجۡرَةٌ

دغه وخت دوباره راتلل دی تاوانی - نو یقینًا دا خو چغه

۸ ۹ اشاره ده چه اثر دَ هیبت دَ هغه ورځ په زړونو او سترګو باندے هم دے ۔ قُلُوۡبٌ نکره ده مراد دَ دے نه بعض قلوب دی یعنی زړونه دَ کافرانو ۔ وَّاجِفَةٌ ویریدونکی ، ګړزیدونکی . دَ خپل ځائے نه لرے کیدونکی ټختیدونکی ۔ اَبۡصَارُهَا ضمیر راجع دے قلوب ته او مضاف محذوف دے یعنی اَبۡصَارُ اَصۡحَابِهَا ۔ خَاشِعَةٌ کوزے ، دَ لیلے ، عاجزی کوونکے .
۱۰ دا زجر دے په انکار دَ بعث بعد الموت سره نو دا سبب دے دَ هیبت دَ زړونو او دَ سترګو چه مخکښ ذکر شول ۔ الۡحَافِرَةِ اولنے حالت دُنیا ، زمکه چه په هغے کښ قبرونه کنستلے کیږی ، او دَ جهنم ، اول قول غوره دے .
۱۱ ۱۲ دا هم زجر دے او زیات تعجب دے په نسبت دَ ماقبل سره.
نَّخِرَةً زاړه ، ذرّے ذرّے ، دَ ذُخالی -
خَاسِرَةٌ " واپس کیدل تاوانی دی " دا په طریقه دَ استهزاء سره وائی چه هرکله دنیا ته واپس راشو نو زمونږ مالونه کورونه وغیره په نه وی نو دا خو به زمونږ نقصان وی ۔ یا داچه دا به خسران وی په هغه چا باندے چه اوس دَ هغے تکذیب کوی ۔ یا واپس کیدل اود ته واپسی دَ خسران ده ۔ یا خاسرة په معنی دَ کاذبة باطلة سره دے

وَّاحِدَةٌ ﴿۱۳﴾ فَاِذَا هُمْ بِالسَّاهِرَةِ ﴿۱۴﴾ هَلْ

یوه دغه • نو دغه وخت به دوی په ډاګه وی - یقیناً

اَتٰىكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ﴿۱۵﴾ اِذْ نَادٰىهُ رَبُّهٗ

راغلی دے تا ته خبر د موسیٰ علیه السّلام - کله چه آواز وکړو هغه ته رب د هغه

بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ﴿۱۶﴾ اِذْهَبْ اِلٰى

په میدان پاک کښې چه طوی دے - لاړ شه

۱۳ تا ۱۴ دا تخویف دے په اثبات د قیامت سره په آسانه طریقه - زَجْرَةٌ آواز په زور سره مراد تری نه دویمه نفخه (شپیلئ) ده او په دے تعبیر کښې اشاره ده چه په دے آواز سره به ټول مخلوق او دریږی او روستو به نشی تللے او محشر ته به جمع کیږی.

وَاحِدَةٌ یعنی دویم کرت ته حاجت نیشته دے لکه په سورة نحل ۷۷ او سورة قمر ۵۰ کښې ذکر شویدی.

بِالسَّاهِرَةِ مخ د زمکے چه صاف میدان به وی یعنی د ختمے د زمکے نه به بهر میدان ته را اوځی چه نه به غرونه او ډیرئے وی او نه به کندے وی لکه سورة کهف ۴۷ او سورة طه ۱۰۸ کښې ذکر شوے دی.

۱۵ تا ۱۶ په دے واقعه ذکر کولو کښې روستنو منکرینو ته تخویف دنیوی دے په اهلاک د فرعون سره د آل د هغه نه اګرچه ډیر طاقتور وو یعنی دا منکرین به د عذاب د الله تعالیٰ نه بچ نشی لکه چه فرعون بچ نه شو او دا رنګ په دے کښې تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته او دا رنګ دا د اثبات د بعث بعد الموت د پاره بله طریقه ده. هَلْ استفهام تقریری د تاکید د پاره دے یعنی په معنیٰ د قد سره دے یعنی د دے سورت د نزول نه مخکښې هم دا قصه بار بار بیان شویده. اِذْ متعلق دے په لفظ حدیث پورے، نَادَاهُ نداء او کلام صفت د الله تعالیٰ دے. بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى لکه چه سورة طه ۱۲ کښې ذکر دی طوی د هغې نوم وو چه په هغې کښې برکات رانغختلے شوی دی.

فِرْعَوْنَ اِنَّهٗ طَغٰی ﴿۱۷﴾ فَقُلْ هَلْ لَّكَ

فرعون ته یقینًا هغه سرکشي کړېده ـ نو اُوایه ایا ته غواړې

اِلٰٓی اَنْ تَزَكّٰی ﴿۱۸﴾ وَاَهْدِیَكَ اِلٰی رَبِّكَ

دا چه پاک شې ، او لار اوښایم تاته طرف دَ رب ستا ته

ک ۱۸ ـ ۱۹ دا تفصیل دَ نداء دے . فِرْعَوْنَ، مراد ورسره قوم دَ هغه هم دے لیکن تخصیص ئې دَ هغه دَ دے وجے نه اوکړو چه هغه مقتدا وو او هغه خلقو لره دَ هر دین نه منع کړے وو ماسیوا دَ خپل دین نه او دا دَ هغه طغیان دے چه په اِنَّهٗ طَغٰی کښ ذکر دے دَ حد نه تجاوز کول په کفر او شرک سره او په خلقو باندے ظلم کولو سره او دَ حق دین نه په منع کولو سره .

فَقُلْ هَلْ لَّكَ دا طریقه دَ دعوت ده په نرمه لهجے سره هَلْ لفظ دَ پاره دَ ترغیب دے او طلب دَ اتیان دے حق ته.

اِلٰٓی اَنْ تَزَكّٰی لفظ دَ الی دلالت کوی په تضمین دَ ترغیب او دعوت یعنی اُرَغِّبُكَ وَاَدْعُوْكَ اِلٰٓی اَنْ تَزَكّٰی. تزکیه پاک والی باطن ته وئیلے شی او هغه حاصلیږی په توحید سره اشاره ده چه شرک او کفر پلیتی ده دَ هغے نه پاکوالے حاصلیږی په ایمان او توحید سره او دا تزکیه مستلزم ده ـ بچ کیدلو لره دَ عذاب نه.

وَاَهْدِیَكَ اِلٰی رَبِّكَ اشاره ده چه فرعون په شرک فی الربوبیت کښ مبتلا وو نو هغه ته دلیلونه دَ توحید دَ ربوبیت پیش کول ضروری وو او معرفت دَ رب تعالیٰ مستلزم وی خشیت لره دَ دے وجے نه فَتَخْشٰی ئې په فاء سره ذکر کړو لکه چه اِنَّمَا یَخْشَی اللّٰهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا دلیل دے په دے خبره باندے.

نو وجه دَ ترتیب دَ تزکیه او دَ هدایت دا ده چه تزکیه اشاره ده تخلیه ته او هدایت اشاره ده تحلیه ته یعنی اول شرک دَ عقیدے نه ویستل دی او بیا په توحید سره ښائسته کول دی او دَ دے نه روستو مرتبه دَ خشیت ده او خشیت مستلزم دے په ټول دین

فَتَخْشٰى ﴿۱۹﴾ فَاَرٰىهُ الْاٰيَةَ الْكُبْرٰى ﴿۲۰﴾

نو او به یریږې . نو اوخو دله ئې هغه ته نخښه لويه .

فَكَذَّبَ وَعَصٰى ﴿۲۱﴾ ثُمَّ اَدْبَرَ يَسْعٰى ﴿۲۲﴾

نو تکذيب ئې اوکړو او نافرماني ئې اوکړه . بيا ئې شا اوکړځوله کوشش ئې کوؤ .

فَحَشَرَ فَنَادٰى ﴿۲۳﴾ فَقَالَ اَنَا

نو راجمع ئې کړل (ساحران) نو آواز ئې اوکړو . او ئيل ئې زه ئې

بائدے استقامت لره ځکه چه په دے کښ امتثال دَ اوامرو اجتناب دَ منهياتو داخل دے .

۲۰ دَ دے ایت نه دَ فرعونيانو لس حالات ذکرکوی (طريقه دَ انکار دَ هغوی او عذاب) . اَلْاٰيَةَ الْكُبْرٰى دا اسم جنس دے مراد دَ دے نه هغه ټول نهه معجزات دی چه موسٰى عليه السلام راوړے وُو اوبعض مفسرينو داخاص کړے دے معجزه دَ عصا پورے چه هغه په ظاهر کښ يوه معجزه وه او په اصل کښ ډيرو معجزاتو ته شامل وه (انقلاب دَ جنس ، حيات په جماد کښ ، او اجزاء ډيريدل ، تيرول دَ ډيرو څيزونو ، لوئے قوت او غلبه حاصليدل) نو معلومه شوه چه دا لويه معجزه وه دليل دے په نبوت دَ موسٰى عليه السلام او دليل دے په عظيم قدرت دَ الله تعالٰى بائدے .

۲۱ ۲۲ ۲۳ كَذَّبَ وَعَصٰى تکذيب په ژبه او عصيان په عمل سره يا تکذيب دَ نبوت دَ موسٰى عليه السّلام او عصيان دَ الله تعالٰى .

ثُمَّ اَدْبَرَ دَ خپلے ګمراهئ نه روستو دَ نورو خلقو دَ ګمراه کولو کوشش کوی ضَالّ او مُضِلّ وُو . اَدْبَرَ شا ئې کړله حق نه يا شا ئې اوکرځوله موسٰى عليه السّلام نه يعنی هغه سره ئې خيرے کول پرېخودل او اراده دَ مقابلے ئې اوکړه يا شا ئې اوګرځوله دَ وجے دَ ويرے دَ ثعبان نه .

يَسْعٰى په اول دوه توجيهاتو (په ادير) کښ معنٰى دا ده چه کوشش ئې شروع کړو دَ پاره دَ مقابلے کولو او دَ پاره دَ جمع کولو دَ ساحرانو او بنا په دريمه توجيه پا ندے مراد دا دے چه منډے وهلے دَ پاره دَ بچ کيدلو دَ ښامار نه . فَحَشَرَ يعنی خلق ئې راجمع کړل دَ نداء (پاتے په بل مخ)

رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى ﴿٢٤﴾ فَاَخَذَهُ اللّٰهُ نَكَالَ

رب یم ستاسو اوچت ـ نو او نیوۀ دۀ لره الله تعالیٰ په سزا

الْاٰخِرَةِ وَالْاُوْلٰى ﴿٢٥﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً

دَ اخرت او دَ دُنیا سره ـ یقیناً په دیکښې عبرت دے

(آواز) اورولودَ پاره. یا ساحران یُ راجمع کړل دَ سحر کولو دَ پاره یا یُ لښکرے راجمع کړلے.

ف٢٤ ابن کثیر ذکر کړیدی چه دا کلمه دَ فرعون دَ هغه کلمے نه چه په سورۃ قصص ف٣٨ کښې ذکر ده څلویښت کاله روستو ده دَ هغه کلمے مطلب دا وو چه فرعون شرك فی الالوهیت کوو او دَ دے کلمے مراد دادے چه دے مشرك فی الربوبیت وو.

او رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى نه یُ مراد دا وو چه دنیا خو صرف مصر دے او دَ دے ټول تصرفات او انتظامات زما په اختیار کښې دی زما نه بره بل تدبیر کوونکے نیشته یعنی دَ الله تعالیٰ دَ تصرف او تدبیر کولو نه یُ انکار اوکړو او بعض مفسرینو وئیلی دی چه مراد یُ دا وو چه" نور الِهه هم ارباب دی هر یو دَ یو حاجت پوره کولو یا دَ خاص مصیبت لرے کول ذمه وار دے او زۀ (فرعون) خو دَ ټولو حاجاتو پوره کولو ذمه وار یم نو دَ نورو نه اعلیٰ شوم". دا دلیل دَ دے خبرے نه دے چه فرعون دَ خالق نه منکر وو نو دهری وو بلکه دَ ربوبیت دَ الله تعالیٰ نه (په معنیٰ دَ تصرف او تدبیر کولو) منکر وو او ځان دَ پاره یُ دا دعوی کوله.

ف٢٥ دا ما قبل ذکر کړے شوی افعال او اقوال دَ فرعون دا سبب شو دَ مؤاخذے دَ هغهٔ دَ پاره او اَخَذَ فعل ماضی دلیل دے چه فرعون دَ غرق نه بچ شوے نه دے او دا سے په سورۃ ذاریات ف٤٠ کښې هم ذکر دی. نَكَالَ هغه عقاب ته وئیلی شی چه منع کوونکی وی دَ کولو دَ دغه گناه نه په راتلونکی وخت کښې دَ دے وجے نه دا په محسوسی عذاب کښې استعمالیږی. اَلْاٰخِرَةِ وَالْاُوْلٰى روستنۍ کلمے نه مراد انا ربکم الاعلیٰ دے او مخکنۍ کلمه ما علمت لکم من اِلٰه غیری. یا مراد دَ آخرت نه قیامت دے

لِمَنْ يَّخْشٰى ﴿۲۶﴾ ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا

هغه چا لره چه ویریږی . ایا تاسو ډیر کلک پیدا ایښ والا ئے

اَمِ السَّمَآءُ بَنٰهَا ﴿۲۷﴾ رَفَعَ سَمْكَهَا

یا آسمان چه جوړ کړیدے الله تعالیٰ . پورته ئے جوړکړیدے چت ډ هغه

فَسَوّٰهَا ﴿۲۸﴾ وَاَغْطَشَ لَيْلَهَا وَاَخْرَجَ

نو برابر کړیدے ، او تیاره کړیده شپه ډ هغه او ښکاره کړیدے

او الاولی نه مراد دنیا ده او ابن کثیر صرف دا معنیٰ صحیح گرځولے ده په دلیل ډ سورة هود ۹۹ او سورة قصص ۴۲ سره . لیکن لفظ نکال دلالت کوی چه اوله معنیٰ غوره ده او دا رنګ عبرت (چه راتلونکے وی) دلالت په اوله معنیٰ باندے کوی.

۲۶ په دے کښ فائده ډ دے واقعے ډ روستو خلقو ډ پاره ذکر کوی نو عبرت دے منکرینو لره په عذاب ډ فرعون سره او عبرت دے نبی صلی الله علیه وسلم او مؤمنانو لره په امداد ډ الله تعالیٰ سره او په صبر کولو سره .

۲۷ ۲۸ ۲۹ په دے ایاتونو کښ لس دلیلونه ډ بعث بعد الموت ذکر کوی . یعنی واقعه ډفرعون دلیل وو ډ قدرت ډ الله تعالیٰ نو دا عالم بره او خکته هم دلیل دے په قدرت ډ الله تعالیٰ باندے نو بعث بعد الموت هم کولے شی .

ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ اه استفهام ډ توبیخ او زجر ډ پاره دے او انکاری دے یعنی ستاسو پیدا ایښ خو سخت نه دے بلکه پیدا ایښ ډ اسمانونو غټ دے لکه په سورة غافر ۵۷ کښ دی . رَفَعَ سَمْكَهَا دا تفسیر ډ بنا دے سَمْك اوچت ته وئیلے شی مراد ډ دے نه سقف ډ اسمان دے .

فَسَوّٰهَا یعنی هموار کړے دے بغیر ډ تفاوت او فطور او کوګوالی نه . وَاَغْطَشَ اه ډ لَيْل او ضحیٰ اضافت ئے سماء ته کړے دے ځکه چه ډ دے دواړو تعلق ډ نمر او سپوږمئ سره دے او هغه دواړه منسوب دی اسمان ته . ضُحٰهَا مراد ډ دے نه رڼا ته په بل مخ )

ضُحٰهَا ﴿۲۹﴾ وَالْاَرْضَ بَعْدَ ذٰلِكَ دَحٰهَا ﴿۳۰﴾

دَ ساخت وخت ـ او زمکه پس دَ دینه غوړه ولېداه هغه ـ

اَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَمَرْعٰهَا ﴿۳۱﴾ وَالْجِبَالَ

راویستلے دی دَ هغې نه اوبه دَ هغې او ګیا کانے دَ هغې ـ او غرونه

ورځ ده لیکن په وخت دَ ضحیٰ کښ رنړا ډیره وی دَ دے وجے نه دا تعبیر یې اوکړو. او دَ شپے لویه فائده تیاره ده نو غطش یې ذکرکړو او دَ ورځے لویه فائده رنړا ده او پهروتل او ښکاره کېدل دی نو ضُحیٰ او اخرجَ یې ذکرکړو.

سـ۳ دَ علوی دلیل نه روستو سفلی دلیل ذکر کوی. دَحٰهَا دَحُو غوړولو (بسط) ته وئیلے شی او برا بر ولو دَ پاره دَ اوسیدلو ته هم دَحُو وئیلے شی بَعْدَ ذٰلِكَ (سوال) دَ دے ایت نه معلومیږی چه زمکه یې دَ اسمانونو نه روستو جوړه کړے ده او سورة بقره سـ۲۹ او سورة حٰم سجده سـ۹ نه معلومیږی چه زمکه یې مخکښ پیدا کړیده ؟ (جواب) دَ دے بعض تحقیق په تفسیر دَ سورة بقره او حم سجده کښ تیر شوے دے. ابن کثیر په تفسیر دَ سورة بقره کښ وئیلے دی چه پیدائش دَ زمکے مخکښ دَ اسمان نه په دے کښ دَ علماؤ دَ اختلاف نه خبر یم (یعنی اجماعی خبره ده) ماسیوا دَ هغې نه چه ابن جریر دَ قتاده نه روایت کړے دے او قرطبی په دے کښ توقف کړیدے او ابن عباس رضی الله عنهما نه دَ دے تپوس کړے شو یوؤ نو هغه جواب ورکړو چه زمکه دَ اسمان نه مخکښ پیدا کړے شویده لیکن غوړولے شوے ده روستو دَ اسمان نه. او قرطبی دلته بله توجیه دا کړے ده چه بَعْدَ په معنیٰ دَ مع دے او معنیٰ دَ معیّت دا ده چه په پیدائش کښ دواړه ملګری دی اګرچه یو مخکښ او بل روستو دے او دے ته تعقیب ذکری هم وئیلے کیږی.

سـ۳۱ سـ۳۲ سـ۳۳ حرف عطف یې نه دے ذکر کړے اشاره ده چه دا تفسیر دَ دَحو دے یعنی نهرونه او غرونه یې پکښ جوړ کړل، دَ مخلوق دَ

أَرْسٰهَا ﴿۳۲﴾ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَامِكُمْ ﴿۳۳﴾

اودروله دی الله تعالیٰ، دَپاره دَ فائدے ستاسو او دَپاره دَ څاروو ستاسو.

فَإِذَا جَاءَتِ الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى ﴿۳۴﴾ يَوْمَ

نو کله چه راشی هنګامه لویه . په دغه ورځ

يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ مَا سَعٰى ﴿۳۵﴾ وَبُرِّزَتِ

یادوی انسان هغه عمل چه دهٔ کړیدے او ښکاره به کړیشی

فائدے دَ پاره تیاره کړے شوله. مَآءَهَا مراد دَ دے نه او به دَ چینو او کویانو وغیره دی چه دا اوبه په زمکے کښ امانت پرتے دی او په اصل کښ اوبه اسمانی دی. وَمَرْعٰهَا مراد دے نه هغه بوټی اونے دی چه دَ انسانانو منافع په هغے باندے موقوف دی یعنی دانے هرقسم، میوے هرقسم لرګی او کپړے (جامے) او اُورچه دَ زمکے دَ لرګو نه پیدا کیږی او مالګه چه دَ اوبو نه پیدا کیږی. وَالْجِبَالَ دا منصوب دے په شرط دَ تفسیر سره یعنی فعل ئے پټ دے چه روستو فعل دَ هغے تفسیر کوی یعنی اثبت الجبال. أَرْسٰهَا أرسا کلکول دَ ویخ نه یعنی په شان دَ میخونو ئے په زمکه کښ مضبوط ټک وهلے دی لکه والجبال اوتادًا کښ ذکر شوے دی. مَتَاعًا ٢ه دا مفعول له دَ ماقبل دواړه فعلونو دے (اَخْرَجَ، اَرْسٰى) اشاره ده چه په اوبو او بوټو اوښو او غرونو کښ دَ انسانانو او دَ هغوی دَ څاروو دَ پاره دَ ژوند دَ تیرولو بے شماره اسباب دی.

۳۴ نه ۳۵ نه ۳۶ دا تخویف اخروی دے په ذکر دَ هیبتونو دَ قیامت سره تر ۳۹ پورے. الطَّآمَّةُ دا په اصل کښ هغه سیلاب دَ اوبو ته وئیلے شی چه کویان کندے وغیره هرڅه ډک کړی طم دفن کول او اوچت والی ته وئیلے کیږی نو دا نوم دَ قیامت دے یعنی دا سے مصیبت چه په هرڅیز باندے به احاطه اوکړی او دَ هر مصیبت نه به اوچت وی. يَوْمَ يَتَذَكَّرُ ۲ه دا ظرف دَ جاءت دَ پاره دے او دا پشان دَ سورة فجر ۲۳ دے. مَا سَعٰى ما موصوله یا ما مصدریه دے (پاتے په بل مخ)

الْجَحِيْمُ لِمَنْ يَّرٰى ﴿٣٦﴾ فَاَمَّا مَنْ

جهنم هغه چالره چه وینی ئې . نو هغه څوک چه کړیده

طَغٰى ﴿٣٧﴾ وَاٰثَرَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿٣٨﴾

سرکشي ، او غوره کړیدے ژوند دنیوی ،

فَاِنَّ الْجَحِيْمَ هِيَ الْمَاْوٰى ﴿٣٩﴾ وَاَمَّا مَنْ

نو یقینًا جهنم دا ځائے دَ ورتللو دَ هغه دے . او هغه څوک چه

خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ وَنَهَى النَّفْسَ

یره ئې کړیده چه اودریدلو دَرب خپل ته او منع کړیدے ځان خپل

یتذکر کښې اشاره ده چه انسان په دُنیا کښې څه عمل اوکړی نو هغه هیر کړی لکه په سورة مجادله ۲ کښې . وَ بُرِّزَتِ دا هم دَ یادداشت سبب دے. لِمَنْ یَّرٰی مراد دَ دے نه هر صاحب دَ رؤیت دے که مؤمن وی اوکه کافر وی ځکه دَ دے نه روستو تفصیل دَ دواړه فریقو دے او مؤمن چه جهنم لره اُوینی نو قدر دَ نعمت دَ جنت په ورسره ډیر شی.

۳۷ ۳۸ ۳۹ فَاَمَّا مَنْ طَغٰى دا جواب دے دَ فَاِذَا دَ پاره او تقسیم دَ خلقو دے دوه قسمونو ته طاغی کافر او مؤمن کامل او ذکر دَ فاسق ئې په آثرو آیاتونو کښې پټ ساتلے دے دَ پاره دَ خوف دَ هغهٔ او دَ رجا دَ هغهٔ.

طَغٰى دَ حدود شرعیو نه تجاوز کول په حقوق الله او حقوق العباد کښې. او په طغیان کښې انتهائی درجه مراد ده چه هغه کفر او شرک دے. وَاٰثَرَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا یعنی دَ دنیا په مینه کښې دومره منهمک شوے دے چه آخرت ئې بالکل هیر کړے دے او دا عطف دَ سبب دے په مسبب باندے.

هِيَ الْمَاْوٰى هِيَ ضمیر فعل دَ پاره دَ حصر او تاکید دے او دا قرینه ده چه طاغی نه مراد کافر او مشرک دے.

عَنِ الْهَوٰى ﴿٤٠﴾ فَاِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَاْوٰى ﴿٤١﴾

دَ خواهش نه . نو يقيناً جنت داځائے دَ ورتللو دَ هغه دے .

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰهَا ﴿٤٢﴾

تپوس کوی دوی ستا نه په باره دَ قيامت کښ چه کله به وی اودريدل دَ هغے .

فِيْمَ اَنْتَ مِنْ ذِكْرٰىهَا ﴿٤٣﴾ اِلٰى رَبِّكَ

په څه کښ يئے ته دَ ياداشت دَ هغے نه . خاص ستا رب ته

سنه ۴۱ دا بشارت دے دويم قسم ته . مَقَامَ رَبِّهٖ مقام مصدر ميمی دے په معنیٰ دَ قيام او دا اضافت الی المفعول دے يا اضافت الی الفاعل دے بنا په اول باندے په آخرت کښ مراد دے يعنی اودريدل مخامخ رب ته په ورځ دَ حساب کښ يا په دُنيا کښ مراد دے يعنی په وخت دَ ګناه کولو کښ دَ الله تعالیٰ دَ پيشئ نه او يريږی او ګناه پريږدی . او بنا په دويم (يعنی اضافت فاعل ته) قيام دَ رب په معنیٰ دَ علم او قدرت دَ رب سره دے په مخلوق باندے يعنی ويره کوی چه الله تعالیٰ زما په سر حاضر دے او قادر دے نو دَ ګناهونو نه ځان ساتی .

وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰى دا عطف دَ مسبب دے په سبب باندے يعنی خوف سبب دَ منع کيدلو دَ ګناهونو نه دے يعنی نفس اماره بالسوء لره دَ اتباع دَ خواهش بلکه دَ فکر او ارادے دَ خواهشاتو نه منع کوی . سهل تستری وئيلی دی "چه ترک دَ هوای چابی دَ جنت ده نو دا رنګ اتباع دَ هوای چابی دَ ګناهونو ده" .

سنه ۴۲ دا زجر دے په انکار دَ قيامت روستو دَ ذکرکولو دَ احوالو دَ هغے نه . مُرْسٰهَا مصدر ميمی يا ظرف دے .

سنه ۴۳ دا جواب دے په طريقه دَ تسلئ نبی صلی الله عليه وسلم ته فِيْمَ دا خبر مقدم دے او انت مبتدا مؤخر ده او استفهام انکاری دے ذِكْرٰىهَا ذکرکول او بيان کول ستا وخت معينه دَ قيامت لره يعنی تاسره دَ هغے علم هيڅ ذريعه نيشته دے ذِكْرٰىهَا اضافت دَ مصدر دے مفعول ته او فاعل ئے پټ دے يعنی ذِكْرُكَ اياها .

مُنْتَهٰهَا ﴿۴۴﴾ اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرُ مَنْ يَّخْشٰهَا ﴿۴۵﴾

تر ځېدلو د علم د هغې دی. یقیناً ته ویرروونکے د هغه چا ئې چه ویرېږي د قیامت نه.

كَاَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوْٓا

ګویا چه دوی په کومه ورځ چه اوبه وینی قیامت لره (ګمان به اوکړی) چه نه وو حصار شوی

اِلَّا عَشِيَّةً اَوْ ضُحٰهَا ﴿۴۶﴾

مګر مازیګرے یا ساخت د مازیګر پشان.

ت ۴۳ ۴۵ اِلٰی رَبِّكَ دا ئې مخکښې راوړے دے د پاره د تخصیص او حصر. مُنْتَهٰهَا منتهیٰ علمها یعنی د چانه چه تپوس د قیامت په باره کښې اوکړے شی نو هغه ئې راجع کوی الله تعالیٰ ته او علم د دے په الله تعالیٰ پورے خاص دے لکه په سورة حم سجده ت ۴۷ او سورة اعراف ت ۱۸۷ کښې ذکر شوے دی. اِنَّمَآ اَنْتَ مُنْذِرُ او شان د منذر د پاره نفس علم د قیامت د راتللو په دلیلونو سره کافی دے او هر چه علم د وخت معینه د نو هغه د نذیر د پاره هیڅ ضروری نه دے. مَنْ يَّخْشٰهَا تخصیص د دوی د دے وجے نه دے چه د انذار نه فائده د خشیت والی (ویریدلو) اخلی لکه په سورة یس ت ۱۱ کښې دی.

ت ۴۶ دا جواب دے په بله طریقه سره یعنی دوی خو سوالونه کوی د قیامت په باره کښې د دے وجے نه چه د دنیا ژوند ورته ډیر اوګد ښکاره کیږی. لیکن هرکله چه دوی قیامت اوینی نو فیصله به اوکړی چه د دنیا عمر خو نیمه ورځ وو. كَاَنَّهُمْ په معنیٰ د یظنون سره دے او د دے مدخول لم یلبثوا دے.

عَشِيَّةً د ماسپخین نه تر غروب د نمر پورے وخت ته وئیلے شی اَوْ ضُحٰهَا هَا ضمیر راجع دے عشیة ته (سوال) ضحا د ورځ ټکره ده د طلوع د نمر نه تر زوال پورے نو اضافت ئې عشیة ته ولے اوشو؟ (جواب) دا اضافت د وجے د ادنیٰ ملابست نه دے او اشاره ده چه وخت د ضحیٰ برابر دے (تقریباً) د وخت د عشیة سره یعنی نیمه ورځ ده او دا سے په سورة احقاف ت ۳۵ کښې هم تیر شوی دی او ساعة (چه په سورة احقاف کښې راغلے دے) عام دے عشیة او ضحیٰ ته هم شامل دے نو د دوی هیڅ منافات نیشته دے.

ختم شو تفسیر د سورة النازعات په فضل د الله تعالیٰ سره.

| سُوۡرَةُ عَبَسَ مَكِّيَّةٌ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | اٰيَاتُهَا ۴۲ رُكُوۡعُهَا ۱ |
|---|---|---|

عَبَسَ وَتَوَلّٰۤى ۙ﴿۱﴾ اَنۡ جَآءَهُ الۡاَعۡمٰى ؕ﴿۲﴾

خفه شو او مخ ئې اوګرځوو. دَ دې وجې نه چه راغې ورته روند.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**سورة عبس** دے ته سورة السفره او سورة الاعمٰی او سورة الصاخة هم وئیلے شي.

**ربط دَ دے سورت** دَ مخکښې سورت سره په ډیرو وجو سره دے اوله وجه داده چه په هغه سورت کښې تخویف دنیوی وؤ دَپاره دَ منکرینو نو په دے سورت کښې سخت زجر دے هغوی ته دویمه وجه داده په هغه سورت کښې ذکر اوشو دَ دوه فریقو نو په دے سورت کښې فرق ذکر کوی په اعتبار دَ فائدے اخستلو دَ قران نه اوضدکول دَ هغے سره. دریمه وجه داده چه مخکښې سورت کښې نوم دَ قیامت الطامة الکبری ذکر وؤ چه دَ هغے اثر به په زړه اوپه ټول بدن باندے وی نو په دے سورت کښې دَ هغے بل نوم ذکر کوی چه الصاخة دے چه دَ هغے اثر به په غوږونو باندے کیږی.

**دعوی دَ دے سورت** اثبات دَ فرق په مینځ دَ دوه فریقو کښې دے په آخرت کښې چه دَ هغه فرق اثر به دَ دوی په مخونو کښې ښکاره شی ځکه چه په دنیا کښې دَ دوی فرق وؤ په باره دَ قران کښې او دارنګ ذکر کوی فرار دَ یو بل نه په آخرت کښې ځکه چه په دنیا کښې ئې حقوق دَ یو بل ضائع کړے وؤ.

په دے سورت کښې ئې اسماء حسنٰی نه دی ذکر کړی لیکن صفاتِ فعلیه دَ الله تعالٰی ئې یو ؤلس ذکر کړے دی.

**خلاصه دَ سورت**. اول ئې ذکر کړے دے صفت دَ نبی صلی الله علیه وسلم په باره دَ دعوت الی القران کښې په هر قسم (رایا ته په بل مخ)

مانع باندے دَ خفه کیدلو۔ بیا یٔے ذکر دَ ادب دَ دعوت کړے دے چه هغه فرق کول دی په مینځ دَ منیب او معاند کښ تر ۱۰ پورے بیا ترغیب دے قرآن ته په طریقه دَ عموم سره (چه په دے کښ دَ چا خصوصیت نشی کیدلے) په پنځه وجوهو سره تر ۱۶ پورے بیا سخت زجر دے په منکرینو دَ بعث بعد الموت باندے په ذکر دَ لس احوالو دَ قیامت تر ۲۳ پورے بیا عقلی دلیلونه دی متعلق په طعام پورے دَ پاره دَ اثبات دَ قیامت په لس طریقو سره تر ۳۲ پورے بیا تخویف دے په ذکر دَ هیبتونو دَ قیامت په پنځه وجوهو سره او بیا فرق دَ مخونو دَ فریقینو ذکر دے.

**تفسیر** ۱ ۲ دا آیاتونه تر ۱۰ پورے اشاره ده واقعے (قصے) دَ عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنه ته چه نبی صلّی الله علیه وسلّم مشغول وو په دعوت کولو کښ غټانو مشرکینو ته په دے امید سره چه دوی اسلام راوړی او دَ دوی په وجے سره به نور خلق هم اسلام راوړی نو په دغه وخت کښ ابن ام مکتوم رض راغے (چه پیدائشی ړوند وو) او دَ رسول الله صلی الله علیه وسلّم سره یٔے دینی خبرے شورو کړلے چه په هغے سره دَ هغه دعوت دَ مشرکانو نه قطع شو په دے وجے سره نبی صلی الله علیه وسلّم خفه شو او مشرکان هم غصه شول چه زمونږ خبرے دے ړوند فقیر ولے قطع کړے نو دَ هغه په باره کښ دا آیاتونه نازل شول.

عَبَسَ وَتَوَلّٰی ۱ امام رازی وئیلے دی چه اتفاق دے دَ مفسرینو چه ضمیرونه نبی صلی الله علیه وسلّم ته راجع دی او مراد دَ اعمٰی نه ابن ام مکتوم دے لیکن قاضی عیاض رح په شفاء کښ دا سے ذکر کړیدی چه عبس او تولّٰی ضمیرونه هغه کافر ته راجع دی چه دَ هغه سره نبی صلی الله علیه وسلّم خبرے کولے او روستو خطابات نبی صلی الله علیه وسلّم ته دی۔

فائده ۱:۔ دے ته عتاب او زورنه وئیل مناسب نه دی بلکه تعلیم دَ ادب دَ دعوت دے او دَ هغے په ضمن کښ مدح دَ نبی صلی الله علیه وسلّم ده مدحه داده چه نبی صلی الله علیه وسلّم په دعوت کولو کښ دومره زیات حرص کووُنکے وو چه دَ خپل ملګری صحابی په رکاوټ کیدلو

**وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّهُ يَزَّكَّىٰ ۝ أَوْ يَذَّكَّرُ**

او څه خبر تاله یو هغه درکړیدله چه کیدیشی چه دے به پاک شی، یا یه نصیحت واخلی

بانده خفه وۀ ځکه دغه صحابی خو هسے هم ایمان راوړے وۀ ضرورت دا وۀ چه دا نور خلق ایمان راوړی دَ دے وجے نه بعض اهلِ علمو وئیلے دی چه په اصل کښ بے ادبی ابن ام مکتوم کړے وه لیکن هغه معذوره وۀ دَ دے وجے نه هغه دَ زورنے حقدار نه وۀ۔

او تعلیم دَ ادب دَ دعوت دا دے چه په داسے حال کښ چه تعارض راشی یعنی یو طرف ته دعوت ورکول وی مالدارو عنادیانو مشرکانو ته او بل طرف ته ارشاد وی یو منیب مسکین معذوره ملګری ته نو دا منیب به مقدم کولے شی په هغه عنادیانو بانده دَ هغوی دَ خفګان به هیڅ پرواه نشی کیدلے.

فائده ۲: چه عبس او تولّیٰ ضمیرونه نبی صلی الله علیه وسلم ته راجع شی لیکن بیا هم دَ رعایت دَ ادب او عزت دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه هغه ته ئے خطاب اونکړو بلکه په غائب صیغه سره ئے ذکر کړل.

اَنْ جَآءَهُ الْاَعْمٰى تعبیر په لفظ دَ اعمٰی سره اشاره ده چه هغه معذور وۀ او معذور بانده ملامتیا نه وی.

۳ سئ په دے ایاتونو کښ مقابله ذکر کوی دَ صفتونو دَ منیب او دَ عنادی دَ پاره دَ دے چه رعایت کول دَ منیب پکار دی.

لَعَلَّهُ ضمیر راجع دے اعمٰی ته بل احتمال دا دے چه ضمیر راجع دے هغه کافر ته.

وَمَا يُدْرِيكَ په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه دَ روستو خبرے علم نه وی ورکړے شوے نو دا رنګ دَ هیچا دَ ایمان حقیقی علم نبی صلی الله علیه وسلم ته نه وۀ ورکړے شوے ما سیوا دَ هغه کسانو نه چه هغوی ته دَ جنت زیرے او روله شوے دے.

يَزَّكَّىٰ، اَوْ يَذَّكَّرُ اه فرق دا دے چه تزکیه طهارة دَ نفس دے دَ حرامو نه او تذکر عمل کول دی په اوامرو دَ الله تعالیٰ بانده او دا رنګ تزکیه ایمان راوړل دی بغیر دَ احتیاج نه وعظونو او دلیلونو ته او تذکیر غوږ کیخودل دی وعظونو او دلیلونو ته او بیا په هغے بانده عمل کول دی.

فَتَنْفَعَهُ الذِّكْرٰى ﴿٤﴾ اَمَّا مَنِ اسْتَغْنٰى ﴿٥﴾

نو نفع به ورکړی دهٔ ته نصیحت۔ هغه څوک چه بے پروا کړیدے ځان ،

فَاَنْتَ لَهٗ تَصَدّٰى ﴿٦﴾ وَمَا عَلَيْكَ اَلَّا يَزَّكّٰى ﴿٧﴾

نو ته هغه ته ورمخکښ کیږے۔ او نیشته په تا باندے ګناه که نه شی دے پاک

وَاَمَّا مَنْ جَآءَكَ يَسْعٰى ﴿٨﴾ وَهُوَ

او هغه څوک چه را غلے دے تا ته منډے وهی ، او هغه

يَخْشٰى ﴿٩﴾ فَاَنْتَ عَنْهُ تَلَهّٰى ﴿١٠﴾

یره کوی ۔ نو ته دَ هغه نه غفلت کوے ۔

بِنا په اول فرق باندے آوْ دَ پاره دَ مانعة الخلو دے یعنی جمع دَ دواړه حالتونو کیدے شی او بِنا په دویم فرق باندے آوْ دَ پاره دَ انفصال حقیقی یا دَ پاره دَ مانعة الجمع دے۔ فَتَنْفَعَهُ دا تفریع بِنا په اول فرق په دواړه فعلونو باندے ده او بنا په دویم په دویم فعل باندے ده۔

شـ ۵ سـ ۶ دا ذکر دَ معاند دے اسْتَغْنٰى په سبب دَ مال سره چه دَ الله تعالیٰ دَ دین نه ځان بے پرواه کړی ، باب استفعال ئے دَ دے دَ پاره راوړو چه انسان په اصل کښ غنی نشی کیدے (غنی بے حاجته وی) لیکن ځان قصدًا بے حاجته ښکاره کړی۔ تَصَدّٰى تصدّی په اصل کښ دَ چا خبرے ته غوږ کیخودل دی۔ او تصدّی په اصل کښ تتصدد دے دَ صُدّ نه اخستلے شوے دے یو څیز ته مخامخ کیدل او پیش کیدل۔

وَمَا عَلَيْكَ اَلَّا يَزَّكّٰى دا تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته یعنی دَ دی تزکی په تا باندے واجب نه ده او دَ تزکیه نه قبلولو ګناه په تا باندے نیشته ته خو صرف تبلیغ او دعوت کوه که څوک ئے منی او که نه منی۔

شـ ۸ سـ ۹ دا صفات دَ انابت کوونکی دی۔ يَسْعٰى کوشش کوی په طلب دَ هدایت او دَ علم کښ وَهُوَ يَخْشٰى یعنی دا سعی دَ وجے دَ خشیت الٰهیه نه ده دَ غرض دنیوی دَ پاره نه ده۔ تَلَهّٰى په اصل کښ تتلهّٰی دے ځان قصدًا غافل کول دَ وجے دَ شغل نه په بل کار باندے۔

كَلَّآ إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ ﴿١١﴾ فَمَن شَآءَ

داسې نه ده يكار يقيناً دا نصيحت ده . نو دَ چاچه خوښه شي

ذَكَرَهُۥ ﴿١٢﴾ فِى صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ ﴿١٣﴾

دا دې ياد كړي - (ليكلې شوې دې) په پاڼو عزت والا كښې .

مَّرْفُوعَةٍ مُّطَهَّرَةٍۭ ﴿١٤﴾ بِأَيْدِى سَفَرَةٍ ﴿١٥﴾

پورته كړې شوې پاكې ساتلې شوي دي ، په لاسونو دَ ليكونكو ملائكو ،

كِرَامٍۭ بَرَرَةٍ ﴿١٦﴾ قُتِلَ ٱلْإِنسَٰنُ

عزت منده نيكان . تباه دې شي انسان

ملا سلا په دې آيا تونو كښې ترغيب الى القرآن دې كَلَّآ ردعيه دې يعنې دَ ضدي عنادي دَ وجې نه دَ آيات كونكي نه مخ اړول نه دي پكار يا كلا په معنیٰ دَ حقا سره دې . إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ هَا ضمير راجع دې سورت ته يا قران ته او ابن كثير وئيلې دي چه دې ماقبل خصلت ته راجع دې چه دَ غني او فقير او ادنیٰ او اعلى برابري كوه دا تذكره ده او تنكير دَ پاره دَ تعظيم دې . ذَكَرَهُۥ وعظ دې واخلي دَ قران نه يا دې يياد كړي قران لره او دَ دې اوامرو نواهي او مواعظو لره . او هُوَ ضمير تذكره ته راجع دې په تاويل دَ ذكر يا دَ قران يا دَ وحي سره .
أَوْ مَن شَآءَ عام دې كه غني وي يا فقير وي منيب وي يا ضدي .
سلا سلا سلا سلا په دې كښې ذكر دَ عظمت دَ قران دې چه هغه سبب دې دَ تذكره كيدلو دَ پاره . او په دې كښې ذكر دې صفات دَ صحف او دې دَ ملائكو ذكر كوي چه حاملان قران دي . فِى صُحُفٍ يعني دا قران منقول دې دَ لوح محفوظ نه او ليكلې شوې دې په صحف دَ ملائكو كښې يا مراد دَ صحف نه صحف ابراهيم او موسىٰ دي په قرينه دَ سورة اعلى سلا سلا سره . مُّكَرَّمَةٍ كرامت دَ هغې په وجه دَ كرامت دَ نازلوونكي دې يعنې الله تعالىٰ كريم دې نو وحي دَ هغه هم كرامت والا ده او كرامت دا دې چه دا صحيفې دَ علمونو او حكمتونو نه ډكې دي . ( پاتې په بل مخ )

مَآ اَكۡفَرَهٗ ۝۱۷ مِنۡ اَيِّ شَيۡءٍ خَلَقَهٗ ۝۱۸

خومره غښ کافر دے. د څه څیز نه یئ پیدا کړے دے.

مَرۡفُوۡعَةٍ قدر او منزلت ئې اوچت دے یا اوچته په اووم آسمان کښې پراته دی. مُّطَهَّرَةٍ دَ شکونو او شبهاتونه اود وسوسو دَ شیطانانو نه او دَ کمی زیاتی نه بچ ساتلے شوے دی. سَفَرَةٍ جمع دَ سافر ده او سفر کتابت ته وئیلے شی یعنی ملائک کتابت کوی دَ دغه صحیفو یا دَ عملونو دَ بندګانو یا جمع دَ سفیر ده نو ملائک سفیران دی په مینځ دَ الله تعالیٰ او دَ پیغمبرانو کښې. او دَ قتاده او وهب بن منبه نه روایت دے چه مراد دَ سفرة نه اصحاب دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم او قراء دَ قرآن کریم دی لیکن صحیح قول اول دے او دَ وجے دَ عموم دَ لفظ نه صحابه کرامو ته هم شامل کیدے شی. كِرَامٍ عزت مند په نیز دَ رب دَ دوی هغه څوک دے چه ځان بچ ساتونکی وی دَ ګناهونو نه او غوره کوونکی وی فائدے دَ بل چالره په خپله فائده باندے دا ټول کرامات دی. بَرَرَةٍ جمع دَ بار ده پوره اطاعت کوونکی دَ الله تعالیٰ او رشتنی په اعمالو کښې. ابن کثیر لیکلی دی چه حامل دَ قرآن لره پکار دی چه دَ هغه ټول اعمال او اقوال دے په طریقه دَ رُشد سره وی یعنی دَ سنت سره دے پوره موافق وی.

۱۷ روستو دَ ذکر دَ عظمت دَ قرآن نه زجر شدید دے مخالفت او عناد کوونکی ته دَ قرآن سره. قُتِلَ دا اخبار دے دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه په معنیٰ دَ لعن (لعنت کړے شوے دے) یا دعاء شر ده په طریقه دَ تعلیم سره بندګانو ته. اَلۡاِنۡسَانُ هغه انسان چه مکذب او عنادی دے. مَآ اَكۡفَرَهٗ صیغه دَ فعل تعجب ده او مراد په دے سره تعجیب (تعجب کښې اچول) دے بندګانو ته یعنی اے انسانانو تعجب او کړئ دَ کفر دَ دهٔ نه یا مَا استفهامیه دے یعنی څه څیز کافر کړے دے دهٔ لره او استفهام دَپاره دَ توبیخ او زورنے دے.

۱۸ ۱۹ دا تفصیل دَ خلق دَ انسان او دلیل دے دَ ترک کفر نو کفر کول دَ دهٔ عجیبه دی. مِنۡ اَيِّ شَيۡءٍ استفهام تقریری دے دَپاره دَ تحقیر دَ انسان اول ئې ابهام ذکر کړو دَپاره دَ توجه دَ انسان خپل پیدائش ته.

مِنْ نُّطْفَةٍ ؕ خَلَقَهٗ فَقَدَّرَهٗ ﴿۱۹﴾ ثُمَّ السَّبِيْلَ

دَ نطفے نه يې پیدا کړیدے دے نو اندازه کړیدے، بیا لار يې ورته

يَسَّرَهٗ ﴿۲۰﴾ ثُمَّ اَمَاتَهٗ فَاَقْبَرَهٗ ﴿۲۱﴾ ثُمَّ اِذَا شَآءَ

اسانه کړیده، بیا يې مړ کړیدے نو قبرته يې بوتلے دے. بیا کله چه اوغواړی

مِنْ نُّطْفَةٍ دَ دے فعل پټ دے یعنی خلقه - اودویم لفظ خَلَقَهٗ اشاره ده پیدائیش دَ دهٔ دَ علقے او مضغه نه. فَقَدَّرَهٗ برابرول دَ اندامونو او دَ قد وقامت او تقدیر دَ سعید او شقی او دَ اجل او رزق ته دا لفظ شامل دے لکه چه په سورة کهف سـ۳۷ او سورة انفطار سـ۷ کښ دی.

سـ۲۰ السَّبِيْلَ مراد دَ دے نه لار دَ راوتلو دَ بچی ده دَ خیټے دَ مور نه چه هغه الله تعالیٰ اسانه کړیده، شربینی لیکلے دی چه بچے دَ مور په رحم کښ سر بره او خپے يې کوزے وی لیکن په وخت دَ پیدائش کښ سر مخکښ او خپے روستو شی دا اسانول دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دی یا مراد دَ سبیل نه لار دَ هدایت او لار دَ گمراهئ ده لکه په سورة بلد سـ۱۰ کښ او سورة اللیل سـ۱۰ کښ دی یا لار دَ خیر ده فقط لکه په سورة دهر سـ۳ کښ دی. او اسانوالے په طریقه دَ بیان په دلیلونو سره دے یا په توفیق او استطاعت ورکولو سره دے.

سـ۲۱ ثُمَّ دلیل دے چه دَ پیدائش او دَ مرګ په وخت کښ اکثر فاصله وی او فا په فاقبره کښ اشاره ده چه دفن متصل پکار دے یعنی دَ غسل، تجهیز، تکفین، جنازے او دفن په کارونو کښ اسراع (تادی) پکار ده لکه چه حدیث کښ دی اسرعوا بالجنازة - اَمَاتَهٗ دا دلیل دے چه مرګ هم په حکم او اختیار دَ الله تعالیٰ سره دے طبعی امر نه دے لکه چه دهریان وائی. فَاَقْبَرَهٗ قبره او اقبره کښ فرق دا دے چه اول په معنیٰ دَ دفن کولو په خپلو لاسونو سره دے او دویم په معنیٰ دَ امر کولو دے په دفن سره او دَ دفن دَپاره تیارول نو هر کله چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه امر دے دَ فاقبره او تیارول دی دَ پاره دَ قبر دَ دے وجے نه اقبره يې او فرمائیل او قبر کښ دفن کول اکرام دے په نسبت دَ دے چه بهر يې او غورځوی او مردار خواره مارغان او ځناور يې اوخوری.

آنْشَرَهٗ ﴿۲۲﴾ كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَآ اَمَرَهٗ ﴿۲۳﴾

تو راژوندی به ئې دۀ لره. یقینی ده چه نه دے پوره کړے دۀ حکم دَ الله تعالیٰ لره.

فَلْيَنْظُرِ الْاِنْسَانُ اِلٰى طَعَامِهٖٓ ﴿۲۴﴾ اَنَّا

نو او دې گوری انسان خوراک خپل ته ، چه یقینًا

۲۲ په دے کښی تذکیر دے په دوباره ژوندن سره. شَآءَ اشاره ده چه دَ بعث بعد الموت مقرر وخت دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل چا ته معلوم نه دے.

آنْشَرَهٗ هر کله چه په دفن کښی معنیٰ دَ پټه وَلو وه نو دَ دے مناسبت دَ وجې نه لفظ دَ انشرئے ذکر کړو چه دلالت کوی په ښکاره کولو روستو دَ پټولو نه.

۲۳ دا زجر دے او كَلَّا په معنیٰ دَ حقًّا سره دے او په ردعیه کیدلو کښی بُعد دے.

لَمَّا يَقْضِ په لفظ دَ لمّا کښی زیات تاکید دَ نفی دے په نسبت دَ لَمْ سره مَآ اَمَرَهٗ مراد دَ دے نه توحید او ایمان تفصیلی دے چه په قران کښی ذکر دی او نور احکام الٰهیه چه په کتاب او سنت کښی ذکر دی.

يَقْضِ دَ قضا نه دے پوره حق ادا کولو نه وَیلے شی.

۲۴ دَ دے ایت نه دلیل آفاقی ذکر کوی روستو دَ دلیل انفسی نه چه مشتمل دے په لس انعامانو باندے او په دے کښی ربوبیت دَ الله تعالیٰ ثابتوی چه الله تعالیٰ دَ انسانانو دَ پالنے اصل ماده (چه خوراک دے) او دَ هغے اسباب پیدا کړیدی او په دے کښی دَ هغه سره هیڅوک شریک نیشته دے. دا رنګ په دے کښی اثبات دَ بعث بعد الموت دے چه څه رنګ الله تعالیٰ دَ زمکے نه دا مختلف څیزونه راویستلی دی نو دا رنګ هغه قادر دے چه دَ دے زمکے نه دوباره انسان لره پیدا کړی.

فَلْيَنْظُرِ دے ته نظر قلبی وَیلے شی یعنی فکر کول، اګرچه نظر دَ سترګو هم ور سره تعلق لری.

صَبَبْنَا الْمَآءَ صَبًّا ﴿۲۵﴾ ثُمَّ شَقَقْنَا الْأَرْضَ

راتوے کړے مونږه اوبه په راتویدلو سره ، بیا اوچوله مونږه زمکه

شَقًّا ﴿۲۶﴾ فَأَنْبَتْنَا فِيهَا حَبًّا ﴿۲۷﴾ وَّعِنَبًا وَّ

په چولو سره ، نو زرغون کړے مونږ په هغې کښ دانے ، او انګور او

قَضْبًا ﴿۲۸﴾ وَّزَيْتُونًا وَّنَخْلًا ﴿۲۹﴾ وَّحَدَآئِقَ

ترکارئ ، او خونه او کجورے ، او باغونه

غُلْبًا ﴿۳۰﴾ وَّفَاكِهَةً وَّأَبًّا ﴿۳۱﴾ مَّتَاعًا لَّكُمْ

کور (ګنړ) ، او میوے او ګیا ، د پاره د فائدے ستاسو

۲۵ تا ۲۶ دا بدل اشتمال دے د الی طعامه نه او دلته هم الی پټ دے. صَبَبْنَا د دے نه ډیر باران مراد دے چه په هغې سره بوټي پیدا کیږي. ثُمَّ شَقَقْنَا یعنی کلکه زمکه په یو کمزوری تیغ سره او شلوی او هغه تیغ ترینه را اوباسی.

۲۷ تا ۲۸ تا ۲۹ تا ۳۰ تا ۳۱ قَضْبًا وابنه ګیاه ، یا تازه کجورے څکه چه قضب پریکولو ته وئیلے شی او دا هم پریکولے شی د زمکے او د اونے نه بار بار وَحَدَآئِقَ دا تعمیم دے روستو د تخصیص نه عامو باغونو ته شامل دے. غُلْبًا چه اونے پکښ ډیرے وی او لوئے دنګے وی او ښاخ نکے ئے په یو بل کښ ورننوتلے وی. أَبًّا هغه بوټي چه د میوؤ نه علاوه دی د زمکے نه راخیژی لکه ګیاه د څاروؤ وغیره او مفسرینو دلته دوه روایات نقل کړیدی اول روایت دا دے چه ابوبکر رضی الله عنه د دے په تفسیر کښ توقف کړے وؤ او دویم دا چه عمر رضی الله عنه دے ته تکلف وئیلے وؤ لیکن د سند په لحاظ سره اول روایت منقطع دے او دویم روایت صحیح متصل دے لیکن مقصد په دواړو کښ (والله اعلم) رد دے په هغه چا بانددے چه د الفاظو په تحقیق کښ وخت صرف کوی او مقصد د قرآن کریم باندے فکر نه کوی. مَتَاعًا داسے په سورة نازعات ۳۳ کښ هم تیر شویدی.

وَلِأَنۡعَامِكُمۡ ﴿۳۲﴾ فَإِذَا جَآءَتِ الصَّآخَّةُ ﴿۳۳﴾

او ڈ پاره ڈ څاروؤ ستاسو. نو کله چه راشي غوږونه کڼروونکے.

يَوۡمَ يَفِرُّ الۡمَرۡءُ مِنۡ أَخِيهِ ﴿۳۴﴾ وَأُمِّهِ

په هغه ورځ به تختي هر سړے ڈ ورور خپل نه او ڈ مور

وَأَبِيهِ ﴿۳۵﴾ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ ﴿۳۶﴾ لِكُلِّ امۡرِئٍ

او ڈ پلار خپل نه، او ڈ ښځې خپلے نه او ڈ ځامنو خپلو نه. ڈ پاره ڈ هر سړي

مِّنۡهُمۡ يَوۡمَئِذٍ شَأۡنٌ يُغۡنِيهِ ﴿۳۷﴾ وُجُوهٌ

ڈ دوی نه په دغه ورځ يو فکر دے چه مشغول کړے به ئې وي ڈ. بعضې مخونه په

۳۲ روستو ڈ ذکر ڈ امورِ دنيويه نه ذکر کوي حال ڈ قيامت ڈ پاره ڈ دے چه امور ڈ دُنيا ڈ اخرت په تيارئے کښې صرف کړے شي. الصَّآخَّةُ مراد ڈ دے نه دويمه شپيلئ وهل دي چه ڈ هغې "اواز غوږونه کڼروي او په نور سره اوريدلے کيږي. او دا ڈ قيامت ڈ نومونو نه يو نوم هم دے او ڈ إِذَا جزاء محذوف ده يعني مشغول به شي هر انسان په خپل ځان باندے او روستو ايت په دے باندے قرينه ده.

۳۳ ۳۴ ۳۵ ۳۶ ۳۷ دا تختيدل ڈ دے وجے نه کوي چه په دنيا کښې ئې حقونه ضائع کړے وؤ نو چه ڈ هغې مطالبه رانه او نکړي او وجه ڈ ترتيب هم دا ده چه زيات حقوق ڈ ورور خوړلے کيدے شي بيا ڈ مور ځکه چه هغه کمزورے ده بيا ڈ پلار چه ڈ هغه حقونه ډير دي او په حال ڈ بوډاوالي کښې هغه ډير ضائع کړے شي، بيا ڈ ښځې چه ڈ مينے ڈ وجے نه خو حقونه ادا کوي خو ڈ هغې ڈ کمزوروالي ڈ وجے نه يا ڈ بلے ښځې ڈ وجے نه حقونه ئې برباد کړے وي او بيا ڈ ځامنو حقونه ئې برباد کړي وي هغوي ته ئې ديني تربيب نه دے ورکړے. دا رنګ دا قرار ڈ دے وجے نه دے چه هر انسان ڈ ځان په غم کښې دومره مشغول دے چه څومره احب فالاحب دے نو هغه به ڈ دهٔ نه هير شي او هغې ته به ڈ څه فائدے ورکولو نه عاجز وي نو تيخته به کوي نو روستو جمله ڈ دے علت دے.

يَوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ﴿٣٨﴾ ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ ﴿٣٩﴾

په دغه ورځ رڼرا کوونکي دي ، خندا به کوي خوشحاله به وي .

وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ ﴿٤٠﴾ تَرْهَقُهَا

او بعضې مخونه په دغه ورځ به په هغې باندې دوړې وي ، پټ کړې به وي هغې لره

شَأْنٌ يُّغْنِيهِ حديث دَ ابن عباس رضی الله عنهما کښې مرفوعًا وارد دی چه انسانان به ورځ دَ قيامت کښې راجمع کړيشي بغير دَ پيزار او بغير دَ جامو نه او نا سنته به وی نو بی بی دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم تپوس اوکړو چه يا رسول الله ! ايا دَ يو بل عورت ته به نه گوری نو هغوی او فرمائيل چه هغه حالت ډير مشغولوونکے دے او دا آيت يئے او لوستلو .

۳۸ ـ ۳۹ تقسيم دے دَ خلقو په قيامت کښې دوه قسمونو ته په دے ايا تونو کښې قسم اول (چه سورة نازعات دَ هغوی په صفت کښې من خاف مقام ربه آه وئيلے وو) دَ هغوی بشارت دے .

مُّسْفِرَةٌ رڼرا والا به وی او دَ دے يو سبب په احسن طريقه سره اودس کول دی لکه چه صحيح حديث کښې راغلے دی لکه په سورة آل عمران ـ ۱۰۷ کښې هم دی .

ضَاحِكَةٌ ضحك په اصل کښې دَ خُلے صفت دے نو مخونو ته نسبت دَ ملابست دَ وجے نه دے يا ضحك په معنىٰ دَ خوشحالے دے ذکر دَ مسبب مراد ترينه سبب دے . مُّسْتَبْشِرَةٌ يعنى دَ خوشحالے اثار به دَ مخ په څرمن کښې ښکاره کيږی .

۴۰ ـ ۴۲ په دے کښې حال دَ هغه چا ذکر کوی چه په سورة نازعات کښې دَ هغوی صفت يئے په امامن طغىٰ آه سره ذکر کړے وو دَ هغوی دَ پاره تخويف اخروی دے .

عَلَيْهَا غَبَرَةٌ دا مقابل دَ مسفرة دے . قَتَرَةٌ توروالى ته وئيلے شی چه دوړه او توروالے چه په مخ باندے جمع شی نو ډير قبيح ښکاريږی او بل قول دا دے چه قتره هم دوړے ته وئيلے کيږی ليکن هغه دوړه چه دَ زمکے نه آسمان طرف ته خيژی هغه قتره ده (پاتے په بل مخ)

قَتَرَةٌ ﴿۴۱﴾ أُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَفَرَةُ ٱلْفَجَرَةُ ﴿۴۲﴾

| تور والی۔ | دغه کسان دوی | کافران | نافرمان دی۔ |
|---|---|---|---|

اوکومه چه دَ برے ته زمکے طرف ته راکوځیږی نو هغه غبره ده یعنی دواړه قسمونو دوړه به وربانده پرته وی۔
ٱلْكَفَرَةُ ٱلْفَجَرَةُ یعنی په اعتبار دَ عقیدے سره کافر او په عمل سره فاجر دی لکه څنګه چه دوی دَ کفر سره فجور جمع کړے دےنو دَ دوی په سزا کښ به هم غبره دَ قتره سره یوځائے کړے شی۔

ختم شو تفسیر دَ سورة عبس په توفیق دَ الله تعالیٰ سره والحمد لله علیٰ ذالك

سُوْرَةُ التَّكْوِيْرِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۲۹ رُكُوْعُهَا ۱

إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ۝۱ وَإِذَا النُّجُومُ

هر کله چه نـمر را او نغختلے شي او هر کله چه ستوری

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة التکویر او دَ دے بل نوم اذالشمس کورت دے.

ربط دَ دے سورت دَمخکښې سره په څو وجو دے اوله وجه داده چه مخکښې سورت کښې اثبات دَ بعث بعد الموت وو نو په دے سورت کښې دَ هغې حالات ذکر کوی. دویمه وجه داده په هغه سورت کښې راتلل دَ صاخه (قیامت) ذکر شول نو په دے سورت کښې مقصد دَ بعث ذکر کوی چه هغه ملاقات دَ انسان دے دَ خپل عمل سره. دریمه وجه داده چه په هغه سورت کښې زجر وو منکرینو دَ قیامت ته او پس دے سورت کښې زجر دے منکرینو دَ رسول او قران ته. څلورمه وجه داده چه په هغه سورت کښې ذکر شو چه قران دَ سفره په لاسو نو کښې دے نو په دے سورت کښې دَ هغوی نه دَ لوئے سفیر ذکر کوی چه هغه قران راوړے دے یعنی جبرئیل علیه السلام.

دعوی دَ دے سورت. تخویف دے په ذکر دَ احوالو دَ قیامت سره دَ ذکر دَ مقصد دَ قیامت نه چه ملاقات دَ انسان دے دَ خپلو عملونو سره او سبب دَ تخویف انکار دے دَ هغه قران نه چه جبرئیل امین راوړے دے په هغه رسول صلی الله علیه وسلم باندے چه په غیب باندے ضنین نه دے. او په دے سورت کښې یو اسم دَ الله تعالی ذکر دے یعنی رب العالمین.

خلاصه دَ سورت داده چه دَ قیامت دولس حالات ذکر کوی چه شپږ دَ هغې نه په وخت دَ فنا کښې مخکښې دَ بعث بعد الموت نه دی او شپږ په وخت دَ بعث بعد الموت کښې او بیا ئے (رپاتے په بل مخ)

انْكَدَرَتْ ۝۲ وَاِذَا الْجِبَالُ سُيِّرَتْ ۝۳

| خرہ شی | او هر کله چه غرونه | روان شی |
|---|---|---|

مقصد دَ قیامت ذکر کړے دے تر ۱۴ پورے او بیا درے شواهد دی په صداقت دَ رسول او قرآن باندے په ذکر دَ شپږ صفتونو دَ جبرئیل علیه السلام او په درے حالاتو دَ رسول صلی الله علیه وسلم سره په لس آیاتو نو کښ تر ۲۴ پورے بیا ذکر دَ درے صفاتو دَ قرآن دے په ۲۵ ۲۷ ۲۸ کښ او په مینځ کښ په ۲۶ کښ زجر دے او عجز دَ انسان ذکر کوی چه دَ دهٔ مشیت هم تابع دے دَ مشیت دَ الله تعالیٰ او دا متعلق دے دَ زجر سره۔

او حدیث دَ ترمذی کښ راغلے دی چه څوک اوس غواړی چه ورځ دَ قیامت داسے اوینی لکه دَ سترګو لیدل نو او دِے لولی اذا الشمس کورت او اذا السماء انفطرت او اذا السماء انشقت۔

**تفسیر** ۱ كُوِّرَتْ دَ تکویر نه دے راجمع کول دَ اجزاؤ دَ یو ځیز او رانغښتل لکه چه پګړئ را نغښتے شی په سر باندے نو دغسے نمر به راغونډ کړے شی او رڼا به ئے ختمه کړے شی بیا به او غورځولے شی۔

۲ دا دویم حال دے انْكَدَرَتْ انکدار اثر او رڼا ختم کیدل او راغورځیدل او رادوړیدل درے واړه معانے صحیح دی۔

نجوم نه نجوم ځکه وئیلے کیږی چه دَ آسمان په طرف کښ دَ دے رڼا ښکاریږی نو فنا دَ دے مقابل ده۔

۳ دا دریم حال دے مخکښ ئے احوال علویه ذکر کړل نو دا احوال وسطیه او سفلیه ذکر کوی۔

سُيِّرَتْ دَ خپلو ځایونو نه روان کړے شی نو کتے به ئے شګے شی نو بیا به ورے شی نو بیا به دوړه شی نو سراب به شی لکه چه سورة نبأ کښ ذکر شوی دی او سورة کهف ۴۷ کښ هم ذکر دی۔

وَإِذَا الْعِشَارُ عُطِّلَتْ ۝٤ وَإِذَا الْوُحُوشُ

او هر کله چه د لسو میاشتو بلاربې اوښې ازادې پریښودلې شي، او هر کله چه ځنګلي ځناور

حُشِرَتْ ۝٥ وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ ۝٦

راجمع کړیشي، او هر کله چه دریابونه ډک کړې شي،

ـــــــــــــــ

سـ۴ داڅلورم حال دے وَإِذَا الْعِشَارُ عشار جمع دَ عشراء ده هغه اوښه چه دَ هغې په حمل باندے لس میاشتې تیرے شوے وی نو دا دَ مالک په نیز ډیر محبوب مال وی او هغه ترینه هیڅ غفلت نه کوی انتظار کوی دَ هغې دَ بچي راوړلو ـ عُطِّلَتْ یعنی مالکان په دَ هغې دَ ساتنې او دَ اوبو ورکولو او کیاه ورکولو نه غافل شي دَ ډیر هیبت دَ وجے نه ـ اشاره ده چه دَ قیامت په رعب سره دَ دُنیا دَ خیزونو نه محبت پرے کیږی ـ په لفظ دَ عشار کښ نورا قوال هم شته وریځے، زمکه لیکن دغه اقوال دَ سلفو نه نقل نه دی ما سیوا دَ قول اول نه ـ

سـ۵ داپنځم حال دے وَإِذَا الْوُحُوشُ هغه ځناور چه دَ انسانانو نه تیختله کوی یعنی صحرائی ځناور لیکن دَ ډیر هیبت دَ وجے نه به انسانانو ته نزدے جمع کړے شي ـ حُشِرَتْ حشر جمع کیدلو ته وئیلے شي لکه حشرنا علیهم کل شي قبلاً سورة انعام سـ۱۱۱، اوالطیر محشوره او دا رنګ په سورة انعام سـ۳۸ کښ ـ نو معنی دا چه دغه صحرائی ځناور به راجمع کړیشي مخکښ دَ مرګ دَ هغوی نه دَ هیبت دَ وجے نه نو بیا به مړه کړیشي او دغه مراد دے په قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما کښ چه حشر دَ وحوشو مرګ دَ هغوی دے او بل قول دا دے چه روستو دَ مرګ نه به دوی دوباره ژوندی کړے شي او قصاص به دَ دوی په مینځ کښ وا خستلے شي نو بیا به مړه شي لیکن دا په صحیح مرفوع حدیث سره ثابت نه ده ـ

سـ۶ داشپږم حال دے سُجِّرَتْ ډک به کړے شي دَ اوبو نه نو بهتولے اوبه به دَ یو بل سره یوځائے کړے شي او دَ دوی دَ مینځ نه به پرده (برزخ) لرے کړیشي نو بیا به په مخ دَ زمکه باندے راپاتے په بل مخ)

وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ ﴿٧﴾ وَإِذَا الْمَوْءُدَةُ

او هرکله چه ارواح د بدنونو سره یو ځائے کړیشی ، او هرکله چه د ژوندئ خخئے کړیشوې پهٔ باره کښ

سُئِلَتْ ﴿٨﴾ بِأَيِّ ذَنْبٍ قُتِلَتْ ﴿٩﴾

تپوس اوکړیشی ، چه پهٔ څهٔ ګناه باندے قتل کړے شوېده .

او بیولے شی. بلهٔ معنیٰ دا چه په دریابونو باندے به اور بل کړیشی ځکه چه په حدیث د ابوداؤد کښ وارد دی چه إِنَّ تحت البحر نارا لاندے د سمندر ته اور دے (یعنی تیل پټرول دی دا به پټول اور شی) او سورة طور سـ۶ کښ هم دا سے تیر شویدی.

سـ۷ د دے ځائے نه هغه شپږ احوال ذکر کوی چه د بعث بعد الموت په وخت کښ دی. نو دا اول حال دے. زُوِّجَتْ تقسیم به کړے شی درے قسمونو ته السّابقون اصحابُ الیمین اصحابُ الشمال لکه چه سورة الواقعه سـ۷ کښ دی. دویمه معنیٰ دا چه هر صفت او عمل والا خلق به د یو بل سره جمع کړے شی صالح به د صالح سره او فاجر به د فاجر سره یهود به د یهودو سره نصاریٰ د نصاریٰ سره مجوس د مجوسو سره منافقان به د منافقانو سره. دریمه معنیٰ دا ده چه ارواح به د ابدانو (بدنونو) سره یو ځائے شی او دا د بعث معنیٰ ده او دا قول ابن کثیر د ډیرو سلفو نه نقل کړیدے او دا دلیل دے چه د دغه وخت نه مخکښ په برزخ کښ روح په بدن کښ نه دے داخل کړے شوے په دا سے طریقے سره چه حقیقی ژوند ترینه جوړ شی او د دے تحقیق په سورة زمر سـ۴۲ کښ تیر شوے دے.

سـ۸ سـ۹ دا دویم حال دے اَلْمَوْءُدَةُ جاهلیت والو به د عار (شرم) د وجے او د لوږے د وجے نه لونړه ژوندے په زمکه کښ خښولے چا به خو په وخت د ولادت کښ دا سے کول چا به د شپږو کالو په عمر کښ دا سے کول او دا لوئے ظلم دے. او حدیث د مسند احمد کښ راغلے دی چه عزل کول هم وا دِ خفی دے. یعنی د اولاد پیدا ئش منع کول که په عزل سره وی یا په نورادویانو مانع حمل سره وی بغیر د عذر

وَإِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتْ ﴿١٠﴾ وَإِذَا السَّمَاءُ كُشِطَتْ ﴿١١﴾

او هر کله چه عملنامے راخورے کړے شي ، او هر کله چه د آسمان نه پوستکے (دېستلے شي)

شرعي نه دا حرام کار دے او خصوصًا هغه څوک چه د روزئ د تنګسیا په عقیده سره دا عمل کوی نو دا یقینًا حرام دی. سُئِلَتْ دا په معنیٰ د سئلت عنها دے یعنی د هغې په باره کښې به د هغې د والدینو سره حساب کیږی چه په کوم ګناه سره دا تا سو وژلے ده یا معنیٰ دا ده چه د موءُدے نه تپوس کیدے شي لیکن تپوس د دے په اصل کښې توبیخ ده قاتلانو ته لکه تپوس د عیسیٰ علیه السلام نه په "أأنت قلت للناس" اه سره چه هغه په اصل کښې توبیخ ده مشرکانو نصاریٰ ته. او د دے تخصیص په دے وجه سره دے چه مور او پلار د موءُدے وائي چه زموږ خپله لور ده که هرڅه ورسره کوؤ زموږ اختیار دے زموږ نه د دے تپوس هیڅوک نشي کولے نو د هغې ذکر اوشو او په دے کښې اشاره ده چه په قیامت کښې د شرک او کفر نه علاوه د نورو ګناهونو او ظلمونو حساب به هم کیدے شي. او قرطبي وئیلي دی چه دا آیت دلیل دے چه عذاب به بغیر د جرم نه نه وی او دا رنګ واړه اولاد د مشرکانو باندے هم عذاب نیشته دے.

سلہ دا دریم حال دے وَإِذَا الصُّحُفُ مراد د دے نه صحیفے د عملونو دی چه ملائکو لیکلي دی. نُشِرَتْ کولاؤ به کړے شي، کله چه په مرګ د انسان سره صحیفه د هغه راغونډه کړے شي نو په ورځ د قیامت به پرانستلے شي. دویم معنیٰ دا ده چه عملنامے به تقسیم کړے شي چا ته په ښی لاس کښې او چا ته په ګس لاس کښې ور کړے شي.

سلا دا څلورم حال دے وَإِذَا السَّمَاءُ مراد د جنسِ سماء نه ټول اسمانونه دی. كُشِطَتْ کشط او قشط په اصل کښې د اوښ وغیره نه څرمن ویستل دی په زور سره نو مراد دا دے چه موجوده شکل د آسمان به بدل کړے شي اګرچه اصل به باقي وی لکه په دے قول د الله تعالیٰ سره يوم تبدل الارض غير الارض والسموات سورة ابراهيم سلہ مراد د دے نه دا چه آسمانونه به د خپلو ځایونو نه لرے کړے شي.

وَإِذَا الْجَحِيمُ سُعِّرَتْ ﴿١٢﴾ وَإِذَا الْجَنَّةُ

او هر کله چه جهنم تیزه کړې شي ، او هر کله چه جنت

أُزْلِفَتْ ﴿١٣﴾ عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا أَحْضَرَتْ ﴿١٤﴾

رانژدې کړې شي ، پوهه به شي هر نفس په هغه عمل باندې چه دهٔ حاضر کړې وي .

فَلَا أُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ ﴿١٥﴾ الْجَوَارِ الْكُنَّسِ ﴿١٦﴾

نو داسې نه ده، قسم کوؤم په ستورو پټیدونکو باندې، چه روان دي پټکاره کیږي دَ شپې ،

سـ۱۲ دا پنځم حال دے سُعِّرَتْ دَ هغې په اور کښې اوګرموالی کښې او تیزۍ کښې به زیاتے کیدېشي لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښې كلما خبت زدناهم سعيرًا (سورة اسراء سـ۹۷) يعنې کمۍ به هغې کښې نه راځي .

سـ۱۳ دا شپږم حال دے نو ټول دولس حالات پوره شول. أُزْلِفَتْ رانیزدے به کړیشي متقيانو ته لکه په سورة ق سـ۳۱ کښې ذکر دی یعنې مؤمنان به هم جنت طرف ته روان وي لکه سورة زمر سـ۷۳ کښې او جنت به هم ورته رانیزدے شي.

سـ۱۴ دا جواب دے دَ إِذَا الشَّمْسُ نه دَ دولس حالاتو. نَفْسٌ نکره دَ پاره دَ عموم ده هر نفس مراد دے . مَا أَحْضَرَتْ عمل دَ خیر او شر دواړه مراد دی لکه په سورة العمران سـ۳۰ او سورة القيامة سـ۱۳ او سورة زلزال سـ۷ سـ۸ کښې ذکر دی او أَحْضَرَتْ نه مراد کول دَ عمل دی په دنیا کښې نو نسبت حقيقتًا دے یا مراد دَ دے نه دَ اعمالو حاضریدل دی په عملنامو او په حساب کښې نو نسبت ئې انسان ته مجازي دے .

سـ۱۵ سـ۱۶ دا قسم دے په صداقت دَ رسول او قران باندے په احوالو دَ ستورو سره چه حال دَ راختلو او دَ ګرځیدلو او دَ غروب دے، تحقيق ئې دَ لَا أُقْسِمُ په تفسیر کښې سورة واقعه کښې تیر شویدے.
الْخُنَّسِ جمع دَ خانس ده پټیدل روستو دَ ښکاره کیدلو نه یعنې چه دَ شپې ښکاره وي نو دَ ورځې پټ شي . الْجَوَارِ جمع دَ جارية ده یعنې دغه ستورې چه چلیږي په اسمان کښې . الْكُنَّسِ جمع دَ كانس ده ، داخلیدونکے په خپل مکان کښې په داسې طریقې سره چه په هغه

وَالَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ ﴿۱۷﴾ وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ ﴿۱۸﴾

او قسم دے په شپه باندے کله چه شا کړی ، او قسم دے په صبا باندے کله چه ساه واخلی ،

إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿۱۹﴾ ذِي قُوَّةٍ

یقینًا دا پیغام خاځا دَ رسول عزت والا دے ، قوت والا دے

مکان کښں ښکاریږی یعنی ستوری دَ شپے په خپلو منزلونو کښں وی او ښکاریږی - او غوره دا ده چه مراد دَ دے نه ټول ستوری دی او دا درے واړه حالتونه دَ ټولو ستورو دی ځکه دا وئیل چه اُوڅه ستوری گرځی او نور په ځائے ولاړ دی دَ دے دَ پاره هیڅ صحیح دلیل نیشته دے.
او بعض مفسرینو دَ دے نه هوسئ یا وحشی غواګانے اراده کړے دی لیکن ابن قیم په بدائع التفسیر ص ۱۳۲/۵ کښں په هغے باندے په لس وجوهو سره رد کړے دے ، او مناسبت دَ دے حالاتو دَ ستورو دَ صداقت دَ قرآن سره روستو ذکر کیږی.
ﮐا ۱۸ دا هم قسمونه دی مناسب دی دَ مځکښں سره ځکه چه شپه وخت دَ ښکاره کیدلو دَ ستورو دے او ورځ وخت دَ پټیدلو دَ هغے دے.
إِذَا عَسْعَسَ اکثر اهل لغتو وئیلے دی چه دا لفظ دَ اضداد و نه دے یعنی شا کول او مخامخ کیدل دواړو ته وئیلے شی لیکن دلته معنیٰ دَ شا کولو غوره ده ځکه چه دَ روستو جملے سره او دَ سورة مدثر ۳۳ سره موافقت لری او ابن جریر هم دا معنیٰ غوره کړے ده.
إِذَا تَنَفَّسَ تنفس په اصل کښں دا سے سا اخستلو ته وئیلے شی چه په هغے سره طبعیت سپک شی او خوشحاله شی گویا چه شپه په مثال دَ غم او دَ حزن ده او صبا کیدل خو دَ خوشحالئ سا اخستل دی او مراد دا دے چه صبا ښکاره شی او اوګد شی نو ورځ شی.
س ۱۹ دا جواب قسم دے او مقصد په دے کښں اثبات دَ صداقت دَ قرآن دے او مناسبت دَ قسم او جواب قسم دا دے لکه چه ستوری پټیږی او ښکاره کیږی او چلیږی نو دا رنګ آیاتونه او سورتونه دَ قرآن وی چه په قسطونو سره دنیا والو ته رالیږل شوی وو دَ آسمان نه ... (مخ)

عِنْدَ ذِی الْعَرْشِ مَکِیْنٍ ﴿۲۰﴾ مُّطَاعٍ ثَمَّ اَمِیْنٍ ﴿۲۱﴾

په نیز د خاوند د عرش مرتبې والا دے، خبرې یې منلې کیدې شي هلته امانتدار دے.

او ښکاره کیږي روستو د پټ والي د دے نه په علم د الله تعالیٰ کښې. او دا رنګ چه توره شپه لاړه شي او رڼا ورځ شي نو دا رنګ د قرآن کریم په راتللو تیارے د کفر او د شرک او د جهل لاړے او رڼا د ایمان او اسلام قائمه شوه او دغه مثالونه یقیني محسوسي دي نو دا رنګ قرآن هم یقیني دے.

رَسُوْلٍ مراد د دے نه رسول ملکي دے یعني جبرئیل علیه السلام او قول په معنیٰ د پیغام او تبلیغ دے ځکه چه لفظ رسول دلالت کوي چه کار د هغه پیغام رسول دي جوړول نه دي او سورة الحاقه ښکښې رسول بشري مراد وؤ.

کَرِیْمٍ د شرافت صفتونه پکښې ظاهري او باطني راجمع دي د شیطان پشان خبیث او ذلیل نه دے او دلیل په کرامت د جبرئیل باندے کرامت د الفاظو د قرآن دے.

۲۰ ذِیْ قُوَّةٍ په دے کښې اشاره ده چه شیطانان دهٔ ته نزدے نشي راتللے. په وحي راوړلو کښې د دهٔ مقابله نشي کولے. عِنْدَ دا عند د قرب او مکانت د پاره دے او متعلق دے په مکین پورے او مقدم کړیدے اشاره ده چه دا مکانت د بل هیڅ ملک د پاره حاصل نه دے او دا قرب عندالله دلیل دے چه دے دروغژن او مفتري نه دے.

۲۱ ثَمَّ د پاره د ظرف دے مراد ترینه عالم بالا د اسمانونو دے او دا صفت دلالت کوي چه جبرئیل لکه چه د الله تعالیٰ په نیز عزتمند دے نو دا سے د ټولو ملائکو په نیز هم معزز دے ځکه چه ټول یې اطاعت کوي او په دے کښې اشاره ده چه زړه چه دا رسول صلی الله علیه وسلم به هم مطاع په زمکه کښې او کړځي پشان د جبرئیل په اسمانونو کښې.

اَمِیْنٍ یعني په وحي کښې هیڅ کمے زیاتے یې نه دے کړے او پوره پوره یې ادا کړیده.

وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ ﴿٢٢﴾ وَلَقَدْ رَآهُ

او نه دے ستاسو ملګرے لیونے . او یقینًا لیدلے دے هغه لره

بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ ﴿٢٣﴾ وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ

په کناره (غاړه) ښکاره کښې . او نه دے دے په دې بیا نولو کښې

۲۲ ۔ ۲۳ ۔ ۲۴ دا تزکیه دَ رسولِ بشری ده روستو دَ تزکیے دَ رسولِ ملکی نه او تصحیح او توثیق دَ سند دَ قرآن کریم دے.

وَمَا صَاحِبُكُمْ . صاحب په معنیٰ دَ خیر خواه او ناصح دے یا هغه چه دَ قوم ستاسو نه دے.

بِمَجْنُونٍ په دے کښې رد دے دَ قول دَ مشرکانو چه نبی صلی الله علیه وسلم ته یې لیونیا پیریانے وئیلو او حال دا دے چه دوی ته ښه معلومه وه چه هغه اَعْقَل دَ عقلاؤ نه دے.

وَلَقَدْ رَآهُ ضمیرِ مفعول راجع دے جبرئیل ته اشاره ده چه مجنون هغه وی چه جنات وینی او دے نبی صلی الله علیه وسلم خو جبرئیل لیدلے دے په اصلی شکل باندے چه دَ هغه شپږسوه وزرے وے.

بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ ښکاره کنارے دَ مشرقی جانب دی نو مراد مشرقی اطراف دي یا ټول اطراف ترینه هم مرادکیدے شی.

عَلَى الْغَيْبِ دَ دے نه مراد وحی دَ قرآن ده او دے ته غیب اضافی وئیلے شی ځکه چه په حواسو او په عقل سره ادراک نشی کیدے بلکه دا قرآن په سبب دَ وحی سره نبی صلی الله علیه وسلم ته رالیږلے شوے دے.

بِضَنِينٍ په ضاد سره په معنیٰ دَ بخیل دے یعنی نبی صلی الله علیه وسلم وحی نه پټه وی بلکه هرچا ته پوره ښکاره کوی یعنی دیر سخی دے او پشان دَ کاهن نه دے چه بعض خبرو نه پټوی دَ پاره دَ طلب دَ اجرت او دَ عزت په خلقو کښې . او په ظاء سره په معنیٰ دَ تهمتی یا ګمانی دے چه یقین یې نه وی یعنی (رپاتے په بل مخ)

بِضَنِيْنٍ ﴿۲۴﴾ وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطٰنٍ رَّجِيْمٍ ﴿۲۵﴾

بخل کوؤنکے ، او نه دے دا وینا دَ شیطان دټلے شوی .

فَاَيْنَ تَذْهَبُوْنَ ﴿۲۶﴾ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ

نو کوم خوا ځئ تاسو . نه دے دا مګر نصیحت دے

لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۷﴾ لِمَنْ شَآءَ مِنْكُمْ

دَپاره دَ ټولو خلقو ، دَپاره دَ هغه چاچه غواړی ستاسو نه

په دے رسول بانـدے تهمت دَ دروغژن اوخیانت کرنیشته اودارنګ دے په دے خبر ورکولوکښ په ګمان بانـدے کار نه کوی بشان دَکاهنانو بلکه یقینی خبر ورکوی . (تنبیه) زمخشری او شربینی وغیره په دے مقام کښ دَ ضاد اوظاء فرق بیان کړیدے سرهٔ دَ مشابهت دَ هغوی نه په بعض صفاتو کښ اوهغه دَعلم تجوید مسئله ده چه صفتو نه اومخارج دَ حرفونو بیانوی او هغه ضروری علم دے .

۲۵ دا معطوف دے په ۱۹ بانـدے رد دَ قول دَ مشرکانو دے چه هغوی نسبت دَ قران کهانت ته کوؤ حاصل دَ رد دا دے چه کاهن بانـدے شیطان راځی اودارنګ کاهن پخپله هم شیطان وی او قران قول دَ شیطان نه دے لکه چه په سورة شعراء ۲۱۰ ۲۱۲ کښ تیر شویدی .

۲۶ دا زجر دے یعنی دَ الله تعالیٰ دَ رسول او دَ کتاب نه بل کوم شخص اوکتاب ته تاسو ورزئے یعنی دَ دۀ نه حقه بله لار کومه ده ؟ آیْنَ بغیر دَ اِلیٰ او سرهٔ دَ اِلیٰ دواړو سره استعمالیږی نو په یکښ دَ دوی ګمراهئ ته اشاره ده .

۲۷ دا ترغیب دے قران ته هُوَ ضمیر قران ته راجع دے یا مضمون دَ دے سورت ته راجع دے .

ذِكْرٌ یادوؤنکے دے دَ توحید او دَ احکامو دَ الله تعالیٰ او وعظ او نصیحت دے دَپاره دَ ویرے ورکولو دَ قیامت نه .

أَنْ يَسْتَقِيمَ ﴿٢٨﴾ وَمَا تَشَاءُونَ إِلَّا

دا چه برابر روان شي . او تاسو خو نه غواړئ مګر

أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٢٩﴾

هغه چه اوغواړي الله تعالی چه رب دَ ټولو خلقو دے .

۲۸ تا ۲۹ په اول ایت کښ شرط دَ ذکر ئے راوړو چه هغه اراده اوطلب دَحق دے یعنی قران کښ فائده طلب کوونکی دَ هدایت لره .
او لِمَنْ شَآءَ رد دے په جبریه باندے یعنی دَ انسان دَ پاره مشیت او اراده اوفعل شته او په دویم کښ رد دے په قدریه معتزله باندے چه اراده دَ انسان مستقله ګڼړی .
قرطبی دَ وهب بن منبه نه روایت راوړے دے چه چاڅان ته دَ یو خیز دَ مشیت نه نسبت اوکړو نو کفر ئے اوکړو مراد دَ دے نه مشیت او قدرتِ مستقله دے او ایا تونه په دے باب (چه هرڅه مشیت دَ الله تعالی سره دی) کښ ډیر دی .

الحمد لله چه ختم شو تفسیر دَ سورة تکویر

| اياتها ۱۹ رکوعها ۱ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | سُوۡرَةُ الۡاِنۡفِطَارِ مَكِّيَّةٌ |
|---|---|---|

اِذَا السَّمَآءُ انۡفَطَرَتۡ ۙ﴿۱﴾ وَاِذَا الۡكَوَاكِبُ انۡتَثَرَتۡ ۙ﴿۲﴾

هر کله چه اسمان اوچوی ، او هر کله چه ستوری او دوړیږی ،

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**سورة الانفطار** او دیته سورة انفطرت او اذا السماء انفطرت او سورة المنفطره هم وئیلے شی۔

**ربط دَ دے سورت** دَماقبل سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه داده چه په هغه سورت کښ زجر وو په اېن تذهبون سره او په دے سورت کښ زجر دے په ما غرك اه سره دویمه وجه داچه په هغه سورت کښ دولس احوال ذکر وو او په دے سورت کښ دَهغے اختصار کوی په څلورو حالاتو سره ۔ دریمه وجه دا چه په هغه سورة کښ اثبات دَ صداقت دَ قران او رسول وو نو په دے کښ سخت زجر دے منکرینو دَ هغے ته۔

**دعوٰی دَ سورت** اثبات دَ قیامت دے په ملاقات دَ انسان سره دَ هغه کارونو چه کړے وی او هغه چه پریخودلے وی سرهٔ دَ زجر نه په ارتکاب دَ گناهونو په سبب دَ اغترار سره په احساناتو دَ رب العالمین او په نسیان دَ یوم الدین سره۔ او په دے سورت کښ درے اسماء حسنیٰ او پنځه صفات فعلیه دَ الله تعالی ذکر دی.

**خلاصه دَ سورت** داده۔ اول څلور احوال دَ قیامت ذکر کوی بیا دعوٰی دَ سورة تر ۵ پورے بیا زجر اول دے په اغترار دَ انسان په خپل رب باندے چه دَ هغه پنځه صفتونه ئے ذکر کړے دی تر ۸ پورے بیا دویم زجر دے په تکذیب سره، سرهٔ دَ وجود دَ کراماً کاتبین نه او دَ هغوی څلور صفتونه ئے ذکر کړی دی تر ۱۲ پورے۔ بیا بشارت او تخویف اخروی دے په ذکر دَ درے حالاتو دَ منکرینو

وَإِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ ﴿٣﴾ وَإِذَا الْقُبُورُ

او هر کله چه دریابونه او بیولے شي . او هر کله چه قبرونو والا به

بُعْثِرَتْ ﴿٤﴾ عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ

راوچت کړے شي . پوهه به شي هر نفس په هغه عمل چه مخکښ ئې لیږلے دے

وَأَخَّرَتْ ﴿٥﴾ يَا أَيُّهَا الْإِنسَانُ مَا غَرَّكَ

او روستو ئې پریخودے دے . اے انسانه څه خیز دهوکه درکړیده تا ته

او درے حالات دَ یوم الدین سره او آخری حال ئې رد دَ شرک فی التصرف دے په آخرت کښ هم .

تفسیر سا سلا دا اول او دویم حال دے إِذَا السَّمَاءُ تول اسمانونه مراد دی . انْفَطَرَتْ فَطَرَ تازه چودلوته وئیلے شي یعني اول ځل به اوچوي چه دَ دے نه مخکښ پکښ فطورنه وو . لکه چه دَ یو بچي اول غابښ را اوخیژي نو عرب وائي فطرناب البعیر . انْتَثَرَتْ په دے کښ ترقي ده دَ مخکښ سورت نه هلته ئې انکدار (خړو الے) ذکر کړے وو نو دَ هغې نه روستو انتثار دے یعني بے ترتیبه رادوریدل دَ ستورو نو اسمان به ترینه خالي شي .

سلا په دے کښ دریم حال دے او ترقي دَ ماقبل نه په هغې کښ سُجِّرَتْ (ډک به کړے شي) ذکر وو او دلته تفجیر دے یعني په مخ دَ زمکه با ندے به روان کړے شي او یو بل سره به هم ګډ کړے شي .

سك په دے کښ څلورم حال دے . هغه درے حالات دَ وخت دَ فناءَ وو او دا حال دَ بعث بعد الموت دے او په دے کښ هم دَ ماقبل نه ترقي ده هلته صرف دَ موؤده ذکر وو او دلته دَ ټولو اهل قبور بعث ذکر کړے دے . بُعْثِرَتْ چه اوتړولے شي او لاندے باندے کړے شي او مړي ترینه ژوندي راوویستلے شي او سورة عادیات سو کښ هم دی .

سه دا پنځم حال دے او جواب دے دَ إِذَا او دعوی دَ سورت ده . عَلِمَتْ نَفْسٌ اه فرق په میني دَ سورة تکویر سك او دَ دے ایت کښ دا دے چه هلته علم تفصیلي مراد دے ځکه چه هلته (پاڼے په بل مخ)

بِرَبِّكَ الْكَرِيْمِ ۝ الَّذِيْ خَلَقَكَ فَسَوّٰىكَ

په رب ستا چه عزت والا دے ، داسے ذات دے چه پیدا کړے یې ته نو برابر یې کړے

دَ صحیفو نشر او تقسیم هم ذکر وُو او په هغې سره علم تفصیلی حاصلیږی او دلته علم اجمالی مراد دے یعنی په وخت دَ بعث من القبور کښ اجمالی علم حاصل شی. دویم فرق دا دَےچه په هغه سورت کښ دَ علم نه مراد علم دَ حقیقت دَ هغه عملونو دےچه انسان کړیدی هغه ښهٔ دی او که ناکاره دی او دلته مراد دَ علم نه علم دَ جزاء او دَ حساب دے مَا قَدَّمَتْ نیک اعمالو ته اشاره ده وَاَخَّرَتْ ناکاره عملو نه مراد دی یا دَ اول نه اعمال کول مراددی که ښهٔ وی او که بد وی او دَ اخرت نه پریښودل دَ عملونو مراد دی که ښهٔ وی او که بد وی.

ستْ په دے کښ سخت زجر دے او دا به ورته وئیلے شی په ورځ دَ قیامت کښ یعنی هرکله چه عالِم شی په جزاء دَ خپلو عملونو باندے نو افسوس ته به کوی نو ورته به او وئیلے شی چه ماغرّك یعنی فی الدنیا. یا دا خطاب په دُنیا کښ هر انسان گناهگار ته دے که کافر دے او که گنهگار مسلمان دے. مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ مراد دَ دهوکه کیدلو نه کفر او شرک او تکذیب او گناهونه کول دی په دے وجه او گمان سره چه الله تعالیٰ عذاب زر نه ورکوی یا په دے وجه سره چه دَ هغه صفت غفور رحیم دے یا په دے گمان سره چه الله تعالیٰ زما په حال علم نه لری یا په دے زعم چه الله تعالیٰ په څه خیز باندے قدرت نه لری یا په دے سبب چه الله تعالیٰ هر حاجت پخپله نشی پوره کولے یا په دے وجه سره چه الله تعالیٰ کریم دے. الْكَرِيْمِ ابن کثیر وئیلے دی چه دا لفظ دَ زیاتے زورَنے دَ پاره دے یعنی الله تعالیٰ کَرَم و رحم کړے دے او اے انسانه ته دَ هغه نه عصیان کوے او فراء بغوی وئیلے دی چه په دے لفظ کښ تلقین دَ جواب دے لیکن صرف مؤمن گنهگار دَ پاره چه هغه به او وائیُ غَرَّنِیْ کَرَمُكَ لکه چه دَ فضیل بن عیاضؒ نقل کړے شویدی چه هغه وئیلے دی چه الله تعالیٰ ما او دروی په ورځ دَ قیامت او تپوس رانه اوکړی ماغرك بربك الكريم؟ نو زه به او وایم چه مغرور کړے ووُ ما لره ستا پردے اچولو په ما باندے ځکه چه ته کریم ستّار یې.

فَعَدَلَكَ ﴿۷﴾ فِيٓ اَيِّ صُوۡرَةٍ مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ ﴿۸﴾

نو برابر ئې کړې، په هر شکل چه خوښ وو نو ته ئې جوړ کړے ئې.

كَلَّا بَلۡ تُكَذِّبُوۡنَ بِالدِّيۡنِ ﴿۹﴾ وَاِنَّ

هیچرې داسې نه ده بلکه تاسو تکذیب کوئے د ورځ د جزاء، او یقیناً

عَلَيۡكُمۡ لَحٰفِظِيۡنَ ﴿۱۰﴾ كِرَامًا كَاتِبِيۡنَ ﴿۱۱﴾

په تاسو باندے مقرر دی حفاظت کوونکی ملائیک، عزتمند لیکونکی،

ے ۸ په دے دواړه آیاتو نوکښ تفصیل دَ کرم دَ الله تعالیٰ دے.
خَلَقَكَ مراد ترینه پیدائش دے دَ خاورو او دَ نطفے نه لکه چه سورة
عبس کښ تیر شو. فَسَوّٰكَ پوره اندامونه او لاس خپے سترګے وغیره
ئې برابر جوړ کړی دی. فَعَدَلَكَ په تخفیف سره معنیٰ دا ده چه (اے
انسانه) اړولے دے تا لره هر صورت او شکل ته چه دَ الله تعالیٰ
خوښ دے یا تخفیف په معنیٰ دَ تشدید دے یعنی قد و قامت او اندامونه
ئې معتدل جوړ کړی دی نه ډیر دنګ او او ګډ او نه ډیر لنډ.
فِيٓ اَيِّ صُوۡرَةٍ مَّا شَآءَ الخ دا تفسیر دَ فعدلك دے دَ دے وجے نه دَ دے
سره ئې حرف عطف نه دے ذکر کړے. اَيِّ صُوۡرَةٍ ښائسته شکل یا
ناکاره، تور، سپین یا غنم رنګے مذکر یا مؤنث مشابه دَ پلار یا دَ مور
سره. مَا شَآءَ مَا دَ پاره دَ تاکید دَ نکرے دے یا مَا موصوله دے.
ے ۹ دا دویم زجر دے او دَ مَا غَرَّكَ دَ پاره تفسیر دے یعنی اغترار
دا دے چه تکذیب کوی. كَلَّا په معنیٰ دَ حق سره دے یا په معنیٰ ردع
سره دے یعنی په کرم دَ الله تعالیٰ غرور مه کوئے ځکه چه تاسو
تکذیب کوئے. بِالدِّيۡنِ مراد دَ دے نه جزاء دَ عملونو ده یعنی ورځ دَ
حساب یا مراد دَ دے نه دین اسلام دے.
ے ۱۰ ے ۱۱ ے ۱۲ دا مبالغه ده په زجر کښ چه سره دَ دے نه چه په تاسو
باندے داسے ملائک مقرر دی او تاسو تکذیب کوئے.
وَاِنَّ عَلَيۡكُمۡ واو دَ پاره دَ حال دے. لَحٰفِظِيۡنَ مراد دَ دینه حفاظت
کوونکی دَ عملونو دَ انسانانو دی یا عمومی ساتنه کوونکی. (پاتے په بل مخ)

يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ ⑫ اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِيْ

پوهیږي په هغه څه چه تاسو یئ کوئ . یقیناً نیکان خلق به خامخا په

نَعِيْمٍ ⑬ وَاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِيْ جَحِيْمٍ ⑭

نعمتونو کښې وي . او یقیناً بدکارخلق به خامخا په اُور کښې وي .

يَّصْلَوْنَهَا يَوْمَ الدِّيْنِ ⑮ وَمَا هُمْ عَنْهَا

ورننوځي به هغې ته په ورځ د جـزاء . او نه دي دوئ د هغې نه

كِرَامًا په الله تعالی باندے عزت والا دي لکه چه سورة عبس کښې ذکر شو. كَاتِبِيْنَ ټول عملونه ښه اوبد په صحیفو کښې لیکي دا د دے دپاره چه په قیامت کښې د حساب اوجزا معامله اوکړے شي.

يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ د دے نه معلومیږي چه کوم کارونه په فعل (عمل) کښې نه وي راغلي لکه پټې ارادے او نیتونه نو د هغې نه دا ملائک خبر نه لري او خطاب عامه (علیکم) دلالت کوي چه دا ملائک په کافرانو او په انبیاء علیهم السّلام باندے هم مقرر وي.

۱۳ ۱۴ ۱۵ روستو د ذکر د کتابت د اعمالو نه (چه هغه دوه قسمونه دي) دوه قسمونه د عاملینو ذکر کوي یو قسم ته بشارت دے اودویم ته تخویف اخروي دے.

الْاَبْرَارَ هغه کسان چه د هغوی صحیفې د نیک اعمالو نه ډکے وي لَفِيْ نَعِيْمٍ بے شماره نعمتونه د جنت دي او ابن قیم په بدائع التفسیر کښې لیکلي دي چه دا حالت په دُنیا او برزخ او قیامت درے واړو کښې دے په دنیا کښې د نعیم نه مراد نعمت ، تسلی د زړه ده او قناعت دے او دا رنګ دا دواړه قولونه لَفِيْ جَحِيْمٍ کښې هم دي.

الْفُجَّارَ هغه خلق چه نافرماني ئې ښکاره ده په عقیده او عمل کښې اوصحیفې ئې د بدو اعمالو نه ډکے دي.

يَوْمَ الدِّيْنِ دا دلیل دے چه لفي جحیم نه مراد جهنم دے دنیا باندے حمل کول بعید دي.

بِغَآئِبِیْنَ ﴿۱۶﴾ وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ ﴿۱۷﴾

| پټيدونکي | او څه پوهه کړې يې ته چه څه ده ورځ د جزاء ، |
|---|---|

ثُمَّ مَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ ﴿۱۸﴾ يَوْمَ

| بيا | څه خبر پوهه کړې يې ته چه څه ده ورځ د جزاء . | هغه ورځ |
|---|---|---|

لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْئًا ۭ وَالْاَمْرُ

| چه نه به مومي اختيار هيڅ نفس | بل نفس لره د څه خبر . | او ټول اختيار |
|---|---|---|

يَوْمَئِذٍ لِّلّٰهِ ﴿۱۹﴾

| په هغه ورځ د الله تعالیٰ دے . |
|---|

بِغَآئِبِیْنَ مراد دَدے دادے چه دَجهنم نه دَیو لمحے دَپاره هم نشی بهرکیدلے او نه وریاندے مرګ او راحت راتلے شی او خطیب شربینی وئیلے دی چه دا احتمال هم شته چه په برزخ کښ به دوی دَجهنم نه غائب نه وی تو پدیکښ عذابِ قبر ته اشاره ده.
۱۷-۱۸ پدے ایاتونو کښ عظمت دَ ورځ دَجزاء ذکر کوی دَپاره دَ تاکید دَ تخویف اخروی. مَا يَوْمُ الدِّيْنِ یعنی خومره لوئے شان دے دَ هغے دَ اوګد والی او دَهیبتونو. ثُمَّ مَآ اَدْرٰىكَ الخ دا تکرار دَپاره دَ زیات تاکید دے یا فرق دادے چه اول خولوئے والی دَهغه ورځ ته اشاره ده او دویم زیات هیبتونو او عذابونو دَ هغے ته اشاره ده.
۱۹ دا ذکر دَ بعض عظمتِ شان دَ هغه ورځ دے. يَوْمَ لَا تَمْلِكُ الخ پدے جمله کښ نفی دَ مِلك او تصرف ده دَ غیرالله نه او په دویمه جمله کښ اثبات دَ هغے دے خاص الله تعالیٰ لره او دا پوره توحید دے. نَفْسٌ لِّنَفْسٍ مراد دَدے نه عام دے یا نفس اول غیر مجرم او دویم مجرم مراد دے. شَيْئًا هیڅ قسم نفع رسول او دَ هیڅ ضرر نه یې کول. وَالْاَمْرُ امر عام دے دَ ملک (بادشاهی) نه. يَوْمَئِذٍ اوس په دنیا کښ هم امر (اختیار) صرف دَ الله تعالیٰ دے په دلیل دَ سورۃ اعراف ۵۴ او سورۃ قصص ۸۸ سره لیکن تخصیص دَ اخرت یې پدے وجه سره اوکړو چه دنیا کښ بعض خلق دَ شرکت دعوے کوی او اخرت کښ دا هم نشی کیدلے.

الحمدلله چه ختم شو تفسیر دَ سورۃ انفطار په فضل دَ الله تعالیٰ سره.

| سُوۡرَةُ الۡمُطَفِّفِيۡنَ مَكِّيَّةٌ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | اٰيَاتُهَا ۳۶ | رکوعها ۱ |
|---|---|---|---|

وَيۡلٌ لِّلۡمُطَفِّفِيۡنَ ۝۱ الَّذِيۡنَ اِذَا اكۡتَالُوۡا

تباهي ده دپاره د کمي کوونکو ، هغه کسان چه په پيمانه اخلي

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**سورة التطفيف** او بل نوم يې سورة المطففين دے۔
غوره دا ده چه دا سورت په مينځ د مکے او مدينے کښ نازل شوے دے شايد چه د دے وجے نه بعض قراء وائي چه دا مکي دے او بعض وائي چه دا مدني دے۔
**ربط د دے سورت** د مخکښ سورت سره په څو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه په هغه سورت کښ زجر وو په اغترار سره نو په دے سورت کښ زجر دے په تطفيف سره چه نتيجه د اغترار ده دويمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ يوم لا تملك اه سره يې شان د قيامت ذکر کړو نو په دے سورت کښ په يوم يقوم الناس لرب العالمين سره شان د قيامت بيانوي دريمه وجه دا ده چه هلته يې اوفرمائيل چه عملنامے د ملائکو سره وي په ژوند د دنيا کښ او دلته ذکر کوي چه دا عملنامے به روستو د مرګ نه په عليين يا سجين کښ وي۔
**دعویٰ د سورت**۔ زجر دے په تطفيف سره او په عدم خوف د ورځ د قيامت نه۔ او ترغيب دے اخرت ته په ۲۶ کښ۔ او د اسماؤ د الله تعالیٰ نه صرف رب العالمين ذکر دے۔
**خلاصه د سورت**۔ اول زجر دے او تعريف د تطفيف دے په درے ايا تونو کښ۔ بيا تخويف اخروي دے په درے ايا تونو کښ۔ بيا د تخويف د پاره لس احوال يې د فجارو ذکر کړي دي تر ۱۷ پورے بيا د بشارت د پاره يې لس احوال د ابرارو ذکر کړي دي تر ۲۸ پورے بيا زجر دے مجرمانو ته په پنځه طريقو سره تر ۳۳ پورے بيا بشارت دے

عَلَى النَّاسِ يَسْتَوْفُوْنَ ۝۲ وَإِذَا كَالُوْهُمْ

دَ خلقو ته نو پوره اخلي - او كله چه پيمانه كوي هغوى له

أَوْ وَّزَنُوْهُمْ يُخْسِرُوْنَ ۝۳ أَلَا يَظُنُّ

يا تول كوى هغوى له نو كمے كوى - آيا نه كوى گمان

مؤمنانو ته په درے آيا تونو كښې. او مطففين ئے مسمّٰی كړيدى په الفجار والمكذبين والكفار او معتدى او اثيم سره۔

تفسير ۱ تطفيف په اصل كښې نقصان كولو ته وئيلے شي په لږ څيز سره، بيا تطفيف دوه قسمونه دے يو تطفيف ظاهرى چه معروف دے يعنى په تول او پيمانه كښې نقصان كول دَ پاره دَ دهوكے وركولو او دا حرام دے او دَ دے امدن هم حرام دے اگرچه صاحب دَ هغے وائى چه دا خو تجارت دے۔ دويم تطفيف معنوى دے لكه چه ذكر كړے دى قرطبي چه تطفيف په كيل او وزن او اودس او مونځ كولو او خبرو كولو كښې شته دے او امام مالك رحمه الله نه نقل دے چه دَ هر څيز دَ پاره وفاء او تطفيف شته دے. نو مقصد دا دے چه مطففين لكه چه په تول او پيمانه كښې تطفيف كوى او هغه سبب دَ تباهئ دے نو دا رنګ په ميزان دَ شريعت كښې هم نقصان كوى چه په خپل عملونو (اودس، مونځ، روژه وغيره) عباداتو معاملاتو كښې دَ حدودِ شرعيه نه نقصان كوى، او دَ بل چا نه پوره عمل غواړى او دا رنګ په بل چا باندے تنقيد كوى او پخپله تنقيد نشى برداشت كولے او پخپله بے دليله خبرے كوى او دَ بل چا نه دليل او حجت غواړى او دَ بل چا حق پوره نه اداكوى او خپل حق پوره غواړى نو دا هم سبب دَ هلاكت دے او پردے عيب وينى او خپل عيب ته نه ګورى بنا په دے معنىٰ مطفف هر مشرك مبتدع عنادى وغيره دے۔

۲ ۳ دا تفسير دَ تطفيف دے په معنىٰ مشهور سره.

اكْتَالُوْا عَلَى النَّاسِ باب افتعال په معنىٰ دَ استفعال دے نو عَلٰى په معنىٰ دَ مِن سره دے يعنى پيمانه اخلى او طلب كوى دَ خلقو نه، (رياتے په بل مخ)

أُولَٰٓئِكَ أَنَّهُم مَّبۡعُوثُونَ ۝٤ لِيَوۡمٍ عَظِيمٖ ۝٥

د غه خلق چه دوی به دوباره ژوندی کړیشي ، لوئے ورځے ته ۔

يَوۡمَ يَقُومُ ٱلنَّاسُ لِرَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝٦

هغه ورځ چه اوبه دریږی خلق رب العالمین ته ۔

كَلَّآ إِنَّ كِتَٰبَ ٱلۡفُجَّارِ لَفِي سِجِّينٖ ۝٧

هیچرے داسے نه ده بکار، یقینًا عملنامه دَ بدکارو خامخا په سجین کښ ده۔

نو پوره اخلی کم والے په هغے کښ نه برداشت کوی .
وَإِذَا كَالُوهُمۡ أَو وَّزَنُوهُمۡ دا دواړه متعدی استعمالیږی بغیر دَ لام نه او کله سره دَ لام نه نو معنیٰ دا ده کالوا لهم او وزنوا لهم. او بل قول دا دے چه هُمۡ تاکید دے دَ ضمیر دَ فاعل په دواړه فعلونو کښ لیکن اول قول غوره دے سٓ ۵ سٓ ۶ دا بل زجر دے سره دَ تخویف اخروی نه۔ أَلَا يَظُنُّ استفهام دَ پاره دَ تعجیب دے او نفی دَ ظن سره نفی یقین التزامًا راغله یعنی یقین په بعث بعد الموت خو د رکنار چه گمان هم نه کوی. لِيَوۡمٍ لام په معنیٰ دَ فِيۡ دے یا لام اجلیه دے. يَوۡمَ ظرف دے دَ مبعوثون دَ پاره یا أَعۡنِي پټ دے يَقُومُ ٱلنَّاسُ قیام دَ ټولو خلقو دے لیکن په مینځ دَ مؤمنانو او کافرانو کښ په آسانتیا او سختئ کښ فرق دے په حدیث صحیح کښ راغلی دی چه په مؤمن بانده داسے تیریږی لکه فرض مونځ دَ هغه چه په دنیا کښ کوؤ۔
سٓ ۷ كَلَّآ دَ پاره دَ ردع دے یعنی تطفیف او تکذیب دَ بعث نه دے بکار ځکه چه دا سبب دَ فجور دے او دَ فاجر حال وروستو ذکر کوی. یا په معنیٰ دَ حقا سره دے دَ پاره دَ تاکید ما بعد دے. كِتَٰبَ ٱلۡفُجَّارِ یعنی کتاب دَ اعمالو دَ شیاطینو او کافرانو او فاسقانو په سجین کښ دے روستو دَ مرگ دَ هغوی نه۔ دا رنگ روح دَ کافر لیږلے کیږی په سجین لکه په حدیث دَ مسند احمد کښ راغلی دَ سِجِّينٍ دَ سجن نه ماخوذ دے یعنی هغه ځائے ډیر تنگ دے او دَ ټول عالم نه ښکته دے او هغه ته اسفل السافلین هم وئیلے کیږی. نو هغه نوم دَ یو دفتر دے چه په هغے کښ عملنامے دَ فجارو پرتے وی او په یو قول دَ ابن عباس رض سره په هغے کښ ارواح دَ فجارو هم دی.

وَمَآ اَدۡرٰىكَ مَا سِجِّيۡنٌ ﴿٨﴾ كِتٰبٌ مَّرۡقُوۡمٌ ﴿٩﴾

او څه خبر پوهه درکړیده تاته چه څه دے سجین، دفتر (رجسټر) دے لیکلے شوے۔

وَيۡلٌ يَّوۡمَئِذٍ لِّلۡمُكَذِّبِيۡنَ ﴿١٠﴾ الَّذِيۡنَ

تباهي ده په هغه ورځ تکذیب کوونکو لره، هغه کسان چه

يُكَذِّبُوۡنَ بِيَوۡمِ الدِّيۡنِ ﴿١١﴾ وَمَا يُكَذِّبُ

تکذیب کوی د ورځ د جزاء۔ او تکذیب نه کوی

بِهٖۤ اِلَّا كُلُّ مُعۡتَدٍ اَثِيۡمٍ ﴿١٢﴾ اِذَا تُتۡلٰى

د دغه ورځ مګر هر د حد نه تیرېدونکے، ډیر ګنهګار، کله چه او لوستلے شي

۸ ۔ ۹ اول ایت کښ هیبت شان د سجین ته اشاره ده او معلومه شوه چه د قران د نزول نه مخکښ نبی صلی الله علیه وسلم او قوم د هغه سجین نه پیژندلو۔ دویم ایت کښ تفسیر د سجین دے۔ مَرۡقُوۡمٌ پاخه لیکل چه نه ورانیږی او نه پکښ زیاتے کمے کیدیشی او مهر وربانده وهلے شویدے۔

سوال:۔ تفسیر د سجین چه مکان دے په کتاب سره څه رنګ صحیح کیږی؟ د دے وجې نه ابن کثیر ویلی دی چه دا تفسیر د سجین نه دے

جواب:۔ کتاب په معنیٰ د مکتب دے یا مضاف محذوف دے یعنی محل کتاب مرقوم۔ یعنی سجین د فتر دے د پاره د عملنامو د فجارو۔

۱۰ ۔ ۱۱ دا هم داخل دے په تخویف کښ يَوۡمَئِذٍ یعنی په ورځ د قیام د خلقو رب العالمین ته۔ لِلۡمُكَذِّبِيۡنَ دا د مطففین دریم تعبیر دے۔ الَّذِيۡنَ اه دا تفسیر د مکذبینو دے تفسیر د عام دے په خاص سره اشاره ده چه تکذیب د یوم الدین سبب دے د هر تکذیب۔

۱۲ ۔ ۱۳ دا صفات دی د مکذب په طریقه د حصر سره یعنی هرڅوک چه موصوف وی په دے درے صفتونو سره نو هغه به مکذب د یوم الدین وی۔ مُعۡتَدٍ دے په افعالو کښ د حلال او حرام فرق نه کوی۔ اَثِيۡمٍ دے په اقوالو کښ دروغ وائی او سب و شتم د ر پاتے په بل مخ)

عَلَيْهِ اٰيٰتُنَا قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۳﴾

پہ ھغہ باندے آیتونہ زموږ، دے وائی دا خو دروغ قصّے دی دَ زړو خلقو.

كَلَّا بَلْ سكتة رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا كَانُوْا

هیچرے داسے نہ دہ، بلکہ زنګ راغلے پہ زړونو دَ دوی پہ سبب دَ هغہ عملونو چہ دوی

يَكْسِبُوْنَ ﴿۱۴﴾ كَلَّآ اِنَّهُمْ عَنْ رَّبِّهِمْ

کول. یقینًا داسے دہ چہ دا خلق دَ خپل رب نہ (دیدار دَ هغہ نہ)

حق پرستو کوی. او شربینی وئیلی دی چہ معتدی هغہ دے چہ تجاوز کوی دَ نظر او فکر کولو نہ غلو کوونکے دے پہ تقلید سرہ تر دے پورے چہ علم او قدرت دَ الله تعالٰی دَ بعث بعد الموت نہ قاصر ګنړی او اَثِيْمٍ منهمك دے پہ شهواتو کښ تر دے چہ مشغول دے دَ یقین کولو نہ پہ قیامت باندے. قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ پہ دے کښ اشارہ دہ چہ دا شخص ډیر جاهل دے چہ دَ کلام فصیح وبلیغ او دَ عامو قصّو نہ فرق نشی کولے او دا قول تیر شوے دے پہ سورۃ نحل ۲۴ او سورۃ فرقان ۵ کښ. اَسَاطِيْرُ اه قصّے چورے کړے شوے چہ نقل کړے شوی دی دَ مخکنو خلقو نہ.

۱۴ دا هم زجر دے او كَلَّا ردعیہ دے یعنی قرآن اساطیر الاولین نہ دے بلکہ دَ دوی پہ زړونو باندے زنګونہ دی نو دَ قرآن کریم فصاحت بلاغت صداقت او لذت نشی معلومولے. رَانَ دَ رین نہ دے ګنا هونہ دَ پاسہ کول تر دے چہ غالب شی پہ زړہ باندے دا پہ زړونو دَ کافرانو پورے خاص دے. او الغیم پہ زړونو دَ ابرارو باندے راتلے شی او الغین پہ زړونو دَ مقربینو باندے راتلے شی او ابن قیم وئیلی دی چہ اول رین دے بیا چہ زیات شی نو طبع دہ بیا ورپسے اقفال دے او دا صفتونہ دَ زړونو دَ کافرانو دی.

مَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ یعنی ناکارہ اعمال دَ دوی سبب دے دَ پارہ دَ رین او خالق الله تعالٰی دے نو عمل تہ نسبت هم کیږی لکہ الله تعالٰی تہ نسبت کیدیشی.

يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ ﴿١٥﴾ ثُمَّ إِنَّهُمْ

په هغه ورځ به په پردو کښې وی (منع به کړے شی). بیا یقیناً دوی

لَصَالُوا الْجَحِيمِ ﴿١٦﴾ ثُمَّ يُقَالُ هَٰذَا

ضرور داخلیدونکی دی اور ته . بیا به اُوئیلے شی دا

الَّذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ ﴿١٧﴾ كَلَّا

هغه څیز دے چه تاسو دَ هغې تکذیب کووَ . یقیناً داسے دہ ،

۱۵ کَلَّا په معنیٰ دَ حقا دے یعنی دَ دوی گناهونه دَ رین دَ پاره سبب دے په دُنیا کښې او دَ حجاب دَ پاره سبب دے په آخرت کښې او حجاب هم لوئے عذاب دے. عَن رَّبِّهِمْ مضاف محذوف دے یعنی عن رؤیة ربهم او اضافت دے مفعول ته او معتزله تاویل کوی په عن رحمة ربهم سره لیکن هغه غلط دے ځکه چه لفظ دَ حجاب په بارهٔ دَ رحمت کښې نه استعمالیږی بلکه حجاب په مقام دَ نظر او دیدن کښې استعمالیږی. لَمَحْجُوبُونَ خاوندان دَ حجاب به وی دا دلیل دے چه دَ الله تعالیٰ دیدن کیدے شی ځکه چه محجوب دَ الله تعالیٰ صفت نه دے بلکه دَ کافرانو صفت دے او دا رنګ دَ دے ایت دَ مفهوم نه امام مالک او امام شافعی رحمهما الله دلیل نیولے دے چه مؤمنان به په قیامت کښې دَ الله تعالیٰ دیدن کوی ځکه چه که مؤمنان هم محجوب وی نو دَ کافرانو دَ تخصیص دَ پاره څه وجه نیشته او دا بحث په تفسیر دَ سورة القیامه کښې هم تیر شوے دے او قول دَ امام شافعی ابن کثیر په تفسیر کښې او ابن قیم هم په بدائع التفسیر کښې په سند دَ طبرانی سره ذکر کړیدے.

۱۶ ۱۷ دَ حجاب نه علاوه دا نور عذاب دے یعنی اصحاب دَ حرمان او اصحاب نیران دواړه دی.

هَٰذَا الَّذِي اه یعنی تاسو تکذیب دَ دے عذاب کووَ اوس درته یقین راغے یا مضاف حذف دے هذا جزاء الذی کنتم اه.

إِنَّ كِتَٰبَ ٱلْأَبْرَارِ لَفِى عِلِّيِّينَ ﴿١٨﴾

چه بیشکه عملنامه دَ نیکانو خامخا په علیین کښ دَه.

وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا عِلِّيُّونَ ﴿١٩﴾ كِتَٰبٌ مَّرْقُومٌ ﴿٢٠﴾

او څه خبر پوهه درکړې ده تاته چه څه دے علیون. دفتر دے لیکلے شوے.

يَشْهَدُهُ ٱلْمُقَرَّبُونَ ﴿٢١﴾ إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ

حاضریږی هغے ته (الله تعالیٰ ته) نزدے خلق. یقیناً نیکان خلق به

لَفِى نَعِيمٍ ﴿٢٢﴾ عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ يَنظُرُونَ ﴿٢٣﴾

خامخا په نعمتونو کښ وی، په پالنګونو باندے به وی ګوری به.

۱۸ دا بشارت دے په ذکر دَ احوالو دَ ابرارو سره. كَلَّآ په معنیٰ دَ حقا سره دے ردعیه نه صحیح کیږی. كِتَٰبَ ٱلْأَبْرَارِ هغه صحیفه چه اعمال صالحه دَ نیکانو پکښ لیکلے شوی دی روستو دَ مرګ دَ هغوی نه په علیین کښ دَه. عِلِّيِّينَ دَ علو نه ماخوذ دے او دا دَ خاص مقام نوم دے په اکثر روایاتو کښ راغلے دی چه په اووم اسمان کښ دے او دَ عرش دَ لاندے دے نو په ډیره علو باندے مشتمل دے دَ دے وجے دَ جمع په صیغے سره دَدهٔ نوم کیخودے شو.

۱۹ ت ۲۱ په دے کښ عظمت شان دَ علیین ذکر شوے دے. زجاج وئیلے دی چه اعراب دَ دے لفظ پشان دَ اعراب دَ جمع دے اګرچه دا نوم دَ مفرد دے. ٱلْمُقَرَّبُونَ مراد دَ دے نه ملائک خاصه دی او احتمال لری چه نیکان بندګان مراد وی او مضاف محذوف دے یعنی اعمال المقربین (حاضریږی په هغے کښ عملونه دَ نیکانو).

۲۲ ت ۲۳ روستو دَ ذکر دَ حال دَ کتاب الاعمال نه حال دَ اصحاب الکتاب ذکر کوی ٱلْأَرَآئِكِ جمع دَ اریکة دَ پالنګ دَ ناوے ته وئیلے شی چه ډیر خائسته او ارام دِه وی. يَنظُرُونَ مراد دَ دے نه نظر الی وجه الله تعالیٰ دے یا عام مراد دے یعنی نعمتونه دَ جنت او حال دَ دشمنانو او په عام کښ هم نظر الی الله داخل دے. هر کله چه دَ فجارو په احوالو کښ

تَعۡرِفُ فِیۡ وُجُوۡهِهِمۡ نَضۡرَةَ النَّعِیۡمِ ﴿۲۴﴾

پیژنے به ته په مخونو دَ هغوی کښې تازګی دَ نعمتونو

یُسۡقَوۡنَ مِنۡ رَّحِیۡقٍ مَّخۡتُوۡمٍ ﴿۲۵﴾ خِتٰمُهٗ

څښکولے کیږی به دوی ته دَ شرابو خالصو مهر وهلے شوؤ نه، مهر دَ هغې به

مِسۡكٌ ؕ وَ فِیۡ ذٰلِكَ فَلۡیَتَنَافَسِ

مشک وی۔ او په دیکښې دے پس مینه اوکړی

الۡمُتَنٰفِسُوۡنَ ﴿۲۶﴾ وَ مِزَاجُهٗ مِنۡ تَسۡنِیۡمٍ ﴿۲۷﴾

مینه کوؤنکی ۔ او ګډون دَ هغې به دَ تسنیم چینې نه وی،

محجوبون ذکر کړے وؤ نو دَ ابرارو په احوالو کښې دَ پاره دَ تقابل نظر الی الله ئے ذکر کړے دے او دا سے تحقیق ابن قیم ذکر کړیدے.
۲۴ یعنی نعمتونه دَ جنت به دومره زیات وی چه ورسره به هیڅ غم او فکر او مرض نه وی نو خوشحالی او تازګی به دَ دوی په مخونو کښې ښکاری.
۲۵ ۲۶ رَحِیۡقٍ هغه شراب چه دَ خیری او دَ نشے او ګډون نه صاف وی. مَّخۡتُوۡمٍ مهرلګولو کښې اشاره ده چه دَ دوی نه مخکښې ورسره هیچا لاس نه دی لګولی او دا رنګ مهرلګول دَ پاره دَ اکرام دی۔ دا یو قسم دَ خمرو (شرابو) دے اویل قسم هغه دی چه په نهرونو کښې جاری وی۔ خِتٰمُهٗ مِسۡكٌ ختام په معنیٰ دَ اخر دے یعنی دَ اخری ګوټ سره به دَ مشکو خوشبوئی وی یا په معنیٰ دَ مهر دے نو مضاف محذوف دے یعنی خِتَامُ اَوَانِیۡهِ مهر دَ لوخو دَ هغې. وَ فِیۡ ذٰلِكَ دا مذکور نعمتونه دَ جنت او ارائک او دیدن الله تعالیٰ او مشروبات. فَلۡیَتَنَافَسِ الۡمُتَنٰفِسُوۡنَ، تنافس دَ نفس نه ماخوذ دے هغه خیز چه نفس دَ هغې دَ حصول دَ پاره حرص کوی نو تنافس دا دے چه هر یو حرص کوی چه دا زما دَ پاره خاص شی دَ ډیر رغبت دَ وجے نه۔ الۡمُتَنٰفِسُوۡنَ یعنی دَ انسانانو په طبیعت کښې خو تنافس شته نو دا تنافس دې دَ جنت طرفته متوجه کړی او مراد دَ تنافس نه هغه اخلاص او اتباع دَ سنت ده په تمام ژوند کښې چه په هغې سره دَ جنت نعمتونه حاصلیږی او دَ دے پشان په سورة صافات ۶۱ کښې هم ذکر دی.
۲۷ ۲۸ وَ مِزَاجُهٗ په معنیٰ دَ مفعول دے او راجع دے رحیق ته مرپاتے په بل مخ)

عَيْنًا يَّشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُوْنَ ﴿۲۸﴾ إِنَّ الَّذِيْنَ

چینه ده څښکی به په هغې سره (دَ هغې نه) نژدے خلق (الله تعالیٰ ته). یقیناً هغه کسان

أَجْرَمُوْا كَانُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يَضْحَكُوْنَ ﴿۲۹﴾

چه جرمونه ئې کړیدی، وُو ددی چه په مؤمنانو پورے یې خندا کوله.

وَإِذَا مَرُّوْا بِهِمْ يَتَغَامَزُوْنَ ﴿۳۰﴾ وَإِذَا انْقَلَبُوْا

او هر کله چه ورتیریدل به په هغوی باندے نو سترګے به ئې وهلے، او هر کله چه واپس به شول

تَسْنِيْمٍ نوم دَیو چینے دے چه اوچته به وی او دَ هغې نه به په لوښو کښ اوبه رابهیږی. او دا ډیره اعلیٰ چینه ده دَ چینو دَ جنت نه.

يَشْرَبُ بِهَا بآ په معنیٰ دَ مِن ده لیکن په دے کښ تضمین دَ معنیٰ د (یَرْوِیْ) دے مړیږی به په هغې سره.

الْمُقَرَّبُوْنَ یعنی مقربون بندګان به خالص دَ تسنیم نه اوبه څښکی او نورو ابرارو دَ پاره به دَ هغې نه ګډون وی او دا رنګ دَ ابرارو دَ پاره به دَ کافور ګډون وی لکه په سورة دهر ۵ کښ تیر شوی دی او ګډون دَ زنجبیل به وی لکه سورة دهر ۱۷ کښ.

۲۹ دا زجر دے مجرمانو ته په ذکر دَ څلورو اوصاف قبیحه دَ هغوی سره چه دغه اسباب دَ وَیْل او دَ رَیْن دَ زړونو دی.

الَّذِيْنَ أَجْرَمُوْا دغه مطففین او فجار دی مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مراد مسکینان مؤحدین دی يَضْحَكُوْنَ دا به ئې وئیل أَهٰؤُلَاءِ مَنَّ اللهُ عَلَيْهِمْ مِّنْ بَيْنِنَا (سورة انعام ۵۳) او دا رنګ په سورة مؤمنون ۱۱۰ کښ دی او خندا نه مراد مسخرے او استهزاء کول دی چه دوی به په صحابه کرامو پورے دَ هغوی دَ غریبئ دَ وجے نه خندا او مسخره کوله او سرۀ دَ نۀ منلو دَ توحید نه.

۳۰ وَإِذَا مَرُّوْا بِهِمْ ضمیر مرفوع راجع دے مؤمنانو ته او ضمیر مجرور کافرانو ته او په عکس سره هم کیدے شی. يَتَغَامَزُوْنَ سترګے وهی یو بل ته دَ پاره دَ تحقیر دَ هغوی یا عیبونه وائی په هغوی باندے.

إِلَىٰٓ أَهْلِهِمُ انقَلَبُوا فَكِهِينَ ﴿٣١﴾ وَإِذَا رَأَوْهُمْ

خپلو خلقو ته واپس کیدل په خوشحالی کوونکی ، او کله چه دوی به اولیدل هغوی

قَالُوٓا إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَضَآلُّونَ ﴿٣٢﴾ وَمَآ أُرْسِلُوا

وئیل به ئې چه دوی هغه کسان دی چه خامخا گمراهان دی ، او نه دی لیږلے شوی دوی

عَلَيْهِمْ حَٰفِظِينَ ﴿٣٣﴾ فَالْيَوْمَ الَّذِينَ ءَامَنُوا

په هغوی باندے څوکئ کوونکی . نو نن ورځ به مؤمنان

مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُونَ ﴿٣٤﴾ عَلَى الْأَرَآئِكِ

په کافرانو پورے خندا کوی ، په پالنګونو باندے به دی

ف۳۱ أَهْلِهِمُ مراد دَ دے نه دَ دوی تابعداران او مقلدین دی. فَكِهِينَ خوشحالی او لوئی کوی په هغه مسخرو چه دوی په مؤمنانو پسے کړی دی یعنی تابعدارانو ته خپل نر توب ذکر کوی چه مونږ مؤمنانو لره ذلیل کړل.
ف۳۲ ف۳۳ دوی به صحابه کرامو ته گمراه وئیل ځکه چه هغوی دَ دوی دَ طریقے نه خلاف وو لکه چه قوم نوح، نوح علیه السّلام ته گمراه وئیلے وو سورۃ اعراف ف۶۰ کښې. او دا حال دَ شیعګانو دے چه صحابه کرامو ته گمراه او مرتد او کافر وائی ځکه چه دوی پخپله گمراه دی.
وَمَآ أُرْسِلُوا دا قول دَ الله تعالیٰ دے په رد دَ هغه چا چه صحابه کرامو ته گمراه وائی یعنی دا مجرمان خو په مؤمنانو او صحابه کرامو باندے څوکیداران او ذمه داران نه دی مقرر شوی چه دوی په هغوی باندے فتوے لګوی. یا دا قول هم دَ کافرانو دے په باره دَ مؤمنانو کښې یعنی هر کله چه مؤمنانو دوی ته دعوت دَ توحید ورکوو او دَ شرک نه ئې منع کولو نو هغوی او وئیل چه تاسو خو په مونږ باندے مقرر کړی نه یئې او ذمه داران نه یئې.
ف۳۴ دا جزاء دَ جنس دَ عمل نه ده هغوی په دنیا کښې په دوی پورے خندا کوله نو مؤمنان به په آخرت کښې په دوی پورے خندا او کړی دَ خندا او وجه دا ده چه دَ عزت او کبر دَ دنیا نه روستو نن په ذلت او عذاب کښې اخته شوے دی.

يَنظُرُونَ ﴿٣٥﴾ هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿٣٦﴾

گوری په ، آیا بدله ورکړے شوه کافرانو ته د هغه کار دلو چه دوی کول .

۳۵ ـ ۳۶ دلته يَنظُرُونَ ته مراد نظر كول دى حال د كافرانو ته لكه روستو آيت دليل دے او په ۲۳ كښ نظر ته مراد ديدار د الله تعالىٰ دے لكه چه مخكښ تير شوى دى .

هَلْ ثُوِّبَ دا مفعول د ينظرون دے ، يا مستقله جمله ده په تقدير د يقول بعض المؤمنين بعضًا سره او دا استفهام تقريرى دے .

ثُوِّبَ ثواب مطلق جزاء او عقوبت ته هم وئيلے كيږى لكه چه اجر خير ته هم وئيلے شى .

مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ يعنى د دوى په عملونو باندے ضرور سزا وركيدايشى معاف كيدل نيشته دے .

ختم شو تفسير د سورة تطفيف په حمد د الله تعالىٰ او په توفيق د هغه سره

| سُوْرَةُ الْاِنْشِقَاقِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۲۵ | رُكُوْعُهَا ۱ |
| --- | --- | --- | --- |

اِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ ﴿۱﴾ وَاَذِنَتْ لِرَبِّهَا

هر کله چه اسمان او شلیږی ، او غوږ به ئې ایخے دے حکم د رب خپل ته

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**سورة الانشقاق** او بل نوم ئې سورة اِنْشَقَّتْ دے

**ربط د دے سورت** د دے سورت د ماقبل سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښې سورت کښې زجرونو په تطفیف او تکذیب باندے نو په دے سورت کښې ترغیب ورکوی نیک عملت طرف ته۔
دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې ذکر د حال د عملنامو وو روستو د مرګ نه نو په دے سورت کښې د هغے حال ذکر کوی په ورځ د قیامت کښې۔
دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې زجرونو د دوی په بعض اعمالو باندے نو په دے کښې زجر دے په نورو قبائحو باندے۔

**دعوی د سورت.** ترغیب دے کدح صالح ته د پاره د حساب یسیر او اخستل د عملنامے په ښی لاس کښې او تحذیر دے د کدح سیئ (بد) نه د پاره د بچ کیدلو د حساب شدید نه او اخستل د عملنامے روستو د شا نه۔ او اسماء حسنیٰ ئې د الله تعالیٰ څلور ذکر کړیدی۔ رب ، الله ، اعلم ، بصیر۔

**خلاصه د سورت.** اول ذکر دے د بعض احوالو د حشر بیا دعوی د سورت ده تر ۶ پورے بیا بشارت ذکر کوی کدح صالح (نیک کار) والو لره په درے حالاتو سره تر ۹ پورے او تخویف دے کدح سیئ (بد کار کسب) والو لره په ذکر د درے حالاتو سره او په ذکر د درے علتونو د عذاب سره تر ۱۵ پورے بیا درے شواهد دی په بعث بعد الموت باندے تر ۱۹ پورے۔ بیا زجر او تخویف دے په څلورو امورو سره تر ۲۴ پورے او په اخر کښې بشارت دے۔

وَحُقَّتْ ﴿۲﴾ وَإِذَا الْأَرْضُ مُدَّتْ ﴿۳﴾ وَأَلْقَتْ

او لائق ده چه غوږ کیږدی، او هر کله چه زمکه را ښکلے شي ، او اوغورځوي

مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ ﴿۴﴾ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا

هغه چه په هغې کښې وي او خالي شي ، او غوږ ئې ایخے دے حکم د رب خپل ته

وَحُقَّتْ ﴿۵﴾ يَا أَيُّهَا الْإِنْسَانُ إِنَّكَ كَادِحٌ

او لائق ده چه غوږ کیږدی. اے انسانه یقیناً ته مشقت کوونکے ئې

تفسیر ۱-۲ دا حالات دَ وخت دَ فنا کیدلو دَ عالم دی او نزول اکثر دَ بره طرف نه شورو کیږی دَ دے وجے نه دَ اسمان ذکر ئې مخکښ اوکړو۔ انْشَقَّتْ دا څلورم حالت دَ اسمان دے اول به فتح او فرج او دروازے شي دویم کشط چه رنګ او ځرمن به ئې لرے شي دریم انفطار څلورم انشقاق په دے کښ ډیره مبالغه ده دَ انفطار نه۔ إِذَا شرطیه دے جزاء ئې مقدر ده یا اذا ظرفیه دے او اذکر پټ دے۔ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا غوږ ایښودل کنایه ده دَ مطلق اطاعت کولو نه لکه چه په سورة حم سجده ۱۱ کښ تیر شویدی۔ وَحُقَّتْ حق په معنیٰ دَ لائق او مناسب دے یا په معنیٰ دَ واجب او لازم سره دے۔ او وجه دَ حق دا ده چه الله تعالیٰ دَ دے خالق او مالک دے او دَ خالق مالک اطاعت کول واجب دی او اسمان کښ هم الله تعالیٰ شعور دَ اطاعت ایښودلے دے۔

۳-۴-۵ مُدَّتْ را ښکلے به شي په داسے طریقے چه کندے او غرونه به ترینه لرے شي او حدیث کښ راځي داسے به را ښکلے شي لکه ځرمن را ښکلے کیږی دا دَ دے دَپاره چه ټول خلق ودریدے دَ حساب دَپاره اودریږی۔ او دا مدّ جدا دے دَ هغه مد نه چه په دنیا کښ دے په دے ایت کښ۔ وَالْأَرْضَ مَدَدْنَاهَا په دواړو کښ فرق دے۔ مَا فِيهَا په دے کښ دننه مړی دی او دا رنګ خزانے ومعدنیات لکه په سورة زلزال کښ وَأَخْرَجَتِ الْأَرْضُ أَثْقَالَهَا۔ وَتَخَلَّتْ یعنی باطن به ئې خالي شي دَ مړو او خزانو نه او ظاهر به ئې خالي شي دَ غرونو او ونو وغیره نه۔ او په دے کښ اشاره ده ډیرے سختئ ته لکه

إِلَىٰ رَبِّكَ كَدْحًا فَمُلَٰقِيهِ ﴿٦﴾ فَأَمَّا مَنْ

(په رسیدلو کښې) خپل رب ته مشقت کول نو مخامخ کېدونکے یې د هغه سره. نو هغه څوک چه

أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ ﴿٧﴾ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ

ورکړې شي عملنامه د هغه په ښي لاس د هغه کښې، نو زر دے چه حساب به ورسره اوکړې شي

حِسَابًا يَسِيرًا ﴿٨﴾ وَيَنقَلِبُ إِلَىٰ أَهْلِهِۦ

حساب اسان ، او اوبه ګرځي خپل اهل ته

چه د سختئ د وجے نه حامله حمل اوغورځوی دا سے به زمکه هم خالی شی. دا إِذَا چه شرطیه شی نو په جزا کښې اختلاف دے یو قول دادے چه يَا أَيُّهَا الإِنسَانُ ١ه جواب دے، په تقدیر د فاء سره دویم قول دادے چه فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ ١ه جواب دے. او دریم دا چه جواب پټ دے یعنی هرکله چه دا کارونه اوشی نو واقع به شی قیامت. اوکه اذا ظرفیه شی نو اذکر لفظ پټ دے یعنی یاد کړئ دا سے حالات چه په ورځ د قیامت کښې به واقع کیږی.

سـ۶ دا دعوی د سورة ده الْإِنسَانُ نه مراد جنس انسان دے که نیک شخص دے او که ناکاره کَادِحٌ, کدح په لغت کښې عمل اوکسب کول دی په ښه مشقت سره که عمل د خیر وی اوکه د شر وی. إِلَىٰ رَبِّكَ مضاف محذوف دے یعنی إِلَىٰ لِقَاءِ رَبِّكَ او مراد ترینه مرګ دے ځکه چه په مرګ سره سلسله د عمل کولو ختم شی كَدْحًا دا مفعول مطلق دے د تاکید او د عموم دپاره. فَمُلَاقِيهِ ضمیر راجع دے کدح ته یا راجع دے رب ته او بناء په اول د ملاقات د کدح نه مراد ملاقات د کتاب الاعمال دے په قرینه د مابعد سره. او مطلب په دے جمله خبر په کښې انشاء اوطلب دے د کدح د خیر او منع کول دی د کدح د شر نه او د دے وجے نه روستو بشارت او تخویف ذکر کوی.

سـ۷ سـ۸ سـ۹ دا تفصیل د دواړه قسمونو د اصحاب کدح دے نو په دے ایاتونو کښې بشارت دے. حِسَابًا يَسِيرًا او حدیث صحیح کښې راغلے دی چه نبی صلی الله علیه وسلم او فرمائیل چا سره چه رپاټے په بل مخ)

مَسْرُوْرًا ﴿۹﴾ وَاَمَّا مَنْ اُوْتِیَ کِتٰبَهٗ وَرَآءَ

خوشحاله کړے شوے. او هغه څوک چه ورکړیشی عملنامه دَ هغه روستو

ظَهْرِهٖ ﴿۱۰﴾ فَسَوْفَ یَدْعُوْا ثُبُوْرًا ﴿۱۱﴾

دَ شا دَ هغه نه ، نو ذر ده چه غواړی به هلاکت خپل ،

حساب اوکړے شو نو تباه شو نو عائشه رضی الله عنها تپوس اوکړو چه الله تعالیٰ خو فرمائیلے دی چه اصحاب الیمین سره به هم حساب کیږی جواب اوشو چه مراد دَ دے نه عرض دے یعنی اعمال به ورته پیش کړیشی نو دے به او یریږی نو الله تعالیٰ به او فرمائی چه ما تا ته دا ټول معاف کړے دی۔ او محاسبه په اصل کښ مناقشے ته وئیلے کیږی هغه خو سبب دَ تباهئ دے۔ او مناقشه دا ده چه دَ لوئے او وړوکی عمل حساب اوکړی او دَ لِمَ (وجه او علت) او دَ کَیْفَ تپوس اوکړی.

وَيَنْقَلِبُ انقلاب واپس کیدل دا سے حال ته چه دَ مخکښ حالت نه غیروی.

اِلٰی اَهْلِهٖ مراد تر ینه اهل دَ جنت دی حورے غلمان او هغه دنیوی اهل چه جنت ته داخل شویوی۔ مَسْرُوْرًا دا په بدل دَ هغه مشقتو نو او غمونو کښ دے چه په دُنیا کښ تیر کړیدی۔

ف ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ دا تخویف اخروی دے دویم قسم خلقو ته۔ او دا دلیل دے چه اول قسم ته به عملنامه دَ ښے طرف نه ورکوی او دویم قسم ته به دَ شا دَ طرف نه په کس لاس کښ ورکوی. دا رنګ په سورۃ الحاقه ۲۵ کښ ذکر شویدی او دَ شا نه ورکولو کښ دَ دوی ډیر تذلیل او توهین دے.

فائده:۔ دے ته اکتفاء وئیلے کیږی یعنی په هر قسم کښ یو څیز ذکر کول اوبل څیز حذف کول۔ نو دَ بیمینه نه ئے اَمَامَهٗ حذف کړے دے او دَ وَرَاءَ ظَهْرِهٖ نه ئے بِشِمَالِهٖ حذف کړے دے۔ بیا په اول قسم کښ بیمینه مقصود وو ځکه چه اشاره وه چه مؤمنانو اعمال دَ خیر په ښی لاس باندے کول او قرآن کریم ئے په ښی لاس سره نیولو۔ او په دویم قسم کښ مقصود وراء ظهره وو یعنی کتاب دَ الله تعالیٰ ئے شا طرف ته غورځولے وو لکه چه فرمائیلے دی نبذ واکتاب الله وراء ظهورهم نو په هر جانب

وَّيَصْلٰى سَعِيْرًا ﴿١٢﴾ اِنَّهٗ كَانَ فِيْٓ اَهْلِهٖ

او داخل به شي اور تيز ته. يقيناً دے وو په خپل كور كښ

مَسْرُوْرًا ﴿١٣﴾ اِنَّهٗ ظَنَّ اَنْ لَّنْ يَّحُوْرَ ﴿١٤﴾ بَلٰٓى

خوشحاله، يقيناً دهٔ گمان كولو چه او به نه گرځي الله تعالى ته، بلكه

اِنَّ رَبَّهٗ كَانَ بِهٖ بَصِيْرًا ﴿١٥﴾ فَلَآ اُقْسِمُ

يقيناً رب د دهٔ دے دهٔ لره ليدونكے. نو داسے نه ده قسم كوؤم

بِالشَّفَقِ ﴿١٦﴾ وَالَّيْلِ وَمَا وَسَقَ ﴿١٧﴾ وَالْقَمَرِ

په سُرخئ د مانيام، او په شپه باندے او هغه څه چه راجمع شي، او په سپوږمئ باندے

كښ امر مقصود باندے ئے اكتفاء اوكړه. يَدْعُوْا ثُبُوْرًا لكه چه سورة فرقان ۱۳ ۱۴ كښ ذكر دي يعنې ځان د پاره به هلاكت او تباهي غواړي په طريقه د دعاء شر سره يا په طريقه د استغاثے سره به وائي هائے افسوس هلاك او تباه شوم. فِيْٓ اَهْلِهٖ مَسْرُوْرًا يعنې په دُنيا كښ په دوي باندے غمونه او تكاليف را غلي نه وو بندګئ، دعوت، جهاد وغيره كښ ځان نه دے ستړے كړے نو د هغے د وجے نه په آخرت كښ به په تباهئ او تكليفونو كښ اخته شي.

۱۴ ۱۵ دا سبب د عذاب ذكر كوي، لَنْ يَّحُوْرَ حور واپس كيدلو ته وئيلے شي نو مراد تري نه رجوع الى الله ده يا مراد تري نه بعث بعد الموت دے او مقصد ئے يو دے يعنې دا شخص د قيامت نه منكر وو او په دے كښ صرف د ظن تابع وو. كَانَ بِهٖ بَصِيْرًا يعنې د دهٔ په ټولو حالاتو او ټولو ذراتو د بدن باندے عالم دے يا د دهٔ په سعادت او شقاوت باندے عالم دے.

۱۶ ۱۷ ۱۸ دا قسم دے په څلورو څيزونو باندے. شفق، الليل، وما وسق، والقمر، او دا حالات مختلفه دي په ترتيب سره اول شفق وي چه ابتدا د شپے ده بيا پوره شپه شي نو په هغے كښ عام حيوانات خپلو ځايونو ته راجمع كيږي او په شپه كښ سپوږمے ده چه هغه هم رڼا تے په بل مخ)

إِذَا اتَّسَقَ ﴿۱۸﴾ لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَنْ طَبَقٍ ﴿۱۹﴾

هر کله چه پوره شي، خامخا ورځئ به تاسو یو حال ته روستو دَ بل حال ته.

تدریجًا کمال ته رسیږي. شَفَقِ په لغت او شرع دواړو کښ سور والی دَ ماښام ته وئیلے کیږي چه دَ ماښام آخر دے او دَ هغې غائب کیدل دَ ماسخوتن ابتدا ده او په نیز دَ بعضِ اهل علم هغهٔ سپین والی ته وئیلے شي چه روستو دَ سوروالی نه وي یعني شفق دَ اضدا دو نه دے. وَمَا وَسَقَ، وسق جمع کولو ته وئیلے شي یعني په شپه کښ جمع کیږي هغه څیزونه چه دَ ورځے خواره شوي وي. دا رنګ په دے کښ ستوري په یو ځائے ښکاره شي. او بل قول دا دے چه وسق پټولو ته وئیلے کیږي یعني دَ شپے په تیارے سره ټول څیزونه پټ شول. نو دا قسم شو په ټولو مخلوقاتو چه دَ شپے خپل ځایونو ته راجمع کیږي یا هغه چه دَ شپے په تیارے سره پټیږي. اتَّسَقَ داهم دَ وسق نه دے یعني دَ څوارلسمے شپه بانده دے چه سپوږمے جمع شي او ډکه شي اول وړه وي نو بیا په دمه دمه پوره شي.

ف ۱۹ دا جواب قسم دے او دا خطاب دے نبي صلی الله علیه وسلم ته یا ټول امت دَ هغه ته یا ټولو خلقو ته. طَبَقًا هغه حالت چه دَ بل حالت سره مطابق دے عن په معنیٰ دَ بعد سره دے یعني یو حال روستو دَ بل حال نه. بنا په دے چه خطاب شي نبي صلی الله علیه وسلم ته نو یو معنیٰ دا ده چه په تا بانده اے نبي حالات مختلف دَ سختو او دَ تکلیفونو به راځي پشان دَ انبیاؤ سابقینو. دویمه معنیٰ دا ده چه مختلف حالات دَ ترقی او دَ فتوحو به راځي. دریمه معنیٰ دا ده چه یو اسمان ته به خیژے بیا بل اسمان ته بیا بل یعني په شپه دَ معراج. څلورمه معنیٰ دا ده چه په تا بانده به مرګ راځي بیا به بعث وي بیا به میدان حشر وي بیا به جنت وي. او چه خطاب شي امت ته نو معنیٰ دا ده چه په تاسو کښ به مشابهه حالات دَ یهودو او نصارٰی راځي، لکه چه په حدیث صحیح کښ راغلے دي چه لتتبعنّ سنن من قبلکم (الحدیث) او چه خطاب شي ټولو خلقو ته نو معنیٰ دا ده چه ورځے به تاسو حال دَ ځوانئ ته

فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٢٠﴾ وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ

نو څه وجه ده دوی لره چه نه لري ایمان ، او کله چه اولوستلے شي په دوی باندے

الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ ﴿٢١﴾ ۩ بَلِ الَّذِينَ

قرآن نو نه کوی سجده . بلکه هغه کسان چه

كَفَرُوا يُكَذِّبُونَ ﴿٢٢﴾ وَاللَّهُ أَعْلَمُ

کافران دی دوی خو تکذیب کوی ، او الله تعالیٰ پوهه دے

بیا بوډا والے ، بیا مرګ بیا برزخ بیا دوباره ژوند بیا حساب میزان وقوف صراط بیا جنت یا جهنم . دا روستو معنیٰ عام مفسرینو غوره کړیده او په دے کښں مقصد اثبات دَ قیامت دے او مناسبت په منځ دَ قسم او جوابِ قسم کښں دا دے چه لکه په شپه او ورځ کښں او په سپوږمۍ کښں مختلف حالات راځی نو دَ دے نه عبرت واخلئ چه په تاسو باندے به هم مختلف حالات راځی او اخري حالت دَ بعث بعد الموت دے.

۲۰ ۲۱ دا زجرونه دی په ذکر دَ څلورو حالاتو دَ منکرینو سره یعنی په ذکر دَ حالاتو دَ قیامت او په قسمونو سره یقینی معلومه شوه چه قیامت راځی نو ولے دا خلق وړباندے ایمان نه راوړی. په اول ایت کښں کفر او شرک اعتقادی ته اشاره ده او په دویم کښں کفر او شرک عملی ته اشاره ده .

لَا يَسْجُدُونَ یعنی سجده الله تعالیٰ ته نه خاص کوی بلکه غیر الله ورسره شریک جوړوی . یا مراد دَ سجود نه مونځ کول دی په ذکر دَ جزء او مراد ترینه کل یا مراد ترینه انقیاد دے احکامو دَ قرآن کریم ته . او په هر تفسیر سره شامل دے سجده کولو ته دَ دے وجے نه اکثر اهلِ علم په دے کښں دَ سجدے قائیل دی ځکه چه الله تعالیٰ سجده نه کوونکو ته زورنه ورکړیده نو مؤمن له پکار دی چه په دلے ځائے کښں سجده اوکړی .

۲۲ ۲۳ دا هم دَ منکرینو حالات دی . يُكَذِّبُونَ مفعول ئے رپاتے په بل مخ)

بِمَا يُوعُونَ ﴿۲۳﴾ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿۲۴﴾

په هغه څه چه دوی یې په زړونو کښې پټوی، نو زیرے ورکړه دوی ته په عذاب دردناک.

إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

مګر هغه کسان چه ایمان یې راوړے دے او عملونه یې کړی دی نیک

لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴿۲۵﴾

دوی لره ثوابونه دی بے انتها

حذف کړے دے دَ دے دَ پاره چه عموم پکښې راشی یعنی هیڅ خبره دَ قرآن او حدیث نه یُوعُونَ مَعنیٰ دَ ایعاء نه دے چه هغه دَ وِعَاء نه ماخوذ دے په لوښی کښې کیخودل او جمع کول مراد ترینه انکار دَ حق دے، حسد او بُغض دشمنی دَ مؤمنانو سره چه دَ دوی په زړونو کښې پرته ده.

۲۴۔۲۵ په اول آیت کښې تخویف دے متفرع دے په مَا سره په څخکښې عملونو باندے او بشارت یې دیته استهزاءً وئیلے دے.

او دویم آیت کښې بشارت دے. غَيْرُ مَمْنُونٍ دَ منّ نه دے په معنیٰ دَ ضعیف او ناقص سره او بعضو وئیلی دی چه دَ من نه دے په معنیٰ دَ احسان سره یعنی احسان به نشی خیژولے په جنتیانو باندے لیکن ابن کثیر دا توجیه رد کړیده.

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة انشقاق په فضل دَ الله تعالیٰ سره

| سُوْرَةُ الْبُرُوْجِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۲۲ | ركوعها ۱ |
| --- | --- | --- | --- |

وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْبُرُوْجِ ۝۱ وَالْيَوْمِ

قسم دے په اسمان غوندې ستورو والا - او په هغه ورځ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة البروج

**ربط دَ دے سورت** دَ ما قبل سره په څو طریقو دے. اوله طریقه داده چه مخکښ سورت کښ تخویف اخروی وُوَ منکرینو ته نو په دے سورت کښ تخویف دنیوی دے په واقعاتو دَ اصحاب الاخدود او فرعون او ثمود سره. دویمه طریقه داده چه مخکښ کدح (مشقت) صالحه ته ترغیب وُوَ او دَ کدح سیئه والا دَ پاره زجر وُوَ نو په دے سورت کښ دَ کدح سیئه عاقبت ذکر کوی په عذاب دنیوی او اخروی دواړو سره. دریمه طریقه داده چه په هغه سورت کښ يُوْعُوْنَ فرمائیلے وُوَ نو په دے سورت کښ هغه دشمنی ئے ذکر کړه چه کافرانو په زړه کښ پټه ساتله.

**دعویٰ دَ سورت.** تخویف دنیوی دے منکرینو ته په ۱ تر ۱۳ کښ سره دَ رد دَ شرک فی التصرف نه په ۹ تر ۱۶ کښ او شرک فی العلم په ۹ کښ او اسماءِ حسنیٰ دَ الله تعالیٰ ئے لس ذکر کړے دی.

**خلاصه دَ سورت داده** اول شواهد دی په دعویٰ دَ سورت باندے تر ۳ پورے بیا مثال دَ دعوے دَ سورت دے په واقعه دَ اصحاب اخدود سره او دَ هغوی ښځه احوال قبیحه ذکر دی تر ۸ پورے بیا تصرف او شهادت (علم) دَ الله تعالیٰ ئے ذکر کړے دے دلیل دَ پاره دَ دعوے دَ سورت په ۹ کښ بیا تخویف اخروی او بشارت دے په ۱۰ ۱۱ کښ بیا تاکید دَ دعوے دَ سورت او دَ هغے اثبات دے په ذکر دَ اته صفتونو دَ الله تعالیٰ سره تر ۱۶ پورے (پاتے په بل مخ)

الْمَوْعُوْدِ ﴿۲﴾ وَشَاهِدٍ وَّمَشْهُوْدٍ ﴿۳﴾ قُتِلَ

چه وعده کړے شوے ده، او تماشگير او هغه څوک چه تماشه ئې کيږي، تباه کړے شول

بيا دوه مثالونه دي دَ پاره دَ دعوے دَ سورت په ۸ کښ بيا سبب دَ عذاب زجراً ذکر دے په ۹ کښ بيا صفت دَ احاطے دَ الله تعالیٰ دے او تاکيد دَ دعوے دَ سورت په ۲۰ او اختتام ئې په ترغيب الی القرآن کړيدے دَ پاره دَ بچ کيدلو دَ عذاب نه په ۲۱ ۲۲ کښ.

تفسير ۱ دا قسم دے الْبُرُوْجِ برج په اصل کښ ښکاره کيدلو ته وئيلے کيږي نو ستورو او ځايونو دَ ښکاره کيدو دَ ستورو ته دا لفظ شامل دے او بروج خائسته پيدا ئښ ته هم وئيلے شي او منازل دَ نمر او سپوږمۍ ته هم وئيلے کيږي چه منازل دَ نمر دولس او دَ سپوږمۍ اتويشت دي او هم دا سے په سورة فرقان ۶۱ کښ او سورة حجر ۱۶ کښ تير شويدي.

۲ دا هم قسم دے او مراد دَ دے نه ورځ دَ قيامت ده په اتفاق دَ مفسرينو سره ځکه چه قرآن کښ دَ هغے وعده کړے شوے ده دَ مخلوق سره او هغے ته الميعاد هم وئيلے کيږي.

۳ په دے کښ ډير اقوال دي اول دا چه شاهد ورځ دَ جمعے ده او مشهود ورځ دَ عرفے ده او دا په حديث کښ راغلے دي او دَ هغه حديث په رفع کښ ضعف دے او موقوف صحيح دے. دويم اعضاء دَ انسان شاهد دي او انسان مشهود دے. دريم انسان شاهد دے او ورځ دَ قيامت مشهود ده لکه په سورة هود ۱۰۳ کښ دي. څلورم هر نبي شاهد دے په امت خپل باندے او امت دَ هغه مشهود دے. پنځم لوستونکے دَ قرآن او ملائک شاهد دي او لوستل دَ قرآن مشهود دي لکه چه فرمائيلے دي ان قرآن الفجر کان مشهوداً شپږم هر کافر چه په دنيا کښ موحدينو ته تماشے کوي او هغوی له عقوبتونه ورکوي نو هغه شاهد دے او مؤمن مشهود دے لکه چه اصحاب اخدود ته ئې مشهود وئيلے دي. اووم په عکس دَ دے يعنی په ورځ دَ قيامت هر مؤمن شاهد دے او هر کافر مشهود دے، غوره دا ده چه دا دواړه الفاظ مطلق دي نو دے ټولو ته شامل دي تخصيص ئې صرف په طريقه دَ مثال سره دے.

أَصْحٰبُ الْأُخْدُوْدِ ۝۴ النَّارِ ذَاتِ الْوَقُوْدِ ۝۵

کندونکی دَ کندو ، اُور دیر خشاک والا ،

فائده :- دَ دے قسمونو په جواب کښې اختلاف دے بعضو وئیلې دی چه جواب پټ دے یعنی اِنَّ هٰؤُلَاءِ مُعَذَّبُوْنَ . دَ بعضو قول دا دے چه اِن بطش ربك لشدید دَ دے جواب دے ، دَ فراء قول دا دے چه قُتِلَ کښې لَقَدْ پټ دے او دا ئې جواب دے او مناسبت دَ قسم دَ جواب قسم سره دا دے چه په اسمان او په نمر ، سپوږمئ او ستورو کښې نمونے دَ عذاب شته چه په مخکښې بعض قومونو باندے دَ دے نه عذابونه راغلی دی او یوم موعود خو دَ منکرینو دَ عذاب دَ پاره ده او هر شاهد (لیدونکے) دَ الله تعالیٰ عذابونه لیدلے دی او په هر مشهود باندے دَ عذابونو نخے شته دے . دا ټول دلالت کوی چه دے منکرینو ته به الله تعالیٰ په دنیا کښې عذاب ورکوی او دا رنګ الله تعالیٰ قادر دے چه اسمان ئې پیدا کړے دے او په هغې کښې بروج لګولے دی او مخلوق به فنا کوی او بیا به ئې ژوندی کوی او مخلوق ئې په صفت دَ شهادت سره پیدا کړیدی یا به شاهد وی او یا به مشهود وی نو دا رنګ قادر دے په عذاب دَ منکرینو باندے .

۴ ۵ ۶ ۷ دا مثال دَ تخویف دنیوی دے چه دعوٰی دَ سورت ده او عذاب دَ اصحاب اخدود ذکر کوی او دَ هغوی پنځه حالات .

قُتِلَ دَ ابن عباس رضی الله عنهما په نیز په قران کښې قتل (په محل دَ دعا کښې) په معنیٰ دَ لعنت دے أُخْدُوْدِ مفرد دے اوکنده کنده چه جوړه کړے شی په زمکه کښې او جمع دَ دے اخادید راځی . النَّارِ بدل اشتمال دے دَ الاخدود نه یا بدل کل دے دَ حذف دَ مضاف سره یعنی اخدود النار . الْوَقُوْدِ په زور دَ واو سره په معنیٰ دَ خاشاک دَ اُور بلولو دے . یعنی دالوئے اور وؤ چه دَ ډیر خاشاک نه ډک وؤ .

إِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُوْدٌ اذ متعلق دے په قتل پورے عَلَيْهَا علی په معنیٰ دَ عند دے یعنی دَ اور دَ کندے په غاړه باندے ناست وؤ .
قُعُوْدٌ جمع دَ قاعد ده . وَهُمْ عَلٰى مَا يَفْعَلُوْنَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ شُهُوْدٌ (پاتے په بل مخ)

إِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُودٌ ﴿٦﴾ وَهُمْ عَلَىٰ

کله چه دوی دَ هغې په خواکښې ناست وو، او دوی په هغې

مَا يَفْعَلُونَ بِالْمُؤْمِنِينَ شُهُودٌ ﴿٧﴾

هغه کارونو چه کول یې دَ مؤمنانو سره تماشه کوونکی وو.

په دے کښې اشاره ده دَ دوی ډیر جبر او تشدد او بے رحمۍ ته چه سره دَ دے چه دوی ناست وو یعنی دَ ځائے نه نۀ خوځیدل او دَ مؤمنانو دَ سوځیدلو تماشه یې کوله او په زړونو کښې هیڅ ترس او رحم نه پیدا کیدلو. او دَ دے واقعې په باره کښې ابن کثیر روایات دَ مسند احمد نه او صحیح مسلم او جامع ترمذی او دَ محمد بن اسحاق نه نقل کړی دی او دَ هغې واقعې نه معلومیږی چه دا په نجران کښې په زمانه دَ فترة (په مینځ دَ عیسٰی علیه السلام او دَ بعثت دَ نبی صلی الله علیه وسلم) کښې تیره شوے ده هرکله چه اکثر یهود او نصارٰی وو دین دَ توحید پریخودے وو او په شرک، سحر او کهانت کښې اخته شوے وو او بعض راهبان مؤحدین دَ ویرے دَ وجے نه په کوټونو کښې ناست وو نو دَ یو راهب مؤحد په وجے سره دَ عبدالله بن تامر نومے هلک دَ توحید تربیت اوکړے شو او هغه له الله تعالٰی بعض کرامات هم ورکړے وو او هغه او دَ هغه ملګرو دَ توحید دعوت شورو کړو نو دَ هغے وخت بادشاه او ډیر خلقو دَ هغوی مخالفت شورو کړو او راهب یې په اره باندے پریکړو او عبدالله بن تامر یې دَ هغه په غشی سره شهید کړو او نور مؤحدین یې دَ اُور کندے ته او غورځول او په هغې کښې یې شهیدان کړل نو دَ الله تعالٰی غضب په هغه قوم باندے راغے او لعنت پرے اوکړے شو او بعض مفسرینو ذکر کړیدی (په حدیث مرفوع کښې نیشته) چه هغه اور را اوچت شو او دا کافران یې په هغه ساعت کښې ټول او سیزل او مړهٔ شول. او قرطبی ویلی دی چه په دے واقعه کښې دَ دے امت دعوت کوونکو لره عبرت دے چه په بیان دَ حق کښې دے کلک شی او تکلیفونه او مصیبتونه دے پشان دَ هغه نوجوان تیر کړی

وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ اِلَّآ اَنْ يُّؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ

او بد نه گڼلو دوی د هغوی نه مګر دا چه هغوی ایمان راوړے وو په الله تعالیٰ

الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ﴿۸﴾ الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ

چه زور اور ستائیلے شویدے ، دا هغه ذات دے چه هغه لره بادشاهي ده

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ

د اسمانونو او د زمکے ده - او الله تعالیٰ په هر څیز باندے

ترڅو پورے چه خپل سر هم په لار د الله تعالیٰ کښ قربان کړی (اللهم وفقنا لهذا العمل)-

۸-۹ دا هم حال د اصحاب الاخدود دے او سبب د دشمنئ د دوی دے د مؤمنانو سره او په دے حصر کښ زیاته تقبیح د دغه خلقو ده چه بل هیڅ سبب د دشمنئ نه وو ما سیوا د ایمان نه ، او مدح د مؤمنانو ده چه په هغې کښ داسے یو صفت نه وو چه عیب وو په نیز د کافرانو ماسیوا د ایمان نه او ایمان خو عیب نه دے او دا سبب ذکر دے په سورة مائده ۵۹ او سورة اعراف ۱۲۶ او سورة حج ۴۰ کښ او دا حال په ټولو اهل باطلو کښ دے چه حق پرستو سره ئې دشمني په حق باندے وی لکه چه ابن قیم په تفسیر بدائع ص۱۷۲ کښ لیکلی دی چه مشرکین د مؤحدینو سره په خالص توحید باندے دشمني کوی او اهل بدع د متبعین سنت سره صرف په اتباع سنت باندے دشمني کوی او معطله د اهل سنت سره په اثبات د صفتونو د الله تعالیٰ سره دشمني کوی او روافض د سنیانو سره د صحابو د محبت د وجے نه دشمني کوی او اهل الرائ (مقلدین) د اهل حدیث او حزب الرسول سره صرف په دے وجے سره دشمني کوی چه دوی په حدیث باندے عمل کوی نو پدے ټولو کښ د اصحاب اخدود من وجه مشابهت دے - اَنْ يُّؤْمِنُوْا مراد تری ایمان شرعی دے چه خالی دے د ګډون د شرک او د انکار نه-

بِاللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ الَّذِيْ لَهٗ اه په دے کښ د الله تعالیٰ هغه صفات ذکر کوی چه سبب د ایمان دے او دا رنګ پکښ اشاره ده (ړاتے په بل مخ)

شَهِيْدٌ ﴿٩﴾ إِنَّ الَّذِيْنَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِيْنَ

حاضر ناظر دے۔ یقیناً هغه کسان چه تکلیفونه ئے ورکړیدی مؤمنانو سړو

وَالْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ لَمْ يَتُوْبُوْا فَلَهُمْ

او مؤمنانو زنانو ته بیا ئے نه ده ویستلے توبه نو دوی لره

عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيْقِ ﴿١٠﴾

عذاب دَ جهنم دے او دوی لره عذاب دے دَ اُور سوځوونکی۔

چه څوک دَ هغه چا سره دشمنی کوی چه ایمان لری په هغه الله تعالیٰ چه موصوف دے په دے صفاتو سره نو هغه دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه نشی بچ کیدلے ځکه الله تعالیٰ عزت والا زورا ور او بادشاه دَ اسمانونو او زمکے دے او په هر څیز باندے خبردار او عالم دے او په دے کښ رد دَ شرك فی التصرف والعلم هم ذکر شو۔ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ شَهِيْدٌ دَ نبی په صفت کښ هم شهید راغلے دے بلکه دَ ټولو مؤمنانو صفت په شهداء سره راغلے دے لیکن دَ هغے سره کل شیءٍ نه دے راغلے او دا لوئے فرق دے په صفت دَ الله تعالیٰ او په صفت دَ مخلوق کښ صرف اشتراك لفظی دے او هغه هم په تقیید سره وهم دَ شرکت لره زائل کوی۔

سئله دا هم تاکید دَ دعوے دَ سورت دے او تخویف دے هغه چالره چه دَ اصحاب اخدود په شان دَ موحدینو سره معامله کوی او ایت عام دے۔ إِنَّ الَّذِيْنَ فَتَنُوْا اَه فتن سوځولو ته وئیلے شی او دا رنګ فتن په معنیٰ دَ اړولو او ګرځولو هم راځی یعنی اراده کوی او کوشش کوی چه مؤمنانو لره دَ ایمان نه اوګرځوی او دا رنګ فتن په معنیٰ دَ عذاب او تکلیف ورکولو سره هم راځی لکه تفتنون فی قبورکم۔ یعنی دوی مؤمنانو لره تکلیفونه او اذیتونه رسوی۔ ثُمَّ لَمْ يَتُوْبُوْا اشاره ده چه په توبے دَ کافر سره ټول ګناهونه بلکه حقوق دَ بندګانو هم معاف کیږی او لفظ دَ ثُمَّ کښ اشاره ده چه توبه روستو په تاخیر سره اوکړی په دے شرط چه دَ غرغرے نه وړاندے وی نو هغه توبه قبلیږی۔ حسن بصری رح فرمائیلے دی چه دَ الله تعالیٰ دے کرم ته اوګورئے چه دُشمنان، دَ

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ

| يقيناً هغه کسان | چه ايمان ئې راوړے دے او عملونه ئې کړي دي نيک | دوی لره |
|---|---|---|

جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۚ ذَٰلِكَ

| جنتونه دي بهيږي به | لاندې د هغې نه | نهرونه (ويالې) - | دا |
|---|---|---|---|

الْفَوْزُ الْكَبِيرُ ﴿١١﴾ إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيدٌ ﴿١٢﴾

| کامیابي | لويه ده - | يقيناً نيول | د رب ستا خامخا ډير سخت دي - |
|---|---|---|---|

الله تعالیٰ اولياؤ لره سيزي په اور باندے او الله تعالیٰ ورته د توبے ترغيب ورکوی.

فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ د کفر د وجے وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيقِ د مؤمنانو د سوځولو د وجے نه ځکه چه جزاء د جنس د عمل نه وی.

او دويمه جمله تفسير د اولے دے يعنی عذاب جهنم به په حريق سره وی يا اول عذاب په نورو قسمونو سره دے او دويم عذاب په اور سره دے.

[۱۱] دا بشارت دے مؤمنانو ته هغه چه په تير شوی ايت کښ د هغوی مفتونيت ذکر کړے شو. ذَٰلِكَ مذکر ئې راوړو په تاويل د مذکور سره يعنی اخيار د الله تعالیٰ په حصول د جنتونو او نهرونو چه مستلزم دے رضا د الله تعالیٰ لره دا کاميابي لويه ده.

[۱۲] دا تاکيد د دعوے د سورت دے يعنی الله تعالیٰ به دوی لره سخت عذاب ورکوی ځکه چه د هغه نيول سخت دی.

بَطْشَ نه مراد په زور سره نيول دی. او شَدِيدٌ نه مراد دا سے نيول دی چه خوک ئې خلاصولے نه شی او دا رنګ په سورة هود [۱۰۲] کښ دی. او دلته ئې تعبير په بطش سره کړے دے اشاره ده چه د اصحاب الاخدود عذاب ډير سخت وو.

إِنَّهُ هُوَ يُبْدِئُ وَيُعِيدُ ﴿١٣﴾ وَهُوَ الْغَفُورُ

يقيناً هغه اول پيدا ګښت کوي او دوباره هم، او هغه دے بخنه کوونکے

الْوَدُودُ ﴿١٤﴾ ذُو الْعَرْشِ الْمَجِيدُ ﴿١٥﴾ فَعَّالٌ

مينه کوونکے، خاوند دَ عرش دے لوئے شان والا دے، کوونکے دے

لِّمَا يُرِيدُ ﴿١٦﴾ هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ

دَ هغه څه چه اوغواړي. يقيناً راغلے دے تاته خبر

۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶ په دے ايا تونو کښ ذکر دَ صفاتو دَ الله تعالیٰ دے دَ پاره دَ تاکيد دَ دعوے دَ سورت او دليل دے دَ پاره دَ مخکښ ايت چه بطش دَ رب شديد دے ځکه چه موصوف دے په داسے صفتونو سره. يُبْدِئُ وَيُعِيدُ مراد دَ دے نه اول پيدا ګښت او بيا دويم پيدا ګښت دے او طبري وئيلے دي چه عذاب په دنيا کښ ورکوي او بيا ئے په قيامت کښ هم ورکوي. الْوَدُودُ په معنیٰ دَ فاعل دے يعنی محبت کوونکے دے دَ دوستانو خپلو سره يعنی بخنه هم کوي او محبت هم کوي. دارنګ په معنیٰ دَ رحم کوونکے هم راځي او په معنیٰ دَ مفعول هم کيدے شي يعنی محبوب دے دَ مؤمنانو ته او مبرد وئيلے دي چه ودود هغه دے چه ولد ئے نه وي. الْمَجِيدُ په پيښ سره دے او صفت دَ الله تعالیٰ دے او په بل قراءت کښ په زير سره دے نو صفت دَ عرش دے او معنیٰ دَ مجد په کرم او فضل کولو کښ انتها کول دي.

فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ صيغه دَ مبالغے دَ وجے دَ کثرت دَ کارونو نه ده يا مبالغه اشاره ده چه الله تعالیٰ دَ پاره هيڅوک مانع نيشته او دا دليل دے چه الله تعالیٰ باندے هيڅ څيز واجب نه دے او ټول افعال دَ بندګانو مخلوق دَ الله تعالیٰ دي. مفسرينو روايت ذکر کړے دے چه ابوبکر رضی الله عنه بيمار وو ملګري ئے تپوس له راغلل هغوي اوئيل چه طبيب درله راولو هغه اوئيل طبيب زه ليدلے يم هغوي تپوس اوکړو چه تاته ئے څه وئيلي دي جواب ئے اوکړو چه هغه وئيلي دي. فعال لما يريد.

الْجُنُوْدِ ﴿۱۷﴾ فِرْعَوْنَ وَثَمُوْدَ ﴿۱۸﴾ بَلِ الَّذِيْنَ

دَ لښکرو ، دَ فرعون او ثمود . بلکه هغه کسان چه

كَفَرُوْا فِيْ تَكْذِيْبٍ ﴿۱۹﴾ وَّاللّٰهُ مِنْ وَّرَآئِهِمْ

کفر ئې کړيدے په تکذيب کښې مشغوله دي ، او الله تعالیٰ دَ دوی دَ هر طرف نه

۱۷ ۱۸ دا هم تاکيد دے دَ دعوے دَ سورت په ذکر کولو دَ نورو نمونو دَ عذاب دنيوی . هَلْ په معنیٰ دَ قد سره دے . حَدِيْثُ اسم جنس په معنیٰ دَ جمع سره دے . اَلْجُنُوْدِ لښکرے دَ کافرانو په مخالفت دَ انبياؤ عليهم السلام او مؤمنانو کښې .

فِرْعَوْنَ وَ ثَمُوْدَ بدل دے دَ الجنود نه په تقدير دَ فرعون وقومه وثمود نو دا هم جمع شوه او دَ جمع نه بدل صحيح شو يا منصوب دے په تقدير اَعْنِيْ سره . او مراد دا دے چه تا ته دَ هغوی دَ هلاکت خبرونه رارسيدلے دي نو دغه شان دا موجوده چه تکذيب کوی نو دَ هغوی په شان به هلاک شی او په تخصيص دَ فرعون او ثمود کښې اشاره ده چه دَ فرعون پشان بادشاهی وی نو هغه بادشاهی ئې نشی بچ کولے او چه دَ ثمود يانو پشان مالونه او کارخانے او هنرونه وی نو هغه ئې هم نشی بچ کولے نو په عربو کښې چه بادشاهئ وے يا هنرونه وؤ نو هغه هم دے منکرينو ته فائده نشی ورکولے .

۱۹ ۲۰ دا زجر دے سبب دَ پاره دَ عذاب دے . بَلْ دَ پاره دَ اضراب دے دَ محذوف نه يعنی فرعون او ثمود هم تکذيب کړے وؤ ليکن موجوده خلق دَ هغوی نه په تکذيب کښې زيات دي ځکه چه دوی نمونے دَ عذاب ليدلے او اوريدلے دي او بيا هم تکذيب کوی .

فِيْ تَكْذِيْبٍ فِيْ دَ پاره دَ انغماس دے او دَ تکذيب تنوين دَ پاره دَ تعظيم دے يعنی دوی په ډير لوئے تکذيب کښې ورننوتلے دی چه بهر ترينه نشی راوتلے .

مِنْ وَّرَآئِهِمْ اشاره ده هر جانب ته ځکه چه لفظ وَرَآء کله په ټولو اطرافو باندے اطلاق کيدے شی (ر پاتے په بل مخ )

مُّحِيْطٌ ﴿۲۰﴾ بَلْ هُوَ قُرْاٰنٌ مَّجِيْدٌ ﴿۲۱﴾

راګیروونکے دے، بلکه دا قران دے لوئے شان والا،

فِيْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ ﴿۲۲﴾

په تختو ساتلے شوے کښ دے۔

مُحِيْطٌ یعنی قدرت او علم ئے راګیروونکے دے او دا معنیٰ دَ سلف صالحینو نه نقل ده او په عرف کښ احاطه هم دے ته وئیلے شی چه تسلط او قدرت ئے چاپیره وی. نو دوی دَ الله تعالیٰ دَ احاطے نه په هیڅ طریقه وتلے نشی۔

۲۱ ۲۲ دا ذکر دَ صداقت دَ قران کریم دے دَ پاره دَ رد کولو په تکذیب کوونکو باندے نو بَل دَ پاره دَ اضراب دے دَ تکذیب نه. مَجِيْدٌ انتهائی شرافت او عظمت دے دَ دے قران په الفاظو او معانیو کښ څوک ئے مقابله نشی کولے نو تکذیب ئے ولے کوی؟

فِيْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ دا په زیر سره صفت دَ لوح دے او حقیقت دَ هغه لوح الله تعالیٰ ته معلوم دے ځکه دَ هغے دَ کیفیت دَ علم دَ پاره صحیح صریح نص نیشته مَحْفُوْظٍ دَ تغیر او تبدیل او دَ فسق دَ شیطانانو نه محفوظ دے او هغے ته ام الکتاب هم وئیلے کیږی او کتاب مکنون ورته هم په سورة واقعه ۷۸ کښ وئیلے شوے دے نو هر کله چه دا سے محفوظ دے نو دَ دے تکذیب پکار نه دے۔

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة بروج په کرم دَ الله تعالیٰ سره.

| آیاتها ۱۷ | ركوعها ۱ |
|---|---|

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

سُوْرَةُ الطَّارِقِ الْمَكِّيَّةُ

وَالسَّمَآءِ وَالطَّارِقِ ﴿۱﴾ وَمَآ اَدْرٰىكَ

قسم دے په اسمان او په راتلونکی د شپے باندے، او څه خبر پوهه کړے ته

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سورة الطارق

**ربط دَ دے سورت** دَ ما قبل سره یو دا دے چه په مخکښ سورت کښ ذکر دَ نزول دَ عذاب وو په مخکنو قومونو باندے نو په دے سورت کښ ذکر دَ عذاب دے په موجوده منکرینو باندے سره دَ مهلت ورکولو۔ دویم ربط دا دے چه په مخکښ سورت کښ تخویف وو مکذبینو ته نو په دے سورت کښ دَ دغسے انسان تحقیر او ذلت ذکر کوی۔

دریم ربط دا دے چه په هغه سورت کښ الیوم الموعود ذکر وو نو په دے سورت کښ دَ هغے دَ اثبات دَ پاره شواهد او دلائل ذکر کوی۔ څلورم دا دے چه په هغه سورت کښ ئے عام بروج (ستوری) ذکر کړی دی او په دے سورت کښ دَ هغے نه دَ یو قسم ستوری ذکر کوی۔

**دعوی دَ دے سورت.** تخویف دے په نزول دَ عذاب سره په موجوده منکرینو باندے په دنیا کښ او دَ الله تعالیٰ درے صفات ئے ذکر کړی دی حافظ، قادر، خالق۔

**خلاصه دَ دے سورت.** اول ذکر دَ دوه شواهدو دے په دے خبره چه الله تعالیٰ حافظ دَ هر نفس دے حفاظت دَ بعضو کوی په عفو سره او حفاظت دَ بعضو کوی په مهلت ورکولو سره تر ۴ پورے بیا دلیل نفسی ذکر کړے دے دَ پاره دَ اثبات دَ قیامت تر ۸ پورے بیا تخویف دے په ذکر دَ حال دَ قیامت چه سرائر به ښکاره شی سره دَ ذکر دَ عجز دَ انسان نه په ۱۰ کښ بیا ذکر دَ آفاقی دلیلونو دے تر ۱۲ پورے بیا ذکر دَ مکایدو دَ انسان دے چه رپاتے په بل مخ )

مَا الطَّارِقُ ۝۲ النَّجْمُ الثَّاقِبُ ۝۳ إِنْ كُلُّ

چه څه دے دَ شپے راتلونکے، ستورے دے ځلیدونکے، نیشته هیڅ یو

نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ ۝۴ فَلْيَنْظُرِ الْإِنْسَانُ

نفس مګر شته په هغه باندے ساتنه کوونکے. نو او دے ګوری انسان

سبب دَ عذاب دے او په اخر کښ دعوی دَ سورت ذکر کوی چه استحقاق دَعذاب دے سره دَ مهلت نه.

تفسیر ۱۔ ۲۔ ۳۔ په دے کښ دوه قسمونه دی په اسمان باندے او په طارق باندے۔ او طارق په جواب قسم کښ ډیر مفید دے لکه چه روستو به ذکر شی دَ دے وجے نه اول ئے مبهم ذکر کړو بیائے دَ هغے تفصیل اوکړو. او قتاده او مجاهد وئیلی دی چه مراد دَ الطَّارِقُ نه جنس ستوری دی چه دَ شپے راخیژی او دَ ورځے غائب وی تخصیص په یو ستوری پورے صحیح نه دے۔ النَّجْمُ الثَّاقِبُ ثقب سوری کولو ته وئیلی کیږی نو دا ستوری په رڼا سره ظلمت لره سورے کړی او دا رنګ په ویشتلو سره شیطان لره سورے کوی.

۴۔ دا جواب قسم دے۔ إِنْ مخفف دے دَ ثقیله نه په اصل کښ إِنَّ دے. لَمَّا دَپاره دَ تاکید دے یا ان نافیه دے او لمّا په معنیٰ دَ اِلّا سره دے او په لمّا مشدد کښ دا توجیه معینه ده او حافظ نه مراد الله تعالیٰ دے لکه په سورة یوسف ۶۴ او سورة انبیاء ۴۲ کښ دی یعنی الله تعالیٰ دَ هرچا حفاظت کوونکے دے او هغه چه دَ چا حفاظت نه کوی نو بل څوک ئے نشی کولے لکه سورة مؤمنون ۸۸ کښ۔ یا مراد دَ حافظ نه جنس دَ ملائکو دے یعنی په هر یو نفس باندے ډیر ملائک مقرر دی چه دَ هغه حفاظت کوی لکه په سورة رعد ۱۱ کښ دی یعنی الله تعالیٰ انسان لره مهمل نه دے پریخودلے بلکه دَحفاظت دَ ده او دَ اعمالو دَ ده دَپاره ئے ملائک مقرر کړیدی۔ (مناسبت) په مینځ دَ قسم او جواب قسم کښ دا دے چه الله تعالیٰ اسمان محفوظ کړیدے (سَقْفًا مَّحْفُوظًا) او په الطارق سره دَ اسمان حفاظت کوی دَ شیطانانو نه

مِمَّ خُلِقَ ﴿۵﴾ خُلِقَ مِنْ مَّآءٍ دَافِقٍ ﴿۶﴾

چه دَ څه نه پیدا کړے شویدے ۔ پیدا کړے شوی دے دَ اوبو توپ وهونکو نه ۔

يَّخْرُجُ مِنْۢ بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَآئِبِ ﴿۷﴾

چه راوځی دَ میانځ دَ ملا او دَ سینے نه ۔

نو دارنګ دَ هر انسان حفاظت کوی پخپله او په واسطه دَ ملائکو سره نو معلومه شوه چه دَ انسان پیدائش مهمل نه دے بلکه دے مکلف دے په احکامو دَ الله تعالیٰ سره اولکه چه اسمان اوچت مخلوق دے او الطارق په رنړا باندے مشتمل دے دَ پاره دَ شیطان دفع کولو نو دارنګ الله تعالیٰ دَ انسان دَ اوچت والی او دَ شیطان نه دَ حفاظت دَ پاره کتاب رالیږلے دے نو معلومه شوه چه انسان مهمل نه دے ۔ ۵ ۔ ۷ ۔ هر کله چه معلومه شوه چه انسان محفوظ او مکلف دے په احکامو سره او دَ دهٔ دَ پاره جزا او سزا ضروری ده او دَ هغے دَ پاره ورځ دَ اعادے ضروری ده نو دَ اثبات دَ معاد دَ پاره دلیل ذکر کوی دَ مبداء دَ انسان نه او داسے استدلال قران کریم کښ په ډیرو ایاتونو کښ شته لکه سورة اعراف ۲۹ او یٰسٓ ۷۹ ۔

فَلْيَنْظُرِ مراد دَ دے نه نظر دَ عبرت او فکر کول دی دَ دے وجے په صله کښ مِنَّ راغلے دے اِلیٰ ئے نه دے راوړے ۔

مَّآءٍ دَافِقٍ مراد دَ انسان نه ماسیوا دَ آدم او حواء علیهما السلام نه دی مَّآءٍ اسم جنس دے مراد دَ دے نه دوه قسمه اوبه دی دَافِقٍ په معنیٰ دَ مدفوق یا په معنیٰ ذو دفق دے په دے کښ اشاره ده چه کومه نطفه بغیر دَ شهوت (دفق) نه راوځی نو دَ هغے په استعمال سره حمل نه جوړیږی ۔ التَّرَآئِبِ زجاج نه روایت دے چه ترائب څلور پوښتئ دی دَ ښی طرف دَ سینے نه او څلور پوښتئ دی دَ کس طرف دَ سینے نه او مراد ترینه ترائب دَ زنانه دی دا دَ اکثر مفسرینو قول دے او مطابق دے دَ صحیح احادیثو سره او بعضو وئیلی دی چه ترائب دَ سړی مراد دی لیکن دغه قول شاذ دے ۔

إِنَّهُ عَلَىٰ رَجْعِهِ لَقَادِرٌ ﴿٨﴾ يَوْمَ تُبْلَى

يقيناً الله تعالىٰ په واپس كولو دَ هغه باندے خامخا قادر دے. په هغه ورځ ښكاره به

السَّرَائِرُ ﴿٩﴾ فَمَا لَهُ مِن قُوَّةٍ وَلَا

كړے شي رازونه ؛ نو نه به وي هغه لره هيڅ طاقت او نه

نَاصِرٍ ﴿١٠﴾ وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الرَّجْعِ ﴿١١﴾

مددګار . او قسم دے په اسمان راګرځيدونكي ،

وَالْأَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ ﴿١٢﴾ إِنَّهُ

او قسم دے په زمكه چه چودونكے ده چه يقيناً

۸ دا نتيجه دَ دليل ده . رَجْعِهٖ ضمير انسان ته راجع دے او رجع نه مراد دوباره ژوندى كول دى او دا قول غوره دے په نسبت دَ هغه قول سره چه ضمير مَآءٍ ته راجع شي اګرچه دَ قدرت دَ الله تعالىٰ نه بعيد نه ده .

۹ - ۱۰ يَوْمَ دا ظرف دَ رجعهٖ دے يا لفظ دَ اذكر مقدّر دے او مراد دے نه ورځ دَ قيامت ده .

تُبْلَى دَ بَلَآء نه ماخوذ دے او بَلَآء حقيقت ښكاره كولو ته وئيلے كيږي . السَّرَآئِرُ عقيدے ، نيتونه ، پټ عملونه كه ښه وي او كه بد وي ، بغض ، حسد ، دشمني ، محبت وغيره پكښې ټول داخل دي . فَمَا لَهٗ مِنْ قُوَّةٍ په دے كښې دَ انسان عجز ذكر كوي . قُوَّةٍ خپل طاقت مالي او بدني مراد دے او نَاصِرٍ نه خارجي مددګار مراد دے او په دے كښې نفي دَ الهه باطله هم داخل ده چه هغوى هم هيڅ مدد نه شي كولے رد دے په عقيده دَ شفاعة قهريه باندے .

۱۱ - ۱۲ دا هم ذكر دَ شواهدو دے په طريقه دَ قسم سره دَ پاره دَ اثبات دَ معاد او اثبات دَ صداقت دَ قرآن دے په ټولو خبرو كښې او خصوصاً په باره دَ خبر دَ دوباره ژوند كښې .

ذَاتِ الرَّجْعِ رَجْعِ حركت دَ اسمان يا حركت دَ شمس و قمر او ستورو

لَقَوۡلٌ فَصۡلٌ ﴿۱۳﴾ وَّمَا هُوَ بِالۡهَزۡلِ ﴿۱۴﴾

خامخا دا خبره پخه ده . او نه ده دا بيـځـې .

اِنَّهُمۡ يَكِيۡدُوۡنَ كَيۡدًا ﴿۱۵﴾ وَّاَكِيۡدُ

يقيناً دوى چلونه كوى چلونه او زهٔ هم تدابير كوم

كَيۡدًا ﴿۱۶﴾ فَمَهِّلِ الۡكٰفِرِيۡنَ اَمۡهِلۡهُمۡ رُوَيۡدًا ﴿۱۷﴾

تدابير ، نو مهلت وركړه كافرانو لره مهلت وركړه دوى لره لږه موده

په اسمان كښ او باران او تلل راتلل دَ ملائكو او نفع وركول دِے ټولو معانی ته عام شامل دے .

الصَّدۡعِ صَدۡع چودل دَ زمکے دی چه دَ هغے نه بوټی او معدنیات او چینے او اوبه را اوځی .

سـ۱۳ سـ۱۴ دا جواب قسم دے . اِنَّهٗ لَقَوۡلٌ فَصۡلٌ ضمير راجع دے قران ته او فصل نه مراد تفصيل دَ حرام او حلال او حق او باطل دے . يا ضمير راجع دے خبر دَ دوباره ژوندنه ته په دے قول كښ چه اِنَّهٗ عَلٰى رَجۡعِهٖ لَقَادِرٌ . يعنى دا خبر دَ دوباره ژوندى كولو خبر حق او يقينى دے . فَصۡلٌ په معنیٰ دَ حق او دَ عدل سره دے .

بِالۡهَزۡلِ هزل باطل او لعب او هر هغه څيز ته وئيلے كيږى چه دَ هغے حقيقت نه وى نو دا مقابل دَ فصل دے چه په معنیٰ دَحق او دَ كلام مفيد دے نو تقابل په مينځ دَ فصل او دَ هزل كښ په دواړه معنو سره صحيح دے او دا جمله تاكيد دَ پاره دَ اولے دے .

سـ۱۵ سـ۱۶ دا زجر دے سرهٔ دَ سزا نه . يعنى دَ قول فصل په مخالفت كښ دوى مختلف كيد و نه چلونه جوړوى په اعتراضونو او طعنونو كولو سره او شبهاتو اچولو سره او دَحق پرستو دَ مغلوب كولو او په قتل كولو سره وغيره .

وَاَكِيۡدُ كَيۡدًا كيد دَ الله تعالىٰ طرف ته په مختلف طريقو سره دے په طريقه دَ استدراج سره لكه په سورة اعراف سـ۱۸۲ كښ او په طريقه دَ ناكام كولو دَ چل وَل دَ دوى لكه په (ر پاتے په بل مخ)

سورة طور ۲۲ کښې او په امدادکولو دَ حق والو سره ۔
۱۷ دا دعوی دَ سورت ده یعنې دوی دَ پاره عذاب دے لیکن لګ روستو دے ۔
فَمَهِّلِ الْكَافِرِينَ یعنې دَ دوی سره په دعوت کښې نرمی کوه او دُعاءِ شر درته زر مکوه په امید دَ ایمان راوړلو دَ دوی ۔
أَمْهِلْهُمْ یعنې هرکله چه دوی او نه منی نو دَ دوی دَ عذاب انتظار اوکړه لګه موده ۔ هرکله چه دعوت او نرمی کول تدریج دے نو باب تفعیل ئې ذکر کړو او هرکله چه دَ انتظار سره تلوار هم وی نو دَ هغې سره باب افعال مناسب دے ۔
الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة طارق په فضل دَ الله تعالیٰ سره.

| سُورَةُ الْاَعْلٰى مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۱۹ رُكُوْعُهَا ۱ |
|---|---|---|

سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلَى ۝۱ الَّذِىْ

پاکی وایه دَ نوم دَ رب ستا چه پورته دے، داسے ذات دے

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة الاعلى او دَ دے بل نوم سورة سبّح دے

ربط دَ دے سورت دَ مخکښ سورت سره په څو وجو سره دے اوله وجه داده چه مخکښ سورت کښ ئے ذکر کړه چه انسان مهمل نه دے او قول دَ الله تعالیٰ هزل نه دے او عذاب دَ منکرینو په عجل سره نه دے نو په دے سورت کښ په دے باندے تفریع ده چه دَ داسے نقصانا تو نه الله تعالیٰ پاک دے. دویمه وجه داده چه په مخکښ سورت کښ امر وؤ په امهال سره نو په دے سورت کښ امر دے په تسبیح او تذکیر دَ قرآن سره په وخت دَ مهلت کښ. دریمه وجه داده چه په هغه سورت کښ تخویف ذکر شو نو په دے سورت کښ طریقه دَ نجات ذکر وؤ دَ عذاب نه. څلورمه وجه داده چه په هغه سورت کښ خلق دَ انسان او حفاظت دَ هغه ذکر شو نو په دے سورت کښ تسویه، تقدیر، هدایت ذکر کوی.

**دعوىٰ دَ سورت.** اثبات دَ توحید کښ او ترغیب الی القرآن کښ او زجر په محبت دَ دنیا کښ. او په دے کښ رد دَ شرک فی التصرف او رد دَ شرک فی العلم دے او اسماء حسنیٰ ئے درے او صفاتِ فعلیه ئے لس ذکر کړے دی.

**خلاصه دَ سورت.** اول امر دے په تسبیح (توحید) سره په اسماء او صفاتو دَ الله تعالیٰ سره چه نهه دی ترک پورے او دوه بشارتونه دی په دعوت دَ توحید سره په ۶ ۸ کښ. بیا دویمه دعوىٰ ده یعنی تذکیر بالقرآن او دوه ډلے دَ خلقو سره دَ بشارت نه (پاتے په بل مخ)

خَلَقَ فَسَوّٰی ﴿۲﴾ وَالَّذِیْ قَدَّرَ فَهَدٰی ﴿۳﴾

چه پیدائش ئې کړیدے نو برابر کړیدئ او هغه ذات دے چه اندازه ئې کړیده نو هدایت ئې کړیدے

په دریے صفتونو سره تر ۵ پورے بیا دریمه دعوی ده یعنی تزهید فی الدنیا په طریقه دَ زجر سره په ۱۶ ۱۷ کښ او اختتام دَ سورت په نقلی دلیل سره دے په ۱۸ ۱۹ کښ۔

**تفسیر:** ۱ سَبِّحِ معنیٰ دا چه پاکه گڼړه (عقیده) او پاکی وایه په ژبه باندے او پاکی بیا نوه په دعوت او تبلیغ سره دَ هر قسم شریک او ولد او عیب او احتیاج او عجز نه او دَ هر هغه څیز نه چه لائق نه دی دَ هغه سره په ذات کښ او په اسماؤ او صفاتو او کارونو دَ هغه او حکمونو دَ هغه کښ او دا توحید دے۔ اِسْمَ رَبِّكَ اسم دلته عین مسمی ده یعنی پاکی دَ رب وایه لیکن پاکی چه وئیلے کیږی نو ضرور تلفظ غواړی په لفظ دَ نوم دَ رب سره دَ دے وجے اسم ئې ذکر کړے دے او مراد دَ دے نه جنس دے یعنی هر اسم دَ رب تعالیٰ دَ اسماؤ نه۔

(فائده) تسبیح کله متعدی بالذات ذکر وی لکه چه دلته دے او کله متعدی وی په باء سره بنا په اول باندے خالص تسبیح وئیل مراد دی په ژبه سرهٔ دَ زړه نه او بنا په دویم باندے اقتران دَ تسبیح لسانی دَ تسبیح عملی (صلوٰة) سره مراد دے نو دَ مصاحبت دَ پاره باء ذکر کیږی او دا رنګ الاعلیٰ علو (اوچت والے) غواړی نو دَ دے سره باء جاره مناسب نه ده او عظیم خو عظمت شان باندے دلالت کوی دَ هغے سره باء راوړل مناسب دی۔ الْاَعْلَی دا وصف دلیل دے په تسبیح باندے یعنی زیاته علو دَ هغه تقاضا کوی دَ پاکوالی دَ هر قسم نقصان نه، او حدیث دَ ابوداؤد او احمد کښ راځی چه نبی صلی الله علیه وسلم به سبح اسم ربك الاعلی اولوستلو نو ورپسے به ئې اُوئیل "سبحان ربی الاعلیٰ" او نورو موقوف احادیثو کښ هم نقل دی۔

۲ ۳ دا دلیلونه په تسبیح (دعوٰی باندے) دی دیته دلیل دَ ایجاد وئیلے شی او په دے کښ ئې څلور امور ذکر کړے دی اول خَلَقَ، او ظاهر دا ده چه ټول مخلوق مراد دے دَ وجے دَ حذف دَ مفعول نه۔

وَالَّذِیٓ اَخۡرَجَ الۡمَرۡعٰی ﴿۴﴾ فَجَعَلَهٗ

او هغه ذات دے چه راویستلے دی بوټی د سرېدلو . نو بیا ئې ګرځولے دی هغه

غُثَآءً اَحۡوٰی ﴿۵﴾ سَنُقۡرِئُكَ فَلَا تَنۡسٰٓی ﴿۶﴾

بوس تور - یقیناً موږ به لولو تا ته قرآن نو مه هېروه ته .

دویم فَسَوّٰی، تسویه دَ خلق احسان دَ هغې دے کوم چه ذکر دے په سورت سجده کښې او مراد دَ احسان نه دَ هر یو څیز بدن او اندامونه او اجزاء دَ هغې مناسب جوړول دی او کله چه عدم تناسب ښکاری هغه خلاف عادت وی دَ نورو حکمتونو دَ پاره. دریم وَالَّذِیۡ قَدَّرَ په هر څیز کښې دَ هغې مقدار او کیفیتونه او صفتونه په اندازه سره مقرر کول یا په تقدیر عند الملائکه کښې لیکل اګر چه اصل تقدیر خو دَ خلق نه وړاندې دے. څلورم فَهَدٰی دا هدایت عامه دے یعنی هر یو څیز ته دَ هغوی دَ ژوند تېرولو دَ خوراک څښاک وغیره طریقې ښودل دی. په دے کارونو کښې دَ الله تعالیٰ هیڅوک شریک نیشته نو تسبیح دَ الله تعالیٰ واجب شوه.

سل ۳ دا دلیلونه آفاقی دَ تربیت دی روستو دَ ایجاد نه. اَلۡمَرۡعٰی هر قسم بوټی وابنه چه دَ انسانانو او دَ څاروو دَ خوراک دَ پاره دی.

فَجَعَلَهٗ غُثَآءً په دے کښې تزهید فی الدنیا ته اشاره ده چه دا هر څه به فنا کیږی نو په دے باندے غرور جائز نه دے. غثاء هغه وابنه بوټی خاشاک چه سیلاب ئې په غاړه دَ کنده باندے اوغورځوی او اوچو ذرے بے فائدے بوټو ته هم وئیلے شی اګر چه دَ سیلاب په غاړه نه وی. اَحۡوٰی دَ حوّة نه اغستے شویدے هغه سُور والے دَ شونډو چه تور والی ته مائل شوے وی یعنی دغه غثاء دَ زوړوالی دَ وجې نه تور شی ځکه لوانده وابنه چه دَ اوبو په غاړه پاندے اوچ شی نو تور شی او سخا شی.

سل ۳ په دے کښې اول بشارت دے تفریع ده په سبّح باندے او په دے کښې دوه زیرے دی یو قرآن پوره خودل او دویم دَ هغې دَ حفظ قوت ورکول. سَنُقۡرِئُكَ دا سورت دَ مکې د پاتې په بل مخ)

إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ ۚ إِنَّهُ يَعْلَمُ الْجَهْرَ

مګر هغه چه اوغواړی الله تعالیٰ . یقینا هغه عالم دے په ښکاره

وَمَا يَخْفَىٰ ﴿٧﴾ وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرَىٰ ﴿٨﴾

او هغے چه پټه دی . او اسانوؤ تا ته لار د اسانئ .

د ابتدائی سورتونه دے په دے کښ دا وعده شوې وه او هغه وعده الله تعالیٰ پوره کړه په اختتام د قرآن سره. فَلَا تَنْسٰی دا نفی ده، اخبار صادق دے چه نبی صلی الله علیه وسلم نه به قرآن نه هیر یږی همیشه ئے په سینه کښ محفوظ وؤ یا نسیان په معنیٰ د ترک دے او اخبار دے یعنی نبی صلی الله علیه وسلم قرآن نه پریږدی او دویم قول دا دے چه دا نفی په معنیٰ د نهی سره ده او نسیان په معنیٰ د ترک او د غفلت دے یعنی د دے د لوستلو او د عمل کولو نه غفلت مه کوه یا نسیان نه مراد نهی د اسبابو د هغے نه ده. إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ بنا په معنیٰ د اخبار (نفی) بانددے اشاره ده یو قسم د نسخ ته چه هغے ته انساء وئیلے شی لکه سورة بقره ۱۰۶ کښ یا استثناء د پاره د تبرک ده او بنا په معنیٰ دویم (نهی) باندے استثناء منقطع ده یعنی ته خو مه هیره وه لیکن که چرے الله تعالیٰ اوغواړی چه ستا نه څه هیر کړی په طریقه د منسوخ کولو (او دا په مشیت د الله تعالیٰ سره ده) نو دا معصیت نه دے . إِنَّهُ يَعْلَمُ دا علت د ماشاء الله دے یعنی مشیت د الله تعالیٰ د هغه د علم بکل شئ د وجے نه دے یا متعلق دے د فَلَا تَنْسٰی سره په طریقه د ترغیب ورکولو تلاوت د قرآن کریم ته په پټه (چه ځان له ئے تلاوت کوی) او په ښکاره چه خلقوته ئے بیان کوی یعنی قرآن مه پریږده که پټ ولئے او که ښکاره والئے الله تعالیٰ به ثواب درکوی . یا دا متعلق ده په سبح پورے نو په دے جمله کښ رد د شرک فی العلم دے او دلیل علی دے د پاره د سبح (دعویٰ د سورت).

ش دا عطف دے په سنقرئك باندے او دویم بشارت دے، متفرع دے په سبح باندے . وَنُيَسِّرُكَ تیسیر په معنیٰ د توفیق ورکولو او

فَذَكِّرْ إِنْ نَّفَعَتِ الذِّكْرٰى ۝٩ سَيَذَّكَّرُ

تۀ بیان کره قرآن یقینًا نفع ورکوی بیان کول. خامخا نصیحت به قبول کړی

مَنْ يَّخْشٰى ۝١٠ وَيَتَجَنَّبُهَا الْاَشْقَى ۝١١

هغه څوک چه یره کوی، او په دَ ډه په اوسیږی دَ دینه بلا بخت،

اسباب دَ خیر او دَ دعوت الی القرآن پیدا کولو دے. لِلْيُسْرٰى موصوف محذوف دے الطريقة والشريعة اليسرٰى او الحالة اليسرٰى. مراد دَ دے نه اعمال دَ خیر دی چه دَ جنت دَ پاره ذریعه ده او په هغې کښې دعوت دَ توحید او دعوت الی القرآن داخل دے اشاره ده چه په محدث (رحمه الله) په اخلاص سره وی) کار اسانیږی.

ف دا دویمه دعوی دَ سورت ده تفریع ده په اوله دعوی باندے یعنی دعوت کول دَ قرآن په طریقه دَ تذکیر او وعظ او تدریس سره لکه سورة ق ۴۵ او سورة ذاریات ۵۵ او سورة طور ۲۹ کښې تیر شویدی.

إِنْ نَّفَعَتِ الذِّكْرٰى إِنْ شرطیه بخپله معنیٰ سره ده او مراد دا دے چه تذکیر او تعلیم دَ قرآن کریم نا اهلو خلقو ته پکار نه دے یعنی هغه څوک چه ضد او عناد کوی یا دَ دنیا دَ مقصد دَ پاره علم دَ دین ایزده کوی. او دا تقیید په إِنْ سره دَ پاره دَ ایجاب دے یعنی تذکیر واجب دے په شرط دَ نفع سره چه انابت الی الله دے یعنی ضدی او عنادی او دنیا پرست ته تذکیر ورکول واجب نه دی. او دویم قول دا دے چه إِنْ په معنیٰ دَ مَا سره دے دریم قول ان په معنیٰ دَ اِذْ سره دے. څلورم دا دے چه إِنْ په معنیٰ دَ قَدْ سره دے. پنځم دا دے إِنْ شرطیه دے خو بل جانب محذوف دے مقایسة ان نفعت اولم تنفع.

ف ۱۱ روستو دَ تذکیر نه ذکر دَ دوه ډلو دے اول ډله هغه ده چه هغوی ته ذکرٰی نفع ورکوی په دے قول کښې سَيَذَّكَّرُ مَنْ يَّخْشٰى یعنی وعظ او ذکر قبلول موقوف دی په خشیت باندے خشیت دَ الله تعالیٰ نه یا خشیت دَ ورځ دَ حساب نه او حرف دَ سین په سَيَذَّكَّرُ کښې اشاره ده چه خشیت سره تذکیر ر پاتے په بل مخ)

الَّذِیْ یَصْلَی النَّارَ الْکُبْرٰی ﴿۱۲﴾ ثُمَّ

هغه چه داخلیږی په اور لوئې ته . بیا

لَا یَمُوْتُ فِیْهَا وَلَا یَحْیٰی ﴿۱۳﴾ قَدْ اَفْلَحَ

نه به مړکیږی په هغې کښ او نه به ژوندے وی . یقیناً کامیاب دے

پیوست (زړ) لازم نه دے بلکه کله کله تفکر او تدبر نه روستو دے تذکر اوکړی اوخشیت دَ الله تعالیٰ موقوف دے په علم باندے په دلیل دَ قول دَ الله تعالیٰ انما یَخْشَی الله من عبادہ العلماء سره او دَ هغې تفسیر په سورة فاطر کښ تیر شویدے.

او دویمه ډله چه هغوی ته ذکری نفع نه ورکوی دا ده وَیَتَجَنَّبُهَا الْاَشْقَی او په دے کښ اشاره ده چه نفع نه ورکول دَ قران نقصان نه دے بلکه دَ هغې سبب تجنب (ډډه کول دَ قران نه) دَ دوی دے . الاَشْقَی په علم او تقدیر دَ الله تعالیٰ کښ اشقی دے او علامت ئے دَ قران نه ډډه کول دی اَشْقَی کافر عنادی دے او شَقِی فاسق دے یا دا اسم تفضیل په معنیٰ دَ شقی سره دے.

۱۲ ۱۳ په دے کښ تخویف اخروی دے دویمے ډلے دَ پاره. الْکُبْرٰی په مقابل دَ صغری کښ دے حسن بصری نه روایت دے چه صغرٰی اور دَ دنیا دے اوکبرٰی اور دَ جهنم دے او فراء وئیلے دی چه نارِ صغرٰی دَ پاره دَ مؤمنا نو گنهگارا نو دے چه دَ هغې نه به بیا راوځی همیشه نه دے اوکبرٰی دَ پاره دَ کافرانو دے چه همیشه دے په قرینه دَ الاشقیٰ سره.

لَا یَمُوْتُ فِیْهَا وَلَا یَحْیٰی (سوال) دا خو انتفاء دَ نقیضونو ده دَ عقل نه خلاف ده؟ (جواب) نفی په اول کښ مطلق ده او په دویم کښ نفی دَ قید ده یعنی مرگ خو بالکل نیشته په قرینه دَ سورة فاطر ۳۶ سره او سورة ابراهیم ۱۷ کښ هم دی . او ژوند شته لیکن نفع ورکوونکے نیشته او شتم دَ پاره تراخی دَ درجو دَ سختئ ده.

مَنْ تَزَكّٰى ﴿۱۴﴾ وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ فَصَلّٰى ﴿۱۵﴾

هغه څوک چه ځان يې پاک کړو، او ياد يې کړو نوم د رب خپل نو مونځ يې اوکړو.

بَلْ تُؤْثِرُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿۱۶﴾

بلکه غوره کوئ تاسو ژوند دنيوی.

۱۴-۱۵ دا بشارت دے اولے ډلے ته په فلاح سره په ذکر د درې صفاتو سره. تَزَكّٰى تزکيه د عقيدے په توحيد سره او په اجتناب سره د هر قسم شرک نه او تزکيه د اعمالو په اتباع د سنت سره او د ريا او سمعت نه او تزکيه د بدن په اودس کولو سره او تزکيه د مال په اداء د زکوٰة او د صدقه فطر او صدقه نفليه سره دا لفظ ډے ټولو معانيو ته شامل دے. وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ يعنی ذکر په ژبه سره د نوم د الله تعالٰی کوی په تسبيح او توحيد سره د پاره د عمل کولو په سبّح باندے او په تکبير سره په اول د مونځ شوروکولو کښ چه هغے ته تکبير افتتاح وئيلے شی او په تکبيرات د عيدين سره په لارکښ او مصلٰی کښ دا هم ټولو ته شامل دے. فَصَلّٰى صلوٰة په معنٰی د مونځ دے او پنځه مونځونه او صلوٰة عيدين او ټولو نوافل مونځونو ته عام دے يا په معنٰی د دعا سره دے.
هرکله چه اعتبار عموم د الفاظو د نصوصو لره دے خصوص د مورد لره اعتبار نيشته په دے وجه سره د دے ايت نه استدلال د پاره د تکبير افتتاح او تکبيرات عيدين صحيح دے حاصل دا شو چه مونځ د پاره مخکښ دوه شرطونه دی يو تزکيه د عقيدے د شرک او رياء نه او دويم تکبير افتتاح. فقهاء چه هرکله د عقيدے نه بحث کوی نو د دے وجے هغوی د تزکيے شرط په شروط الصلوٰة کښ نه دے ذکر کړے ماسيوا د اخلاص نيت نه مخکښ د تکبير نه.
۱۶-۱۷ دا دريمه دعوٰی د سورت ده زجر دے په حب د دُنيا سره. بَلْ پدے کښ ترقی ده يَتَجَنَّبُهَا نه يا اضراب دے د تزکی نه يعنی تاسو تزکيه نه کوئ بلکه ژوند دنيوی غوره کوئ هغه مخکښ کوئ په اخرت باندے د هغے د پاره محنت کوئ او اخرت له محنت نه کوئ. (رياتے په بل مخ)

وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى ⑰ اِنَّ هٰذَا لَفِى الصُّحُفِ

او آخرت غوره ده او هميشه دے. يقيناً دا په كتابونو

الْاُوْلٰى ⑱ صُحُفِ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى ⑲

مخكنو كښ شته دے، چه كتابونه دَ ابراهيم او موسىٰ عليهما السّلام دى.

مالونه دَ دنيا جمع كوئے او اخرت دَپاره ايمان او عمل صالح نه جمع كوئے.
وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ وَّاَبْقٰى مضاف حذف دے يعنى ثواب الاٰخرة مراد ترينه جنت دے. وجه دَ غوره والى دا ده چه اخرت مشتمل دے په سعادت بدنيه او روحانيه باندے او دُنيا داسے نه ده او دا رنګ مزے دَ دُنيا ګډے دى دَ مصيبتونو سره او دَ اخرت مزے خالصے دے. او دَ اخرت نعمتونه هميشه دى او دَ دُنيا متاع فانى ده.
۱۸ ۔ ۱۹ دا دليل نقلى دے دَ مخكښ كتابونو نه. هٰذَا اشاره ده مضمون دَ ټول سورت ته په قول دَ ابوالعاليه سره او اشاره ده مضمون دَ قد افلح ته په قول دَ ابن جرير، او اشاره ده مضمون دَ قران ته په قول دَ ضحاک كښ يعنى دا مضمون په مخكنو كتابونو كښ دے. صحف مخكنى واړه او لوئے كتابونه ډير دى. په صحيح سند سره ئے تعداد نه دے ثابت شوے . صُحُفِ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى داسے په سورة نجم ۳۷ كښ هم ذكر دى او دَ دے تخصيص دَ دے وجے نه دے چه اهل مكه خو دَ ابراهيم عليه السلام دَملت دعوىٰ كوله او دَ موسىٰ عليه السلام امت په دغه وخت كښ نزدے موجود وُو او نصارىٰ او صابئين دَ دوى نه لرے وُو يا دَ دے وجے نه خاص كړے شو چه تسبيح او تذكير دَ دے دواړو انبياؤ په صحيفو كښ ډير ذكر دے او صحف موسىٰ نه مراد تورات دے چه مشتمل دے په ډيرو صحيفو باندے يا مراد دَ دے نه نور صحيفے دى چه دَ تورات نه وړاندے په موسىٰ عليه السلام باندے نازل كړے شوى وے.

الحمد لله ختم شو تفسير دَ سورة الاعلىٰ په فضل دَ الله تعالىٰ سره

سُوْرَةُ الْغَاشِيَةِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۲۶ رُكُوْعُهَا ۱

هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْغَاشِيَةِ ۝۱ وُجُوْهٌ

یقیناً راغلے دے تاته خبر دَ آفت پټوونکی . بعض مخونه په

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الغاشية

ربط دَ دے سورت دَ ماقبل سره په دیرو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه په سورة اعلیٰ کښ من یخشٰی او اشقٰی ذکر کړل نو په دے سورت کښ هغوی له بشارت او تخویف ذکر کوی. دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ توحید ئے ذکر کړو په تسبیح سره نو په دے سورت کښ دَ هغے دَ اثبات دَ پاره څلور شواهد ذکر کوی. دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ ذکر کړے وؤ امر په تذکیر سره په شرط دَ نفع ورکولو نو په دے سورت کښ امر دے په تذکیر سره دَ علت دَ هغے نه چه انما انت مذکر دے یعنی دا ستا ذمه واری ده. څلورمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ النار الکبری ذکر وؤ او په دے سورت کښ ئے العذاب الاکبر ذکر کړیدے.

**دعوی دَ سورت.** تخویف دے منکرینو ته او بشارت مؤمنانو له او تذکیر په قرآن سره دَ پاره دَ یاد داشت دَ غاشیه (قیامت) او اسماؤ نه صرف الله ذکر دے او دوه صفتونه تعذیب او حساب کول ذکر دی.

**خلاصه دَ سورت.** اول تخویف اخروی دے منکرینو ته په لس طریقو سره تر ۷ پورے بیا بشارت دے مؤمنینو ته په لس طریقو سره تر ۱۶ پورے بیا څلور دلیلونه دی په توحید باندے او په هغے کښ اشاره ده څلور صفتونو دَ مذکر (داعی) ته (اتقیاد ، نفع ، استقلال ، تواضع) بیا امر دے په تذکیر بالقرآن دَ پاره دَ یاد داشت دَ قیامت او دَ توحید. او بیا تسلی ده په ۲۲ کښ (پاتے په بل مخ)

يَوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ ﴿٢﴾ عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ ﴿٣﴾

په دغه ورځ ذلیل وي ، محنت کوونکي ستړي به وي ،

او اختتام دَ سورت دے په تخویف سره پشان دَ ابتداء دَ سورت.
**تفسیر** سا په دے کښې تذکیر دے په باره دَ قیامت کښې. هَلْ په معنیٰ دَ قد سره دے لیکن راوړے دے په صورت دَ استفهام کښې دَ پاره دَ تشویق (شوق ورکول). الْغَاشِيَةِ هغه آفت چه پټوی خلقو لره په هیبتونو او کبراهټونو سره او یو نوم دے دَ نومونو دَ قیامت نه. یا نوم دَ اور دَ جهنم دے چه پټوی به ټول بدنونو دَ جهنمیانو لره.
سـ۲ سـ۳ دا تقسیم دَ خلقو دے دوه قسمونو ته نو په دے آیاتونو کښې ذکر دَ یو قسم دے چه هغې ته اشقیٰ وئیلے شو یدے او دوی ته تخویف دے په لس طریقو سره. وُجُوهٌ ذکر دَ وجوه او مراد ترینه اصحاب الوجوه دی او تخصیص دَ وجهې ئې دَ دے وجے نه او کړو چه دَ تکلیف او خوشحالئ اول نښه په مخ باندے ښکاریږی. خَاشِعَةٌ ، خشوع په معنیٰ دَ ذلت ده یعنی په آخرت کښې به ذلیل وی په سبب دَ شرمندګئ او رسوائی او ویرے دَ عذاب نه او بل احتمال دا دے چه خشوع کوونکی دی په عبادتونو کښې په دُنیا کښې (لیکن دوی مشرکان دی). عَامِلَةٌ عمل کوونکی په دنیا کښې لیکن عملونه ئې په عقیده دَ شرک سره یا په طریقه دَ بدعت سره دی یا په طریقه دَ فسق وفجور سره دی. نَّاصِبَةٌ دا هم په دنیا کښې دی یعنی ځان ستړے کوی په مونځونو روژو نورو عبادتونو وغیره سره. یا په آخرت کښې دے یعنی ستړے او تکلیف تیروونکے به وی په اُور دَ جهنم کښې. امام بخاري وئیلے دی چه دا په باره دَ نصاری (رهبانانو) کښې دے. او حسن بصري دَ علی رضی الله عنه نه روایت نقل کړیدے چه عمر رضی الله عنه په شام کښې یو راهب او لیدو چه بوډا زوړ او خیرن وو (دَ ډیر عبادت دَ وجے نه خپلے صفائی کولو نه هم فارغ نه وو) نو عمر رضی الله عنه او ژړل، چا ورته اُوئیل ! یا امیر المؤمنین څه خبره او ژړولے نو هغه او فرمائیل دا مسکین دے یو مقصد ئې طلب کړے دے خو مونده ئے نه دے او اُمید ئې لرلے دے

تَصۡلٰی نَارًا حَامِیَةً ۝۴ تُسۡقٰی مِنۡ عَیۡنٍ

داخلیږي به اور سخت ګرم ته ، څښکولے کیږي به دَ چینے

اٰنِیَةٍ ۝۵ لَیۡسَ لَهُمۡ طَعَامٌ اِلَّا مِنۡ ضَرِیۡعٍ ۝۶

خوټکیدونکے ته - نه به وي دَ دوي خوراک مګر دَ ازغي دار بوټي نه۔

لَّا یُسۡمِنُ وَلَا یُغۡنِیۡ مِنۡ جُوۡعٍ ۝۷ وُجُوۡهٌ

نه به سربول کوي او نه به فائده درکوي دَ لوږے نه - بعض مخونه به

لیکن خطا شویدے اودا آیت ئې اولوستلو (قرطبي)۔ او دَ علي رضي الله عنه نه شربیني روایت نقل کړے دے چه خوارج هم پدیکښ داخل دي هغوي اوګڼده مونځونه کوي ډیرے روژے نیسي لیکن دَدین نه به اوځي لکه چه په حدیث الخوارج کښ راغلي دي. نو معلومه شوه چه دا آیت دَعموم دَ الفاظو دَ وجے نه هر بدعتي ته شامل دے۔

سـ۴ـ سـ۵ـ تَصۡلٰی په اور کښ د ننه سوځیدل او ورتیدلو ته صلي وئیلے شي. حَامِیَةً سخت او ډیر ګرم (سوال) اور خو هسے هم ګرم وي نو صفت دَ حامیة کښ څه فائده ده ؟ (جواب) مراد دادے چه همیشه به ګرم وي نه به مړکیږي پشان دَ اور دَ دنیا۔ او دا رنګ ګرم به وي په ګرمئ دَ غیظ وغضب دَ الله تعالیٰ سره۔ عَیۡنٍ اٰنِیَةٍ دَ اَنی نه ماخوذ دے او وخت ته رسیدلو ته وئیلے شي او مراد دا دے چه په ګرمولو کښ آخري وخت ته رسیدلے دي یعني دا چینے سختې ګرمے دي لکه سورة رحمٰن سـ۴۴ـ کښ دي او حالت دَ ګرم والي په سورة کهف سـ۲۹ـ او سورة محمد سـ۱۵ـ کښ ذکر دے۔

سـ۶ـ سـ۷ـ روستو دَ ذکر دَ مشروب نه ذکر دَ طعام دے او هر یو مستقل عذاب دے۔ ضَرِیۡعٍ ازغي دار بوټي دے په زمکه پورے پیوست وي چه لوند وي نو شبرق ورته وئیلے شي او چه اوچ شي نو ضریع دے او هغې ته هیڅ ځاروے نزدے نه ورځي دَ ډیر تریخ والي او دَ بد بوئي دَ وجے نه او زهر قاتل دے او ضریع ئې دَ دے وجے نه ذکر کړو چه کله دا بوټي شین وي چه شبرق ورته وئیلے شي (پاتے په بل مخ)

يَوْمَىِٕذٍ نَّاعِمَةٌ ﴿٨﴾ لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ ﴿٩﴾

| په دغه ورځ | ترو تازه دی ، | په وجه دَ عمل خپل به خوشحاله (رضا) وی . |
|---|---|---|

فِيْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴿١٠﴾ لَّا تَسْمَعُ فِيْهَا لَاغِيَةً ﴿١١﴾

| په جنت | اوچت کښې به وی ، | نه به اوری | په هغې کښې بې فائدې خبرې . |
|---|---|---|---|

نواوښان ئې په عربو کښې خوری لیکن دَ ضریع نه ځان ساتی .
سوال :- سورة الحاقه ۳۶ کښې حصر دَ طعام په غسلین کښې شوے دے او دلته په ضریع کښې او دواړه جدا جدا څیزونه دی ؟
جواب :- دا حصرونه په اعتبار دَ مختلف اقسامو دَ جهنمیانو دی یا په اعتبار دَ مختلف اوقاتو سره دی - لَّا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِيْ مِنْ جُوْعٍ ، دَ طعام دوه فائدے دی لویه فائده ئې دا ده چه بدن له ترقی ورکړی او ادنیٰ فائده دا ده چه لوګه بنده کړی او طعام دَ جهنم کښې دا دواړه فائدے نیشته او تکلیفونه او ضررونه پکښې شته نو خالص عذاب دے .
۸ تا ۹ دا ذکر دَ دویم قسم خلقو دے په طریقه دَ بشارت په لس وجوهو سره نَّاعِمَةٌ تازه او خائسته به وی په سبب دَ نعمتونو سره لکه سورة تطفیف ۲۴ کښې ذکر شو یا داچه په نعمتونو او کرامتونو کښې به وی .
وُجُوْهٌ دَ دے سره ئې حرف عطف نه دے راوړے اشاره ده چه دَ دے قسم دَ مخکنی سره هیڅ مناسبت او شرکت نیشته . لِّسَعْيِهَا لام اجلیه دے او مراد دَ دے سعی نه . ایمان او اتباع دَ سنت ده .
رَاضِيَةٌ خوشحاله به وی په آخرت کښې دا په مقابل دَ عاملة ناصبة کښې دے . یا لسعیها کښې مضاف محذوف دے یعنی لِثواب سعيها .
۱۰ تا ۱۱ عَالِيَةٍ اوچت دے په آسمانونو باندے یا قدر او منزلت ئې اوچت دے په آسمانونو باندے .
لَا تَسْمَعُ دا صیغه دَ مؤنث ده ضمیر ئې راجع دے وجوه ته یا صیغه دَ مخاطب (چه هر جنتی دے) ده . لَاغِيَةً صفت دَ موصوف پټ دے کلمة او لاغية مصدر دے یعنی ذات لغو دے یا اسم فاعل دَ په معنیٰ دَ ذوګذا باندے او دا لفظ عام دے هر لغو کلام دروغ او

فِيهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ ﴿۱۲﴾ فِيهَا سُرُرٌ مَّرْفُوعَةٌ ﴿۱۳﴾

په هغې کښې به چينه وي روانه (جارى)، په هغې کښې به تختونه وي اوچت کړے شوي،

وَأَكْوَابٌ مَّوْضُوعَةٌ ﴿۱۴﴾ وَنَمَارِقُ مَصْفُوفَةٌ ﴿۱۵﴾

او ګلاسونه کیښودلے شوي - او تکیه ګانے به وي صفونه صفونه،

وَزَرَابِيُّ مَبْثُوثَةٌ ﴿۱۶﴾ أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ

او قالینونه به وي خواره کړے شوي - ایا دوی نه ګوري او بښانو ته

غیبت او بهتان کلمات دَ کفر او شرک کنځل کول او هره خبره دَ معصیت ته او لغو به دَ دے وجے نه اوري چه جنتیان به ټول دَ حکمت او دَ الله تعالیٰ دَ حمد وثنا او رشتیا خبرے کوی او داسے په سورة مریم ۶۲ او سورة طٰه ۲۳ کښ او سورة واقعه ۲۵ کښ هم ذکر دی -

۱۲ عَيْنٌ جنس دے مراد تری ډیرے چینی دی کافور، سلسبیل تسنیم. جَارِيَةٌ په مخ دَ زمکه باندے به په غیر دَ کنده وته روانے وی دَ هر جنتی کورته به دَ هغه دَ اراده مواقف چلیږی -

۱۳ مَرْفُوعَةٌ قدراً او شاناً په ځے اوچت وی یا اوچت به وی په هوا کښ او کله چه جنتی په هغے باندے کیناستل اوغواړی نو دا تختونه به ورته راکوز شی نو بیا به پورته کړے شی -

۱۴ مَوْضُوعَةٌ یو معنیٰ دا چه تیار به کیښودلے شوے وی دَ نهرونو او چینو په غاړه باندے دویمه معنیٰ دا چه دَ دوی مخے ته به کیښودلے شوی وی دَ دوی دَ خوشحالۍ دَ پاره دریمه معنیٰ دا چه درمیانه به وی نه به ډیر غټ وی او نه ډیر واړه -

۱۵ نَمَارِقُ جمع دَ نمرقة ده تکیه ګانے یا واړه بالختونه چه دَ یو بل سره به په قطار کښ کیښودلے شوے وی -

۱۶ زَرَابِيُّ جمع دَ زربیة ده هغه فراشونه او قالینونه چه لمنو ته ئے نری زوڼړی لګولے شوے وی. مَبْثُوثَةٌ هر طرف ته به خورے ورے وی دَ راغونډولو او بیا خورولو تکلیف به نه ریاتے په بل مخ)

كَيْفَ خُلِقَتْ ﴿١٧﴾ وَإِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ ﴿١٨﴾

چه څنګه پیدا کړے شویدی. او اسمان چه څنګه اوچت کړے شویدے.

غواړی. په دے څلورو نعمتونو کښې اشاره ده لکه چه دَ مالدارانو په مجلسونو کښې یو طرف ته پالنګونه وی بل طرف ته ګلاسونه اوچګونه وی نوبل طرف ته تکیه ګانے وی او قالینونه وی، نو دَ جنت مجلسونه به دَ دے نه ډیر اوچت او بهتر وی.

سلا په دے کښې او په روستو آیت کښې دلیلونه دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دی په جزا او سزا ورکولو باندے یعنی چه هرکله په دے څلورو اجناسو عجیبو دَ مخلوق باندے قادر دے نو په جزا سزا ورکولو باندے هم قدرت لری. او دا رنګ په دے کښې جواب دَ وهم دے چه دَ فیها سرر مرفوعة سره تعلق لری، وهم دا دے چه هغه پالنګونه دَ جنت اوچت دی نو جنتیان به ورته څه رنګے ورخیژی؟ نو جواب ئے اوکړو چه اوښانو ته اوګورئے چه څومره اوچت دے لیکن په وخت دَ سوریدلو کښې ښکته شی.

او دا رنګ دَ روستو فذکر سره تعلق لری یعنی هرکله چه ته مذکر او داعی ئے نو په تا کښې څلور اخلاق پکار دی انقیاد دَ لویو او وړوسره په نرمئ سره په شان دَ اوښ. كَيْفَ خُلِقَتْ کیف دَ تعجیب دَ خلقت دَ اوښ دَ پاره دے یعنی په حیواناتو کښې دا عجیبه پیدائش او عجیبه صفتونو والا حیوان دے ځکه چه حیوانات څلور قسمونه دی. پیو والا، سورلئ والا، خوراک والا (چه غوښه ئے خوړلے کیږی) او بار اوړونکی او په اوښ کښې دا څلور واړه صفتونه شته دے. او هاتی اګرچه ډیر عجیبه دے لیکن دا فائدے پکښې نیشته او په عربو کښې نـز دے موجود هم نه وو.

سلا دا هم دلیل دَ قدرت دَ الله تعالیٰ او دلیل دَ توحید دے او تعلق لری دَ "اکواب موضوعة" سره یعنی په اسمان کښې نمر سپوږمئ او ستوری په خائسته ترتیب سره کیخودلے شویدی نو دا مثال دَ ګلاسونو دے چه ترتیب سره ئے کیخودلے دی په جنت کښې. كَيْفَ رُفِعَتْ رفع دَ دے بغیر دَ ستنو نه دا سے چه هیڅ انسان ورته بغیر دَ نبی صلی الله علیه وسلم

وَإِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ ﴿١٩﴾ وقفة وَإِلَى الْأَرْضِ

او غرونو ته چه څنګه اودرولے شویدی . او زمکے ته

كَيْفَ سُطِحَتْ ﴿٢٠﴾ وقفة فَذَكِّرْ قف إِنَّمَا

چه څنګه غوړولے شویده . نو بیان کړه (قرآن) . یقیناً

أَنْتَ مُذَكِّرٌ ﴿٢١﴾ لَسْتَ عَلَيْهِمْ بِمُصَيْطِرٍ ﴿٢٢﴾

ته بیان کوونکے یې . ته یې ته په دوی باندے (څوکیدار) مقرر کړے شوے .

او عیسٰی علیه السّلام ته رسیدلے نشی دوی دواړه ورته ځوندیٰ الله تعالیٰ رسولے دی او دا په سورة ق سے کښ ذکر دی .

۱۹ دا دریم دلیل دَ قدرت او دَ توحید دَ الله تعالیٰ دے او مثال دے دَ پاره دَ نمارق مصفوفة . كَيْفَ نُصِبَتْ په مختلف شکلونو او رنګونو او قطارونو سره په مختلفو منافعو باندے مشتمل اودرولے شویدی .

۲۰ دا څلورم دلیل دَ توحید او دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دے او متعلق دے دَ زرابیٌ مبثوثة سره په طریقه دَ مثال سره . او په دے څلورو کښ جدا جدا صفات دی چه ضروری دی دَ پاره دَ داعی . په اوښانو کښ انقیاد او تابعداری ده سره دَ غښتلتوب والی نه او په اسمانونو کښ منافع دی سره دَ اوچت والی نه او په غرونو کښ استقلال او استقرار دے سره دَ ترتیب نه او په زمکه کښ تواضع ده ، نو دا رنګ په دعوت کوونکی کښ دا څلور صفات دَ الله تعالیٰ دَ پاره ضروری دی چه دَ هغے په وجه سره دَ جنت نعمتونه حاصلولے شی په آخرت کښ او دعوت او تذکیر کولے شی په دنیا کښ . او دا رنګ دا څلور ډیر نږدے دلیلونه دی عربو او دیهاتیانو ته چه هغوی دا څلور هر وخت لیدلے شی لیکن ترغیب ورکړے شو په کولو دَ نظر دَ عبرت سره .

۲۱ ، ۲۲ دا ترغیب او تشجیع ده په دعوت کولو باندے او فائدے ذکر کړه یعنی روستو دَ ذکر کولو دَ نعمتونو او دلیلونو دَ توحید نه دَ دے تذکیر پکار دے غفلت کوونکو ته او دا رنګ روستو دَ ذکر دَ صفاتو او اخلاقو دَ داعی نه (اشارةٌ) امر کول دی رباتے په بل مخ)

إِلَّا مَنْ تَوَلَّىٰ وَكَفَرَ ﴿٢٣﴾ فَيُعَذِّبُهُ اللَّهُ

مګر هغه څوک چه مخ یې واړوو او کفر یې اوکړو ، نو عذاب به ورکړی هغه له الله تعالی

الْعَذَابَ الْأَكْبَرَ ﴿٢٤﴾ إِنَّ إِلَيْنَا إِيَابَهُمْ ﴿٢٥﴾

عذاب لوئے . یقینًا زمونږ طرف ته راګرځیدل د دوی دی ،

ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُمْ ﴿٢٦﴾

بیا یقینًا په مونږ باندے حساب کول د دوی دی .

په دعوت سره- إِنَّمَا أَنْتَ مُذَكِّرٌ دا علت د ذکر دے او مراد د دے دا دے چه ستا په ذمه باندے صرف تذکیر کول دی اوکه دا خلق نظر نه کوی په دلیلونو کښی او ایمان نه راوړی نو په تا باندے هیڅ وبال نیشته- بِمُسَيْطِرٍ هغه چا ته وئیلے شی چه مقرر وی په څه څیز باندے د امیر د طرف نه د هغه څیز د ساتنے کولو او انتظام کولو او د هغے د احوال د لیکلو د پاره او هیڅ تجاوز پکښی نه کوی لکه خط چه د سطر نه تجاوز نه کوی او کله چه پخپله ذمه وارئے کښی نقصان اوکړی نو په دهٔ باندے تاوان وی. یعنی نبی صلی الله علیه وسلم د دے مخلوق په ایمان راوړلو او تذکیر قبلولو باندے ذمه وار نه دے او نه زور اور دے لکه په سورة ق ۴۵ کښی دی.

۲۳ ۲۴ دا استثناء منقطع ده ، متصله ځکه نشی کیدلے چه نبی صلی الله علیه وسلم خو په کافرانو باندے مسلط نه وؤ په هغه معنیٰ سره چه تیره شوله. اوکه مسلّط نه مراد تسلط د جهاد او قتال شی نو استثناء متصله کیدے شی لیکن اول قول غوره دے.

تَوَلَّىٰ وَكَفَرَ اول په اعتبار د عمل سره او دویم په اعتبار د عقیدے سره دے.

الْعَذَابَ الْأَكْبَرَ د آخرت عذاب اکبر دے او د دنیا عذاب اصغر او ادنیٰ دے نو منکرینو لره په دنیا کښی هم عذابونه شته دے لیکن عذاب د آخرت ډیر لوئے دے.

۲۵ ۲۶ دا تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته متعلق دے په

فذکر پورے یا علت دے دَ فَیُعَذِّبُهُ اللّٰهُ دَپاره یعنی عذاب اکبر روستو دَ رجوع او دَ حساب نه دے۔
او په دے دواړه جملو کښ ظرف ( الینا ، علینا ) مقدم کړی دی دپاره دَ مبالغے او دَ تاکید ، او دَپاره دَ حصر هم دے ځکه چه رجوع په آخرت او حساب کښ خاص دی په الله تعالیٰ پورے او حساب موقوف دے په علم محیط او قدرت کامله باندے او دا خاص دی په الله تعالیٰ پورے۔
سیوطی په درمنثور کښ دَ قتاده نه روایت کړے دے چه هغه به دَ دے په آخر کښ وئیل الی الله الایاب وعلی الله الحساب۔

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة غاشیه په فضل دَ الله تعالیٰ سره

سُوْرَةُ الْفَجْرِ مَكِّيَّةٌ
بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ
اٰيَاتُهَا ۳۰ رُكُوْعُهَا ۱

وَالْفَجْرِ ﴿۱﴾ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ﴿۲﴾ وَّالشَّفْعِ

قسم دے په وخت د صبا باندے. او په لس شپو باندے، او په جفت (جفت)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الفجر

**ربط دَ دے سورت** دَ مخکښ سورت سره په څو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښ ذکر شو تخویف په عذاب اخروی سره نو په دے سورت کښ دَ عذاب نه دَ بچ کیدلو طریقه ذکر کوی چه هغه تضرع کول دی الله تعالیٰ ته په اوقاتِ مبارکه کښ. دویمه وجه دا ده چه مخکښ عذاب اخروی ذکر شو نو په دے سورت کښ دَ عذاب دنیوی نمونے ذکر کوی. دریمه وجه دا ده چه دَ هغه سورت په اخر کښ دوباره ژوندے ذکر کړو نو دَ دے سورت په اول کښ پنځه حالات مختلفه ذکر کوی چه دلیلونه دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دی. څلورمه وجه دا ده چه هلته کښ دَ اخرت ذکر وو نو په دے کښ تزهید فی الدنیا ذکر کوی.

**دعوی دَ سورت**. ترغیب دے تضرع الی الله ته په اوقاتِ مبارکه کښ سره دَ اجتناب دَ مرض او سببِ مرض نه. مأخذ دَ دعوے سه کښ دے او مرض ذکر دے په سلا سټا کښ او اسباب مرض په سکا سلا سوا سنا کښ او دَ الله تعالیٰ دَ اسماؤ نه ئے رَبّ اته ځله ذکر کړیدے دَ پاره دَ اثبات دَ توحید دَ ربوبیت.

**خلاصه دَ سورت**. پنځه اوقات مبارکه باندے قسم ذکر دے او دعوی دَ سورت ترسه پورے ده بیا تخویف دنیوی دے هغه چا لره چه تضرع الی الله نه کوی په ذکر دَ درے قومونو دَ مکذبینو سره چه عادوؤ تکبر ئے کوؤ په قوت دَ بدنونو سره او ثمود وؤ چه تکبر ئے کوو په قوت دَ مکانونو او صنعتونو سره او فرعون وؤ چه تکبر ئے کوؤ

وَالْوَتْرِ ﴿۳﴾ وَالَّيْلِ إِذَا يَسْرِ ﴿۴﴾ هَلْ فِيْ

او ناټکۍ (طاق) پانډے، او په شپه پاندے چه کله روانه شي . یقیناً شته په

په قوت دَ بادشاهۍ سره تر ۱۰ پورے. بیا مرض ذکر شو چه طغیان او فساد دے په ۱۱ ۱۲ کښې سره دَ عذاب نه په ۱۳ ۱۴ کښې. بیا زجر دے په محبت دَ دنیا سره چه هغه سبب دَ کرامت او اهانت گنړی تر ۱۶ پورے او دَ دے محبت دنیوی دَ وجے نه څلور اوصاف قبیحه (چه هغه مرضونه دی) ذکر کړے دی تر ۲۰ پورے. بیا تخویف اخروی دے په اته وجوهو سره تر ۲۶ پورے او بشارت دے په شپږ وجوهو سره تر اخره پورے.

تفسیر ۱ ۲ دا اول قسم دے او فَجْرِ خو معلوم دے چه صبا ته وئیلے کیږی لیکن په مراد دَ دے کښې ډیر اقوال دی ۱ فجر دَ هرے ورځے . ۲ فجر دَ یوم النحر ۳ فجر دَ یوم عرفه ۴ صلوٰة دَ فجر ۵ ټوله ورځ ذکر دَ جزء مراد ترینه کل دے لیکن اول قول او دویم قول زیات صحیح دی. وَلَيَالٍ عَشْرٍ دا دویم قسم دے او مراد دَ فجر دَ یوم النحر نه وړاندے لس شپے او ورځے دَ ذوالحجه دَ میاشتے. یا مراد دَ دے نه لس آخری دَ رمضان دی اول قول ابن کثیر غوره کړے دے اګرچه په احادیثو کښې دَ لسو ورځو دَ ذوالحجه فضیلت ذکر دے لیکن دَ شپے اطلاق په ورځ باندے کیدے شی. او چه دویم قول مراد شی نو مراد ترینه شپے دی ځکه چه دَ رمضان دَ اخری لسو شپو فضیلت په ډیر احادیثو سره ثابت دے.

۳ شَفْعِ هغه عدد دے چه پوره پوره تقسیم کیدے شی لکه دوه څلور (یعنی جوړے والا) او وَتْرِ هغه دے چه پورے نه تقسیمیږی لکه یو، درے وغیره (یعنی بے جوړے) او دَ دے په مراد کښې دَ مفسرینو ډیر اقوال دی. اول دا چه مکانونه دَ حج مراد دی یعنی بیت الله او حرات او عرفه او منیٰ او مزدلفه ټول وتر وتر دی او صفا و مروه شفع دہ. دویم دا چه اعمال دَ حج کښې دوه قسمونه دی طواف. سعی. رمی دَ جمراتو وتر وتر دی او رکعتان دَ طواف شفع ده. دریم زمانے دَ حج یعنی یوم عرفه وتر ده (نهمه ده) او یوم النحر شفع ده (لسمه ده). څلورم دا چه مونځونه مراد دی یعنی دوه څلور رکعتونه شفع دی (پاتے په بل مخ)

ذٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِىْ حِجْرٍ ۝ اَلَمْ تَرَ كَيْفَ

| دیکښ | پوره حصّه | عقل والو | لره ۔ | آیا نه ګورے چه څنګه کار |
|---|---|---|---|---|

او درے او یو رکعت وَتر دے ۔ پنځم دا چه ټول مخلوق شفع ده په دلیل دَ من کل شیءٍ خلقنا زوجین او الله تعالیٰ وَتر دے (یو دے) ۔ شپږم ټول عدد چه بعض وتر دی او بعض شفع دی ۔ او نور هم ډیر اقوال دی غوره پکښې څلورم قول دے او هرکله چه شفع مونځونه ډیر دی دَ دے وجے نه والشفع ئې مقدّم کړیدے په الوتر باندے ۔ او دا دوه قسمونه دی ۔

سک دا پنځم قسم دے مراد دَ دے نه هره شپه چه تیریږی او دَ تهجد وخت وی یا مراد دے نه شپه دَ مزدلفے ده یا شپه دَ لیلة القدر ده لیکن لفظ دَ یَسر دلالت کوی چه اول قول غوره دے یَسْرِ په اصل کښې یَسْرِی دے ۔ خلیل وئیلے دی چه یا حذف کیږی دَ پاره دَ موافقت دَ آیاتونو او فرّاء وئیلے دی چه عرب په داسے ځائے کښې یا حذف کوی او په کسره (زیر) باندے اکتفاء کوی ۔

سه دا جواب قسم دے او هَلْ په معنیٰ دَ اِنَّ سره دے ۔ ذٰلِكَ اشاره ده پنځو وارو قسمونو ته په تاویل دَ مذکور سره ۔ قَسَمٌ په معنیٰ دَ حلف سره دے او خازن وئیلے دی چه په معنیٰ دَ مکتفیٰ دے یعنی دا قسمونه فائده ورکوی عقل والو ته هغوی په دے قسمونو باندے اکتفاء او باور کوی ۔ یا قسم په معنیٰ دَ قِسم سره دے په معنیٰ دَ حصے سره یعنی په دے مبارک اوقاتو کښې عقل والا حصّه موندلے شی ۔ حاصل دا دے چه دا پنځه وختونه مبارک اوقات دی دَ استجابت دَ دُعا او دَ عبادت دَ پاره دی او دا قسمونه دلالت کوی دَ دوی په عظمت او برکت باندے نو عقل والا په دے قسمونو باندے اعتبار کوی او په دے اوقاتو کښې الله تعالیٰ ته عاجزی او تضرع کوی ۔ حِجْر په اصل کښې هغه ځیز ته وئیلے شی چه منع کول کوی او عقل ته دَ دے وجے نه وئیلے شی چه عقل هم منع کوونکے دے دَ قبائحو نه او دَ عبث وخت تیرولو نه او دَ فانی دُنیا دَ محبت کولو نه ۔

فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ ﴿٦﴾ إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ ﴿٧﴾

اوکړو رب ستا د عاديانو سره، چه ارم دی ستنو والا،

الَّتِي لَمْ يُخْلَقْ مِثْلُهَا فِي الْبِلَادِ ﴿٨﴾

هغه دا سے دی چه نه دی پیدا کړے شوے د هغوی پشان په ټولو ښارونو کښې،

سلا سلا سلا روستو د ذکر د حال د تضرع کوؤنکو نه حال د متکبرينو ذکر کوی په طريقه د تخويف دنيوی سره او د هغوی درے تمونے ذکر کوی اول هغه قوم چه د هغوی استکبار وؤ په کثرت د مال او قوت د بدنونو سره يعنی عاديان. كَيْفَ فَعَلَ کښې تعجيب دے د لوئے عذاب د هغوی نه چه هغه په سورة الحاقه سلا سلا سلا کښې ذکر دے۔

عَادٍ دا نوم د يو نيکه د دوی وؤ نو بيا د قبيلے نوم اوګرځيدو۔ إِرَمَ دا عطف بيان دے د عاد، اشاره ده چه دا عاد اُولٰی دے ځکه چه عاد ځوئے د إرم او هغه ځوئے د عوص او هغه ځوئے د سام او هغه ځوئے د نوح عليه السلام وؤ او د دوی نوم عاد اولٰی په سورة نجم سلا کښې ذکر دے او بعضو ويلی دی چه إرم د دوی د وطن نوم وؤ۔

ذَاتِ الْعِمَادِ، إِرَمَ هر کله چه نوم د قبيلے دے نو ذَاتِ الْعِمَادِ صفت دے او معنٰی دا ده چه دوی اکثر په دا سے خيمو کښې اوسيدل چه په ستنو باندے اولاړے وے يا دا چه د دوی بدنونه د ډنګ ډنګ پشان د اوګدو ستنو وؤ۔

الَّتِي لَمْ يُخْلَقْ الخ دا بل صفت دے مِثْلُهَا پشان د هغوی په قوت د بدنونو او ډنګ والی کښې او ضمير د مؤنث په تاويل د قبيله سره راجع دے ارم ته۔

فائده:۔ بعضو تفسيرونو کښې قصّه د باغ د شداد ذکر کړے ده په هغے باندے ابن کثير رد کړے دے او بعضو ليکلی دی چه د عاديانو قدونه پنځه سوه ګزه وؤ نو په هغے باندے قرطبی رد کړے دے۔

وَثَمُوْدَ الَّذِيْنَ جَابُوا الصَّخْرَ بِالْوَادِ ۝۹

او ثموديان هغه چه جوړوله ئے رپه تراش کولو سره) کټے په لمنو د غرونو کښ

وَفِرْعَوْنَ ذِي الْاَوْتَادِ ۝۱۰ الَّذِيْنَ طَغَوْا

او فرعون ميخونو والا . هغه کسان چه سرکشي ئے کړيده

فِي الْبِلَادِ ۝۱۱ فَاَكْثَرُوْا فِيْهَا الْفَسَادَ ۝۱۲

په ښارونو کښ ، نو ډير ئے خور کړے وو په هغے کښ فساد .

۹ دا دويمه نمونه ده اَلَّذِيْنَ جَابُوا الصَّخْرَ په دے کښ دَ دوی صنعت کارئے ته اشاره ده يعنی دوی به کټے تراش کولے او دَ هغے نه ئے اباد ئے او مختلف شکلونه او نقشونه جوړول نو دوی مالدار او صنعت کار وو په دے وجے سره ئے دَ حق نه تکبر کوو.

بِالْوَادِ مراد ترينه خاص وادي القُرٰی ده يا عام مراد دے يعنی لمنے دَ غرونو چه په هغے کښ دوی اوسيدل.

۱۰ دا دريمه نمونه ده يعنی فرعونيان چه تکبر ئے کوو په قوت دَ بادشاهئ باندے.

ذِي الْاَوْتَادِ دا کنايه ده دَ ډير فوج پوليس او لښکرونه چه په هغے سره ئے حکومت خپل کلک کړے وو يا مراد دا چه دهٔ به چاله غټه سزا ورکوله نو لاسونو او خپو باندے به ئے ورله ميخونه ټک وهل لکه چه دَ اسيه رضی الله عنها سره ئے دا سے کړے وو.

۱۱ ۱۲ په دے کښ دَ دغه مکذبينو مرضونه ذکر شويدی. طغيان، فساد، اول سبب دے دَ دويم دَ پاره. طَغَوْا ضمير درے وارو قومونو ته راجع دے طغيان تجاوز دے دَ حد شرعی نه په عقيده او په عمل کښ. فَسَادَ قتل، کفر او ټولو معاصی ته شامل دے شريعت و ئيلے دی چه چا عمل او کړو په غير دَ ما امرالله نه او حکم ئے کوو په بندګانو کښ په ظلم کولو سره نو هغه مفسد دے. او دا مرضونه دَ عام منکرينو بندګانو دی.

فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ ﴿۱۳﴾

نو را اوغورځوله په هغوی باندے رب ستا دُره (کوړه) دَ عذاب

إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ ﴿۱۴﴾ فَأَمَّا الْإِنْسَانُ

یقینًا رب ستا خامخا په ځائے دَ څوکئ کښ دے. نو هر چه انسان دے

إِذَا مَا ابْتَلَاهُ رَبُّهُ فَأَكْرَمَهُ وَنَعَّمَهُ فَيَقُولُ

هر کله چه ازمیښت اوکړی په دهٔ رب دَ دهٔ نو عزت ورکړی دهٔ له او نعمتونه ورکړی دهٔ له نو دے وائی

رَبِّي أَكْرَمَنِ ﴿۱۵﴾ وَأَمَّا إِذَا مَا ابْتَلَاهُ فَقَدَرَ

رب زما عزت راکړو ما له. او هر کله چه ازمیښت اوکړی په دهٔ باندے نو تنګه کړی

۱۳ – ۱۴ دا تفریع دَ عذاب ده په اسبابو دَ هغې باندے. فَصَبَّ نازلول په کثرت او مبالغے سره دے ته صب وئیلے شی. سَوْطَ عَذَابٍ سوط چابک اوکوړے ته وئیلے شی چه په هغې باندے وهل او سزا ورکیدے شی نو مراد دَ دے نه ډیر قسمونه دَ عذاب دی او دویم قول دا دے چه سوط خلط ته وئیلے کیږی یعنی دا سے عذاب چه غوښه او وینه ګډه وډه کوی. إِنَّ رَبَّكَ په دے جمله کښ تاکید دَ عذاب ورکولو دے. لَبِالْمِرْصَادِ مرصاد هغه مکان ته وئیلے کیږی چه په هغې کښ څوک کیناستی دَ پاره دَ راګیرولو دَ دُښمن هغې ته مورچه هم وئیلے کیږی. نو دا کنایه ده چه الله تعالیٰ عملونه دَ بندګانو وینی او خبر دے دَ دوی اوری دَ هغه نه هیڅ پټ نه دی نو دوی له مناسبه سزا ورکولے شی دَ هغه نه په هیڅ طریقه نشی بچ کیدلے.

۱۵ – ۱۶ په دے ایاتونو کښ زجر دے دغه مکذبینو ته چه وسعت دَ دُنیا کرامت ګڼړی او تنګسیا دَ رزق او غریبی اهانت ګڼړی او مراد دَ دے نه محبت دَ دُنیا دے چه سبب مرض دے. فَأَكْرَمَهُ مراد دَ دے نه کرامت دنیویه دے چه خلق ئے دَ دنیا دَ مال او جاه دَ وجے نه عزت کوی. وَنَعَّمَهُ مراد ترینه ژوند دَ دُنیا دے چه فراخ او ډیر والے دَ دنیوی نعمتونو دے. أَكْرَمَنِ (سوال) الله تعالیٰ دیته (پاتے په بل مخ)

عَلَيْهِ رِزْقَهٗ ۙ فَيَقُوْلُ رَبِّيْٓ اَهَانَنِ ﴿۱۶﴾

په ده باندے روزي دَ ده، نو وائي رب زما سپک والے اوکړو زما.

كَلَّا بَلْ لَّا تُكْرِمُوْنَ الْيَتِيْمَ ﴿۱۷﴾

هیچرے داسے نه ده بلکه نه کوئے تاسو عزت دَ یتیم،

وَلَا تَحٰٓضُّوْنَ عَلٰى طَعَامِ الْمِسْكِيْنِ ﴿۱۸﴾

او نه ورکوئے تیزی په خوراک دَ مسکین باندے،

اکرام وئیلے دے نو دے انسان ته په دے خبره (اَكْرَمَنِ) ولے زجر ورکوی؟ (جواب) ۱ مراد دا دے چه دا کلمه دَ ده په طور دَ شکر دَ الله تعالیٰ سره نه ده بلکه ځان دَ دے حقدار ګنړی لکه قول دَ قارون سورة قصص ۷۸ اودا رنګ سورة زمر ۴۹ کښ۔ (جواب) ۲ دنیوی نعمتونه بغیر دَ نعمتونو دَ اخرت نه کرامت نه دے او دا انسان بغیر دَ عقیدے دَ اخرت نه دیته کرامت وائی۔ اَهَانَنِ یعنی غریبی اهانت ګنړی او دَ دے وجے نه عاد، ثمود او فرعونیانو په خپلو زمانو کښ غریبان مؤمنان سپک او ذلیل ګنړل لکه چه دَ هغوی په قصصو کښ په مختلف سورتو نو کښ تیر شوی۔ (فائده) مالداری ابتلاء ده چه دا انسان شکر کوی او که نا شکری کوی او غریبی هم ابتلاء ده چه دا انسان صبر کوی او که جزع فزع کوی۔ (سوال) دَ نَعَّمَهٗ سره ئے اکرمه وئیلے دے او دَ قدر علیه رزقه سره ئے اهانه نه دے وئیلے؟ (جواب) نعمتونه دَ الله تعالیٰ ضرور اکرام دے ظاهرًا اګرچه استدراج وی او تنګسیا دَ رزق اهانت نه دے دَ دے وجے دَ اکثر صالحینو بندګانو رزقونه تنګ وی اګرچه هغوی په نیز دَ الله تعالیٰ عزتمند وی۔

۱۷ ۱۸ دا څلور اسباب دَ توهین ذکر کوی دوه سلبی او دوه ایجابی او دا اخلاق دَ دنیا پرست کافر او مشرک او دَ غافل مسلمان دی۔ كَلَّا ردعیه دے یعنی مالداری او فقیری مدار دَ اکرام او اهانت عندالله نه دے۔ (سوال) نعمتونو دنیویه ته اکرام او وئیلے شو په دے قول (اکرمه و نعّمه) کښ نو په كَلَّا سره دَ هغے نفی څه رنګ صحیح کیږی؟

وَتَأْكُلُوْنَ التُّرَاثَ اَكْلًا لَّمًّا ﴿۱۹﴾

او خورئ تاسو مال دَ مړي په غوښه (ټول) خوراک .

وَّتُحِبُّوْنَ الْمَالَ حُبًّا جَمًّا ﴿۲۰﴾ كَلَّآ

او مينه کوئ دَ مال سره مينه ډيره . هيڅوک داسې نه ده پکار

(جواب) نفي دَ اکرام مقيده ده يعني اکرام عندالله او اثبات دَ اکرام مطلقه ده نو منافات نيشته . او فرّاء وئيلي دي چه كلا دلته په معنیٰ دَ لم يكن ينبغي سره دے يعني انسان لره دا اقوال مناسب نه دي چه اكرمن واهانن بلكه دهٔ لره پكار دي شكركول په وخت دَ غِنا كښ اوصبركول په وخت دَ فقيرئ كښ . بَلْ دَپاره دَ اضراب دے يعني فقيري سبب دَ اهانت نه ده بلكه دا خلور اخلاق سبب دَ اهانت دي يا بَلْ دَپاره دَ ترقئ دے يعني دَ مخکښ اقوالو نه زيات دَ دوی دَپاره ناکاره اعمال شته دے (اول) لَا تُكْرِمُوْنَ الْيَتِيْمَ اكرام دَيتيم دَ هغه دَ حق نه مدافعت كول دَ هغه دَ مال نه ځان ساتل دَ هغه پالنه كول دَ هغه په سر باندے دَ شفقت لاس رابنكل دي . (دويم) وَلَا تَحَاضُّوْنَ اه دا عام دے يوبل ته تيزی وركول او خپل اهل ته او ځان ته تيزی وركول عَلٰى طَعَامِ طعام په معنیٰ دَ اطعام سره دے . الْمِسْكِيْنِ او په دے كښ اشاره ده چه خپل ځان دَپاره دَ مال دَ صدقاتو كوشش كوی يا مجورانو دَ قبرونو نه دَ نذرانے كولو يا مالدارو ته دَ خوراک وركولو دَ رياء اوسمعت دَپاره كوشش كوی .

۱۹ - ۲۰ په دے كښ باقی دوه اسباب ثبوتيه ايجابيه دي . (دريم) وَتَأْكُلُوْنَ خوراک نه مراد اخستل دي اكل لوئے مقصد دے دَ دے وجے نه ئے ذكر كړو . التُّرَاثَ هغه مال چه دَ مړی نه پاتے شي اَكْلًا لَّمًّا يعني حلال او حرام جمع كوی تميز دَ حلال او حرام نه كوی يعني په ميراث كښ ئے خپله حصّه اخلی او دَ كمزورو ورثوء (لكه لور، خور او ښځه) دَ هغے حصّه هم ځان له اخلی او دا رنګ دَ مړی دَ كور نه درے مابنا مونه (شوے) دَ جمعے په شپه (پاتے په بل مخ)

إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا ﴿٢١﴾ وَجَآءَ رَبُّكَ

هر كله چه هواره شي زمكه په پوره هوارېدلو سره، او راشي رب ستا

وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا ﴿٢٢﴾ وَجِايْٓءَ يَوْمَئِذٍۭ

او ملائك صفونه صفونه، او راېوستلے شي په دغه ورځ

اوچهلم اوكليزه او په حيله دَ اسقاط سره مالونه خوړل هم پدېكښ داخل دى. (رخلورم) حُبًّا جَمًّا نفس محبت دَ مال خو طبعًا په عامو انسانانو كښې شته ليكن غالب اوكثير محبت چه دَ حلال حرام فرق نه كوى او دين ته په كښې فرصت نه وركوى هر وخت دَ مال په ساتنه اوجمع كولو كښې مشغول وى نو دا سے محبت قبيح دے.

سلا دَ دے ايت نه تذكير په احوالو دَ قيامت سره شورو كوى اودا علاج دے دَ تير ذكر شوى مرضونو دَپاره. كَلَّآ ردعيه دے يعنى دغه تير شوى ناكاره اخلاق نه ځان اوساتے ځكه چه دا به په ورځ دَ قيامت كښې دَ لوئے نقصان دَپاره سبب اوګرځى. دُكَّتِ دك په اصل كښې كسر (ماتولو) ته وئيلے شى او په معنىٰ دَ هموارېدلو سره هم راځى يعنى غرونه، ډيرے او محلات وغيره به دَ مخ دَ زمكے نه مات كړے شى او هموار به كړے شى. دَكًّا دَكًّا تكرار دَ كثرت او دَ مبالغے دَپاره دے او دا كنايه ده دَ زلزلے دَ ټولے زمكے نه.

سلا وَجَآءَ رَبُّكَ مذهب دَ سلف صالحينو دا دے چه مجئ په خپله حقيقى معنىٰ سره دے بغير دَ تشبيه اوتمثيل او تاويل نه. هر كله چه صفتونه دَ الله تعالىٰ دَ مخلوق دَ صفتو نو سره هيڅ مشابهت نه لرى نو دا اعتراضونه نشى كيدلے چه الله تعالىٰ لره مجئ (راتلل) ثابت شى نو انتقال او مكان او جهت به ورله ثابت شى او هغه دَ دے نه پاك دے ځكه دا اعتراضونه خو هغه وخت كيدے شى چه مجئ دَ الله تعالىٰ دَ مخلوق پشان شى او دا سے نه ده نو دَ جَآءَ په تاويل كښې هغه تقديرات او كنايات ته حاجت نيشته چه قرطبى وغيره ليكلے دى. صَفًّا صَفًّا دا تكرار هم كثرت دَ صفتونو ته اشاره ده او دَ هر اسمان ملائك به جدا جدا صفونه شى.

بِجَهَنَّمَ ۙ يَوْمَئِذٍ يَّتَذَكَّرُ الْاِنْسَانُ

جهنم لره ، په دغه ورځ به نصیحت قبلوی انسان

وَاَنّٰى لَهُ الذِّكْرٰى ﴿۲۳﴾ يَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ

او د کوم ځائے نه به وی ده لره نصیحت - وائی به وائی هائے ارمان دے

قَدَّمْتُ لِحَيَاتِيْ ﴿۲۴﴾ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُعَذِّبُ

چه عمل مے مخکښ رالیږلے وے د پاره د ژوند خپل ، نو په دغه ورځ نه شی ورکولے عذاب

عَذَابَهٗٓ اَحَدٌ ﴿۲۵﴾ وَّلَا يُوْثِقُ وَثَاقَهٗٓ اَحَدٌ ﴿۲۶﴾

دَ عذاب دَ هغه پشان هیڅوک ، او نه شی کولے تړل دَ هغه پشان تړل هیڅوک -

۲۳ داهم دَ قیامت احوال دی دَ تذکیر دَ پاره . وَجِايْٓءَ يَوْمَئِذٍ الخ حدیث دَ مسلم کښ وارد دی چه جهنم به دا سے راوستلے شی چه دَ هغه به اویا زره مهارونه وی او هر مُهار به اویا زره ملائک راکاږی . يَتَذَكَّرُ مفعول ئے پټ دے یعنی خپل عملونه او گناهونه به رایاد کړی . وَاَنّٰى لَهُ الذِّكْرٰى (سوال) په مینځ دَ يتذكر او وَاَنّٰى له الذكرى کښ خومنافات معلومیږی چه اول وائی چه رایاد به کړی او بیا وائی چه څه رنګه به یاد کړی ؟ (جواب) په دے کښ مضاف محذوف دے یعنی انّٰى له منفعة الذكرى یعنی یادداشت دَ گناهونو هیڅ نفع نه ورکوی۔

۲۴ او دا ترقی ده دَ ماقبل نه یعنی نفع ورکول خولرے خبره ده بلکه افسوس او حسرت به کوی . قَدَّمْتُ مفعول پټ دے یعنی عملاً صالحًا. لِحَيَاتِيْ حیاۃ نه مراد دنیوی ژوند دے نو لام په معنی دَ فِيْ سره دے یا مراد دَ حیاۃ نه ژوند دَ آخرت دے چه هغه حیاۃ حقیقیه دے او په معنی دَ نجات سره دے نو لام پخپله معنی سره دے یا مضاف حذف دے یعنی لحصول حیاتی -

۲۵ ۲۶ په دے کښ ذکر دَ هیبت او دَ شدت دَ عذاب دے او عَذَابَهٗ وَثَاقَهٗ ضمیرونه راجع دی الله تعالی ته یعنی الله تعالی عذاب او وثاق دَ جهنمیانو بل څوک ته دَ انسانانو نه سپاری پخپله (پاکے په بل منځ)

يَآ أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ﴿٢٧﴾ ارْجِعِيٓ

اے نفس یقین کوونکیه او گرځه

إِلَىٰ رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً ﴿٢٨﴾ فَادْخُلِي

طرف د رب خپل ته خوشحاله خوشحاله کړے شوے، نو داخل شه

فِي عِبَادِي ﴿٢٩﴾ وَادْخُلِي جَنَّتِي ﴿٣٠﴾

په بندګانو زما کښې، او داخل شه جنت زما ته۔

او په واسطه د زبانیهٔ ملائکو سره ئې وړکوي۔ یا حرف تشبیه محذوف دے یعنی د عذاب د الله تعالیٰ او د تړلو د هغه پشان یل هیڅوک عذاب او تړل نشي کولے۔ یا ضمیرونه د عذاب او وثاقة راجع دي انسان جهنمی ته او په دے کښې هم مخکښې دواړه احتمالونه کیدلے شي۔

۲۷ سره ۲۸ سره ۲۹ سره ۳۰ دا ذکر د حال د مؤمنانو دے روستو د حال د اهلِ جهنم نه۔ یَآ اَیَّتُهَا النَّفْسُ دا وئیلے شي په وخت د ځنکدن کښې او په وخت د بعث بعد الموت کښې۔

اَلْمُطْمَئِنَّةُ په دے کښې د مفسرینو ډیر اقوال دي لیکن مرجع د هغې یوه ده چه کامل ایمان لرونکے د هر قسم شرک نه ځان ساتونکے او تسلی حاصلوونکے په ذکر د الله تعالیٰ او یقین کوونکے په احکامو د الله تعالیٰ او راضي په قضا د الله تعالیٰ چه دا ټول صفتونه پکښې موجود وي۔

اِلٰی رَبِّكِ د رب نه مراد الله تعالیٰ دے په دواړه توجیهاتو کښې۔ یا په اول توجیه (وخت د ځنکدن) کښې رب نه مراد الله تعالیٰ دے او په دویمه توجیه (بعث بعد الموت) کښې د رب نه مراد بدن د هغه دے ابن کثیر هم دا دواړه ذکر کړي دي۔

رَاضِیَةً مَّرْضِیَّةً رضا په اعتبار د ډیرو نعمتونو سره ده او مرضیة په اعتبار د عملونو د دهٔ سره دے یعنی مقبول دے په نیز د الله تعالیٰ په سبب د عملونو سره یا په معنیٰ مرضیة عنها سره دے یعنی الله تعالیٰ به د دهٔ نه رضا وي۔

فَادْخُلِیْ فِیْ عِبٰدِیْ په اوله توجیه باندے مطلب دا دے چه په عالم برزخ کښې مستقر دَ ارواحو دَ مؤمنانو ته به داخل کړیشی او په دویمه توجیه باندے مطلب دا چه په بندګانو دَ بندګانو کښې به داخل کړیشی . یا روستو دَ بعث بعد الموت نه په جماعت دَ بندګانو صالحینو کښې به داخل کړے شی .

وَادْخُلِیْ جَنَّتِیْ او شربینی دَ قفال نه نقل کړیدے چه دا جملے اګر چه دَ امرونو دی لیکن په معنیٰ دَ خبر سره دی .

ختم شو تفسیر دَ سورة الفجر په فضل دَ الله تعالیٰ سره (والحمد لله علیٰ کل حال)

| سُورَةُ الْبَلَدِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ٢٠ رُكُوعُهَا ١ |
|---|---|---|

لَآ أُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ ﴿١﴾ وَأَنْتَ حِلٌّ

| دا سے نه دہ ، قسم کوؤم په دے ښار بانلاسے ، او ستا بے عزتی کیدېشي |
|---|

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سورة البلد

ربط دَ دے سورت دَ مخکښې سره په څو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښې سورت کښې ترغیب ووُ تضرع کولو ته په اوقاتو دَ استجابت کښې نو په دے سورت کښې ترغیب دے صالح محنت کولو ته او تحذیر دے دَ ناکاره محنت نه - دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې زجر ووُ په عدم اکرام دَ یتیم او عدم اطعام مسکین باندے نو په دے سورت کښې ترغیب ورکول دی په اکرام او اطعام دَ یتیم او مسکین باندے سرهٔ دَ ایمان نه - دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې تخویف ووُ په ذکر دَ مکذبینو سا یقینو باندے نو په دے سورت کښې زجر دے په ذکر دَ مکذب دَ دے امت والو نه.

دعوٰی دَ سورت ، ترغیب دے دَ تحمّل دَ محنت کولو په صالح طریقے سره او اجتناب کولو ته دَ محنتِ سیّئه نه په سے کښې او په دے کښې صفات فعلیه دَ الله تعالیٰ درے ذکر کړیدی. خَلق دَ انسان جعل دَ اندامونو ، هدایت.

خلاصه دَ سورت - دوه شهادتونه ذکر کوی په دعویٰ دَ سورت باندے تر سے پورے بیا زجر دے په مشقت سیئه باندے په سے کښې سرهٔ دَ ناکاره عقیدے نه په سے سے کښې اوله عقیده انکار دَ قدرت دَ الله تعالیٰ نه او دویمه عقیده انکار دَ علم دَ الله تعالیٰ نه او دا منشا ده دَ پاره دَ ناکاره مشقت کولو - بیا ذکر دَ څلورو انعامانو دے (په سے سے سے) کښې چه په هغے سره تمیز کیدلے شی په مینځ

بِهٰذَا الْبَلَدِ ﴿۲﴾ وَ وَالِدٍ وَّمَا وَلَدَ ﴿۳﴾

په دے ښار کښې ، او قسم دے په پلار او په هغه چه اولاد ئې دے ،

دَ مشقت صالح او سيئ کښې - بيا ذکر دے دَ مشقت صالحه په شپږ امورو سره دَ بشارت نه تر ۱۸ پورے او هغه ته ئې نوم ايخې دے (عقبه) بيا تخويف اخروي دے مشقت سيئه کوؤنکي ته په ۱۹ تر ۲۰ کښې.

تفسير ۱ تفسير دَ لَآ اُقْسِمُ په تفسير دَ سورة واقعه کښې تير شوے دے دلته مطلب دَ لَا دا دے چه انسان دِے دا گمان نۀ کوي چه دے په هيڅ محنت او مشقت نه کوي ، مهمل به وي يا به په مشقت کولو کښې آزاد وي .

بِهٰذَا الْبَلَدِ اجماع ده دَ مفسرينو چه مراد دَ دے نه مکه مکرمه ده چه هغه ام القرىٰ او ام البلاد ده او دَ دے نه ټوله زمکه غوړولے شوے ده او نور هم دَ دے ډير فضائل دي . او دَ دے ذکر په سورة بقره ۱۲۶ او سورة ابراهيم ۳۵ او سورة تين ۳ او سورة نمل ۹۱ کښې هم راغلے دے.

بَلَدِ مذکر جنس مکان ته وئيلے شي او مکه په دے سره مسمّٰى شوے ده تعظيماً تسميه دَ خاص ده په اسم جنس سره او بَلدة يو خاص ټکړے ته وئيلے کيږي .

۲ دا جمله معترضه ده په مينځ دَ قسم او جواب قسم کښې او دا جمله ئې دَ دے وجے نه ذکر کړه چه په بلد حرام باندے په قسم کولو کښې (په مناسبت دَ جواب قسم) دِے لره دخل دے لکه چه روستو به واضح کړيشي.

حِلٌّ مفسرينو دَ دے ډير وجوه ليکلي دي يو دا چه دا په معنىٰ دَ مستقبل سره دے او بشارت دَ فتح مکه دے روستو دَ هجرت کولو نه يعني تا لره به اجازت درکړے شي دَ قتال کولو په دے بلد کښې .

دويمه وجه دا ده چه حِل استحلال دَ حرمت ته وئيلے شي لکه په لَا تُحِلُّوا شَعَآئِرَ اللّٰهِ کښې يعني مشرکان ستا بے عزتي کوي په دے ښار کښې په اراده دَ قتل سره او په ويستلو سره او په سب وشتم سره .

دريمه توجيه دا ده چه ته بے گناه مقيم ئې په دے ښار کښې او مشرکان په دے کښې هر قسم گناهونه کوي.

۳ دا دويم قسم دے او مراد دَ والد نه آدم عليه السلام رياتے يو بل مخ)

لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ فِي كَبَدٍ ﴿٤﴾ أَيَحْسَبُ

| يقيناً | پيدا كړيدے مونږ | انسان | لره | په محنت كولو كښې۔ ايا گمان كوى |
|---|---|---|---|---|

او دَ ما ولد نه ټول ذريت (اولاد) دَ هغه دے او دا قول دَ مجاهد او حسن بصرى دے او اكثرو مفسرينو غوره كړے دے او ما ئے اوئيل ځكه چه لوئے شان او كثرت دَ اولاد ته اشاره ده لكه ما په دے قول كښې چه والله اعلم بما وضعت.يا دَ دے وجے چه په اولاد دَ ادم عليه السلام كښې عقل والا او كم عقل او بے عقله هم شته هغه ټولو ته اشاره ده۔(فائده) دَ لا اقسم دَ لاندے دواړه قسمونه ئے داخل كړل ځكه چه دَ دوى پوره مناسبت دے هغه دا دے چه هذا البلد مسكن اصلى دے دَ ادم او اولاد ئے ساكنان دى او دَ دغه مسكن نه ټوله زمكه او غوړولے شوه نو په ټوله زمكه باندے اولاد دَ ادم خواره شول او محنت او مشقت كوى۔

سِرَ دا جواب قسم دے كبد په اصل كښې شدّت ته وئيلے شى او مراد تري نه سختئ تيرول دى بدنى وى او كه مالى، اختيارى سختئ وى (يعنى عملونه دَ خير او شر) يا غير اختيارى.او قرطبى هغه مكابدات (سختيانے) تقريبا پنځويشت ذكر كړے دى نو انسان دَ پيدائش نه تر عاقبت پورے په مشقت او تكليف كښې دے معلومه شوه چه دے قادر على كل شئ او قادر مطلق او عالم بكل شئ نه دے بلكه دَ دهٔ دَ پاسه قادر او عالم شته چه هغه الله تعالىٰ دے نو پكار دى چه محنت او مشقت دَ الله تعالىٰ دَ حكم دَ لاندے كوى او ازادى نه كوى۔

او مناسبت دَ قسمونو او دَ جواب قسم دا دے چه زمكه دَ مكے خصوصًا دَ ډيرو مشقتونو زمكه ده تر دے پورے چه غوره دَ ټول مخلوق چه محمد صلى الله عليه وسلم دے په هغه باندے هم پكښې ډير تكليفونه تير شوى دى او ټوله زمكه عمومًا دَ مشقت او محنت ځائے دے بغير دَ مشقت نه په هغے كښې معيشت نه كيږى او دا رنګ دَ دے ساكنان چه ادم عليه السلام او دَ هغه نسل دے هر وخت په مشقت او تكليف كښې دى دَ چا مشقت صالح دے او دَ چا مشقت سيى (بد) دے

أَنْ لَّنْ يَّقْدِرَ عَلَيْهِ أَحَدٌ ۞ يَقُولُ

چه او به نه لري قدرت په دهٔ باندے هيڅوک ، وے وائي

أَهْلَكْتُ مَالًا لُّبَدًا ۞ أَيَحْسَبُ

خرچ کړيدی ما مالونه ډير څوڼ - آيا ګمان کوی

رلکه چه حدیث صحیح کښ وارد دی کل الناس یغدوا فبائع نفسه فمعتقها اوموبقها) نو دا دلیل او شاهد دے چه دَ انسان په ژوند کښ ضرور محنت او مشقت شته لیکن دهٔ لره ضروری دی چه مشقت دَخیر اوکړی او دَ قدرت او دَ علم دَ الله تعالیٰ نه ځان آزاد نهٔ ګنړی۔

۵ دَ دے آیت نه تر آخر دَ سورت پورے دوه قِسمونه ذکرکوی یوشقی (چه ناکاره مشقت کوی) او دویم سعید (چه صحیح مشقت کوی) په دَے آیت کښ زجر دے په عقیده دَ انسان شقی چه دَ قدرت دَ الله تعالیٰ نه انکار کوی دَ دے وجے نه دَ هغه دَ حکمونو دَ لاندے ژوند نهٔ تیروی او دا عقیده یقینی نه ده دَ دے وجے نه یحسب یٔ ذکر کړو۔

۷ دا بل زجر دے او دا علت دَ ایحسب دے او مثال دے دَ مشقت سیئه دَ پاره۔

يَقُولُ دا قول دَ دهٔ په طریقه دَ تکبر او دَ فخر سره دے۔

أَهْلَكْتُ اه مراد دَ دے نه هغه دے چه په دشمنئ او په مخالفت دَ سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښ یٔ ډیر مالونه خرچ کړے دی لکه په سورة انفال ۳۶ کښ دی۔

او دا جمله هر هغه انفاق دَ مال ته شامل ده چه خلاف دَ سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه خرچ کیږی۔ لکه په اشاعت دَ شرک او کفر او بدعاتو کښ، او په رسمونو رواجونو سره، او په فسق و فجور فحاشئ وغیره کښ۔

أَنْ لَّمْ يَرَهٗٓ أَحَدٌ ﴿۷﴾ أَلَمْ نَجْعَلْ لَّهٗ عَيْنَيْنِ ﴿۸﴾

آیا نه دی جوړې کړې موږ دهٔ لره دوه سترګې ۔ چه نه وینې دهٔ لره هیڅوک ۔

وَلِسَانًا وَّشَفَتَيْنِ ﴿۹﴾ وَهَدَيْنٰهُ النَّجْدَيْنِ ﴿۱۰﴾

او ژبه او دوه شونډې ، او خودلې مو دی دهٔ ته دوه لارې ،

فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ ﴿۱۱﴾ وَمَآ أَدْرٰىكَ

نو نه دے ختلے په کنډاوُ باندې ۔ او څه پته ده تا ته

ﮯ دا بل زجر دے په عقیده د شقی انسان چه الله تعالیٰ غیب دان نه ګڼړی او د دے وجے نه مشقت سیئه کوی او هرکله چه الله تعالیٰ قادر او غیب دان نه ګڼړی نو حساب کتاب هم نه منی د دے وجے نه د الله تعالیٰ د احکامو پابندی هم نه کوی ۔

ﮰ ۹ ﮱ په دیکښ تذکیر دے په نعمتونو سره او هغه داسے نعمتونه دی چه په هغے سره په صحیح او باطل محنتونو کښ فرق هم کولے شی ۔ اول نعمت د دهٔ سترګے چه په هغے دلیلونه د حق او باطل لیدلے شی دویم ژبه او دریم شونډے چه په دے مجموعه سره خبرے کولے شی نو د حق او باطل د علم د پاره تپوس ته کولے شی او نورے فائدے پکښ هم ډیرے دی څلورم نعمت هدایت د دوه لارو دے ، هَدَيْنٰهُ مراد د هدایت نه بیان دے په وحی سره یا خو د ته ده په عقل ورکولو سره ۔ النَّجْدَيْنِ نجد په اصل کښ اوچت ځائے ته وئیلے شی او مراد ترینه لار د خیر او د شر او حق او باطل ده چه په عقل سلیم او وحی دواړو سره د هغے په مینځ کښ ښکاره فرق کیدلے شی ۔ نجدین ورته د دے وجے نه اوئیلے شو چه دواړه لارے داسے ښکاره فرق لری لکه دوه ډیرے چه په زمکے جدا جدا ښکاریږی او په یو قول کښ مراد د دے نه سینے د مور دی ۔ حاصل دا دے چه د دے نعمتونو په ذریعه د حق او باطل په مینځ کښ تمیز کیدلے شی نو ولے دا انسان (شقی) محنت سیئه کوی ۔

ﮱ ۱۱ په دے کښ ترغیب دے مشقت صحیحه کولو ته او رد دے په ما قبل عملونو او عقیدو باندے چه په هغے سره کامیابی نه حاصلیږی ۔

مَا الْعَقَبَةُ ⑫ فَكُّ رَقَبَةٍ ⑬ أَوْ إِطْعٰمٌ فِي

چه څه دے کنړاؤ. خلاصول دَ سټ ، یا خوراک ورکول په

يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ ⑭ يَتِيمًا ذَا مَقْرَبَةٍ ⑮

ورځ دَ لوږے کښ ، یتیم چه رشته دار وی

اَقْتَحَمَ اقتحام، په زور سره یا بے فکرئے سره په یوځائے کښ ورداخلیدلو ته وائی.
او دلته مراد سختی تیرول دی په څه کار کولو کښ. العَقَبَةُ لار په غر
کښ چه سخته وی او په هغے کښ اوچت والے هم وی او هغے ته کنړاؤ وئیلے
کیږی.او دا په طریقه دَ تشبیه سره ده یعنی ایمان او اعمال صالحه او
انفاق دَ مال په صحیح مصرفونو کښ (چه دا مشقت صحیحه دے) په
شان دَ کنړاؤ دَ غر دے چه په هغے باندے ورتیریدل گران وی لیکن
انسان دَ هغے په ذریعه سره دَ یو ملک نه بل ملک ته وررسیږی او دا
جمله خبریه ده په نیز دَ اکثر مفسرینو او دَ بعضو په نیز دا جمله دُعائیه
دَ شر ده او امام بخاری وئیلے دی چه مراد دَ دے نه عقبه په دنیا کښ
ده او لَا په معنیٰ دَ لم سره دے ځکه لا په فعل ماضی باندے تکرار
غواړی او دلته تکرار نیشته دے.لیکن زهٔ وایم چه دَ عربیت دَ قانون
دَ پاره دَ قرآن تاویل کول پکار نه دی.
۱۲ پدے جملے سره عظمت شان دَ عقبه ته اشاره ده او په دے سره
تعلیم دَ عقبه ورکوی په معنیٰ تشبیهی سره.
۱۳ په شپږ امورو سره تفسیر دَ عقبے کوی اول فَكُّ رَقَبَةٍ مراد دَ رقبه
نه پوره انسان دے او خلاصول دَ هغه دَ غلامئ نه، مرګ والی نه دَ
قید دَ قرضونو نه او دَ گناهونو دَ کړ‌ئے نه او جهل نه او دَ مظلومیت نه
دا لفظ دے ټولو کارونو ته عام دے.او دا ئے مخکښ ذکر کړو اشارهٔ
چه دا عمل دَ ټولو صدقاتو نه افضل عمل دے.
۱۴ ۱۵ ۱۶ په دے ایا تونو کښ دویم او دریم خصلت ذکر کوی
مَسْغَبَةٍ سغب لوګه او اشتها دَ طعام ته وئیلے کیږی او اطعام دَ طعام فضیلت
او ثواب دے لیکن په وخت دَ لوږه کښ زیات ثواب دَ ګرپاتے په بل مخ)

أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ ﴿١٦﴾ ثُمَّ كَانَ

يا مسكين ته چه خاورو والا وي . بيا دي دے

مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ

دَ هغه چا نه چه ايمان يې راوړے دے او يو بل ته يې کوي يو بل ته دَ صبر کولو

نو دا قيد دَ مزيد فضيلت دَ پاره دے او اشاره ده چه محتاج په بخښش کولے شي په غير محتاج باندے.

يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ يعني دا سے وخت چه انسان په هغې کښ اوږے وي يا دا سے زمانه چه په هغې کښ قحط وي او دا سے ورځ چه په هغې کښ په يو کور کښ مړے شوے وي نو هغه کور والا طعام نشي تيارولے ځکه چه مشغول وي په غم باندے نو هغوی لره طعام ورکول هم ثواب دے او دېته اشاره ده په هغه حديث کښ چه جعفر رضی الله عنه شهيد شو نو نبي صلی الله عليه وسلم خپل کور ته راغے نو اُوئيل يې اِصْنَعُوْا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا فَإِنَّهُ أَتَاهُمْ مَا يُشْغِلُهُمْ (الحديث).

يَتِيمًا دَ يتيم او مسکين تخصيص يې دَ دے وجے نه اوکړو چه دوی ډير محتاج او حقدار دی.

ذَا مَقْرَبَةٍ دَ دے تخصيص يې دَ زيات اجر او دَ ډير حق دَ وجے نه اوکړو ځکه چه په حديث کښ راغلی دی چه صدقه په مسکين باندے يوه صدقه ده او په ذو رحم باندے دوه دی صدقه هم ده او صله رحمي هم ده (ترمذی).

أَوْ مِسْكِينًا دلته مسکين او فقير يو څيز دے هر محتاج ته وئيلے شي ليکن تخصيص يې په قيد دَ ذَا مَتْرَبَةٍ سره دَ پاره دَ زيات ثواب کړے دے. مراد دَ دے نه دا سے مسکين دے چه کور يې نيشته بستره يې نيشته اهلُ عيال يې ډير دے يعني ډير محتاج دے په نسبت دَ نورو مسکينانو او فقراؤ سره.

وَتَوَاصَوْا بِالْمَرْحَمَةِ ﴿۱۷﴾ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ

او یو بل ته کوی خبره د رحم کولو - دغه کسان دی

الْمَيْمَنَةِ ﴿۱۸﴾ وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا هُمْ

خه قسمت والا - او هغه کسان چه کفر ئې کړیدے زمونږ پابا یاتونو بانسے دوی

۱۷ په دے کښ درے خصلتونه نور ذکر کوی.
سوال :- ایمان خو په صدقه او انفاق بانسے مخکښ دے نو دلته ئې ولے په ثمّ سره ذکر کړو ؟
جواب :- ثمّ دَ تعقیب ذکری دَپاره دے او ایمان خو شرط او قید دے دَپاره دَ عملونو، نو کله مخکښ ذکر شی او کله په مینځ کښ او کله روستو - لیکن هر کله چه په دے سورت کښ مقصود ذکر دَ احسان دَ مخلوق دے دَ دے وجے نه هغه ئې مخکښ ذکر کړو دَ ایمان نه.
او کَانَ لفظ دلیل دے چه ایمان به عمل کولو نه مخکښ وی او مستمر به وی.
وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ په مشقت او محنت کښ تکالیف وی چه په هغے بانسے صبر کول ضروری دی دَ دے وجے نه دَ دے خصلت تخصیص ئې اوکړو او تواصی نورو ته مستلزم ده او پخپله خو بضرور صبر کوی. او صبر نه مراد مضبوط پاتے کیدل دی په دین بانسے او په اعمالو دَ خیر بانسے سرهٔ دَ مصیبتونو نه.
وَتَوَاصَوْا بِالْمَرْحَمَةِ هر کله چه مقصد په سورة کښ احسان کول دی دَ مخلوق سره او هغه پیدا کیږی دَ رحم او ترس کولو سره په کمزورو بانسے دَ دے وجے نه دا خصلت ئې خاص ذکر کړو او دلته هم تواصی مستلزم ده رحم کولو لره پخپله هم.
۱۸ دا بشارت دے په دغه صفتونو بانسے اَلْمَيْمَنَةِ دَ یُمن نه دے په معنیٰ دَ خیر او برکات سره یا دَ یمین نه ماخوذ دے یعنی په ښی لاس کښ به عملنامه ورکیدیشی - یا جنت والا دی ځکه چه هغه یمین طرف دے.

أَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ ﴿۱۹﴾ عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ ﴿۲۰﴾

| دی ناکاره | قسمت والا - | په دوی باندے به اور وی بند کړے شوے د هر طرفه. |
|---|---|---|

۱۹ تا ۲۰ په دے کښې ذکر دے د (شقی) باطل مشقت کوؤنکے چه مبداء د هغې کفر کول دی په آیاتونو د الله تعالیٰ سره او تخویف دے الْمَشْـَٔمَةِ د شؤم نه ماخوذ دے سپیره والی او شرته وئیلے کیږی یا په معنیٰ د شمال سره دے یعنی په کینړ لاس کښې عملنامه ورکیدلے شی یا جهنم والا دی ځکه چه جهنم په شمال طرف ته وی . مُؤْصَدَةٌ چه بند کړے شوے په وی د هر طرف نه یعنی هیڅ سورے او لار د وتلو به نه وی.

فائده :- شیخ القرآن محمد طاهر رحمه الله فرمائیلی دی چه په دے سورت کښې د اصلاح البلد موضوع ده د دے وجے نه هغه امور ئے د ایمان سره ذکر کړل چه د احسان کولو د مخلوق سره تعلق لری یعنی د کلی اصلاح په دے امورو سره کیدلے شی.

ختم شو تفسیر د سورة البلد بحمد الله تعالیٰ و توفیقه

| سُوْرَةُ الشَّمْسِ مكية | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۱۵ | رُكُوْعُهَا ۱ |
|---|---|---|---|

وَالشَّمْسِ وَضُحٰهَا ① وَالْقَمَرِ اِذَا تَلٰىهَا ②

قسم دے په نمر باندے او په رنړا د هغے په وخت د ساخت کښ، او قسم دے په سپوږمئ هر کله چه راشي په تمه پسے

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الشمس

**ربط د دے سورت** د ماقبل سره په څو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ دوه قسمونه د انسانانو ذکر کړل نو په دے سورت کښ د هغوی په مینځ کښ فرق د عاقبت ذکر کوی. دویمه وجه دا ده چه په هغه سورة کښ زجر وو په طغیان کولو نکو د دے امت باندے نو په دے سورت کښ ذکر دے د طاغیانو د مخکنو امتونو نه چه ثمودیان دی. دریمه وجه دا ده چه مخکښ سورت کښ تخویف اخروی وو نو په دے سورت کښ تخویف دنیوی دے۔

**دعوی د دے سورت** تفرقه په مینځ د عاقبت د دوه ډلو کښ ده سره د تخویف دنیوی نه یو ځے ډلے ته، او الله تعالیٰ خپل دوه نومونه ذکر کړیدی الله، رب او اوه صفاتِ فعلیه دی د پاره د معرفت د الله تعالیٰ۔

**خلاصه د دے سورت**۔ اول څلورشواهد ذکر کوی د پاره د دعوے د سورت ترے پورے بیا تخویف دنیوی په واقعه د ثمودیانو سره د هغوی طغیان او تکذیب او عقر ذکر دے او د الله تعالیٰ د طرف نه دمدمه او تسویه ذکر شویده۔

فایده:۔ تخصیص د ثمود د څو وجو نه دے اوله وجه دا ده چه قرآن کریم کښ د نورو قومونو مکذبینو سره د شرک نه نور مظالم ئے ذکر کړے دی او د ثمودیانو ئے سیوا د شرک نه بل ظلم نه دے ذکر کړے نو دوی د نورو په نسبت ادنیٰ (راپاتے په بل مخ)

کافران دی۔ نو هرکله چه ادنیٰ کافران هم الله تعالیٰ هلاک کړیدی نو لوئے کافران (لکه مشرکین مکه) به دَ هغه دَ عذاب نه څه رنګ بچ شی۔ دویمه وجه داده چه ثمود هغه قوم دے چه معجزه ئے طلب کړے وه یعنی ناقة الله او هغه ئے پخپلو سترګو اولیدله او سرهٔ دَ دے نه ئے طغیان اوکړو یعنی سرهٔ دَ علم نه ئے کفر اوکړو لکه چه اشاره ده په دے قول کښ چه اَمَّا ثَمُوْدَ فَهَدَيْنَاهُمْ فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى (سورة حم سجده ۱۷) نو دا رنګ مشرکین عرب هم سرهٔ دَ معجزاتو او دَ علم دَ حق نه په دلیلونو سره کفر اوکړو نو دَ دوی مثال پشان دَ ثمود دے او دا دواړه وجے ابن قیم په بدائع التفسیر کښ ذکر کړیدی او دریمه وجه دا ده چه ثمود دَ ټولو قومونو مکذبینو نه مالدارا و صنعت کاروؤ او مالونه ئے په غیر دَ مصارف شرعیه نه خرچ کول او په دے سورتونو (دَ سورة فجر نه تر واللیل پورے) کښ دا مسئله ذکر کیږی نو دَ دے وجے دَ ثمودیانو مثال ئے خاص ذکر کړو۔

**تفسیر** ۱ تا ۷ دا درے قسمونه دی اول قسم وَالشَّمْسِ دے دَ قران کریم او سنت کښ چه دَ شمس څومره صفات او منافع ذکر کړیدی یا په عقل سلیم او حواسو سره چه دَ دے کوم فائدے ښکاره شویدی په دے لفظ کښ هغه ټولو ته اشاره ده۔ دویم قسم وَضُحٰهَا دے ضحیٰ ریاتے رنړا ته وئیلے کیږی نو وخت دَ ساخت کښ دَ نمر رنړا ډیره شی او ګرمی پکښ کمه وی نو فائده ئے زیاته وی په ضرر باندے او اضافت دَ ضحیٰ ئے ضمیر دَ شمس ته کړے دے دا اضافت دَ مسبب دے سبب ته یعنی دَ نمر دَ اوچت والی سره ضحیٰ پیدا کیږی۔ دَ نمر فائدے ے څو ډیرے وے لیکن دَ ضحا په وخت کښ رنړا زیاته شی او خلق په کسبونو کښ مشغوله شی نو دا ئے لویه فائده ده نو دَ دے وجے نه ئے په ذکر سره خاص کړله۔ دریم قسم وَالْقَمَرِ اِذَا تَلٰهَا مراد دَ دے نه دَ اولے شپے میاشت ده چه هرکله نمر مغرب کښ غائب شی نو دغه وخت سپوږمۍ ښکاره شی او بیا په نمر پسے ندغائبه شی او په دغه وخت کښ دَ دے رنړا هم ډیره کمه وی یا مراد دَ دے نه دَ څوارلسے شپے

وَالنَّهَارِ إِذَا جَلّٰهَا ۝۳ وَالَّيْلِ إِذَا يَغْشٰهَا ۝۴

او قسم دے په ورځ باندے هر کله چه ښکاره کړی نمر لره، او قسم دے په شپه باندے هر کله چه پټ کړی نمر لره،

سپوږمۍ ده چه هر کله نمر مغرب کښ غروب اوکړی نو په دغه وخت سپوږمۍ د مشرق نه راښکاره شي لیکن بیا ئې هم رڼا د نمر نه کمه ده. په سپوږمۍ کښ هم ډیرے فائدے شته لیکن فائدے ئې نه معلومیږی مګر په وخت د تابعدارئ د نمر کښ د دے وجے نه دا وخت ئې خاص کړو په ذکر سره بغیر د حرف عطف نه.

۳-۴ په دے کښ هم دوه قسمونه دی. څلورم قسم وَالنَّهَارِ إِذَا جَلّٰهَا د هَا د ضمیر په مرجع کښ ډیر اقوال دی ۱ راجع دے ظلمت (تیرے) ته ۲ راجع دے زمکے ته ۳ راجع دے دُنیا ته ۴ راجع دے نمر ته، د دے مراجعو ذکر اګرچه نیشته لیکن په عقل سره معلومیږی او ابن جریر څلورم قول غوره کړیدے چه ضمیر راجع دے شمس ته او نسبت د تجلیه د نمر نهار ته په دے وجے سره دے چه په وخت د نهار کښ هغه ښکاره شویدے او په دے قید کښ اشاره ده چه د نهار فائدے هم ډیرے دی لیکن زیاتے فائدے په هغه وخت کښ دی چه نمر ښکاره وی او رڼا ئې ته وی د دے وجے نه د دے وخت تخصیص ئې اوکړو.
پنځم قسم وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشٰهَا دلته هم په ضمیر د هَا کښ اقوال دی چه دُنیا او زمکے ته راجع دے لیکن غوره دا دے چه ضمیر شمس ته راجع دے
سوال. يَغْشٰهَا ئې فعل مضارع راوړو او مخکښ او روستو فعلونه د ماضی ذکر دی د دے څه وجه ده؟
جواب. دوه وجے دی یو وجه رعایت د فواصلو د آیاتونو دے ځکه په اذا غشيها سره فاصله د آیت صحیح نه ده. دویمه وجه دا ښوداموره چه په فعل ماضی سره ذکر کړے شویدی هغه چه په یو ځل سره وشي او هرچه پټول د شپے وی رڼا د نمر لره نو په تدریج سره دی یعنی نمر غائب شي نو سُور والے پاتے شي سوروالے چه غائب شي نو بیا سپین والے باقی وی بیا سپین والے غائب شي نو تیاره توره تیاره شي.

وَالسَّمَآءِ وَمَا بَنٰهَا ۝٥ وَالْاَرْضِ وَمَا طَحٰهَا ۝٦ وَنَفْسٍ وَّمَا سَوّٰهَا ۝٧ فَاَلْهَمَهَا

او قسم دے په اسمان او په هغه چا چه جوړ کړے دے اسمان، او قسم دے په زمکه باندے او په هغه چا چه غوړولے ده دا زمکه، او قسم دے په نفس باندے او په هغه چا چه دا ئے برابر جوړ کړے دے، نو خود لے ئے ده هغه ته

ف ۵ تا ۷ شپږم قسم وَالسَّمَآءِ وَمَا بَنٰهَا اسمان په ډیر منافعو باندے مشتمل دے هغه ټولو ته اشاره ده دَ دے وجے نه وما بناها ئے په عطف سره ذکر کړے دے. اووم قسم وَمَا بَنَاهَا دے مَا مصدریه موصوفه دے نو واو صرف دَ عطف دَ پاره دے یعنی "اسمان سره دَ صفت دَ بنا دَ هغه نه" یا مَا موصوله دے مراد ترینه الله تعالیٰ دے نو واو قسمیه دے او حرف دَ مَا دَ ذوی العقول او غیر ذوی العقول دواړو دَ پاره په طریقه دَ اشتراک سره استعمالیږی او دا دَ سیبویه مذهب دے.

وَالْاَرْضِ وَمَا طَحٰهَا په دے کښې هغه تفصیل دے چه مخکښې جمله کښې تیر شو نو دا اتم او نهم قسم دے. طَحَا نه مراد غوړول سره دَ راویستلو دَ بوټو او خزانو او چینو دی او دَ حَا صرف دَ غوړولو په معنیٰ دے. (فائده) دَ اسمان او دَ زمکے سره دَ جوړوونکی او غوړوونکی ذکر دَ دے دَ پاره او کړو چه دا گمان خوک اونکړی چه اسمان او زمکه قدیم دی لکه دَ بعض ناپوهو دا نظریه ده.

ف ۷ دا لسم قسم دے وَنَفْسٍ نکره دَ تعمیم دَ پاره ده یعنی هر یو نفس، نو ټول انسانان ترینه مراد دی دلته هم اشاره ده صفاتو او کمالاتو دَ کامل انسانانو ته. وَمَا سَوّٰهَا په دے کښې هغه دوه احتمالات دی چه ما بناها کښې ذکر شول او په یو احتمال باندے دا یوولسم قسم دے. او دَ تسویه نه مراد ټول اطوار دَ پیدائش سره دَ شکل او قد و قامت دَ انسان نه دی. دلته هم دا جمله دَ پاره دَ تردید دَ هغے نظریئے ده چه انسان په خپل پیدائش کښې پیدا کوونکی ته حاجت نه لری لکه دَ بعض کمیونستو دا عقیده ده نو په دے لفظ کښې په هغوی باندے صریح رد دے.

فُجُوْرَهَا وَتَقْوٰىهَا ﴿٨﴾ قَدْ اَفْلَحَ مَنْ

لار دَ بدیٔ او دَ تقوی ، یقیناً کامیاب دے هغه څوک

زَكّٰىهَا ﴿٩﴾ وَقَدْ خَابَ مَنْ دَسّٰىهَا ﴿١٠﴾

چه پاک ئې کړو ځان خپل۔ او یقیناً ناکام دے هغه څوک چه ګډ وډ ئې کړو ځان خپل ،

۸ دا معطوف دے په سَوّٰهَا باندے نو دلالت کوی چه مَا موصوله کیدل غوره دی او مراد دَ الهام نه تقدیر دَ فجور او تقویٰ دے لکه چه حدیث صحیح دَ مسلم او احمد کښ ذکر دی بل قول دا دے چه الهام په معنیٰ دَ بیان او دَ تفصیل کولو دے او الهام په لغت کښ خیر او شر دواړو کښ استعمالیږی او په اصطلاح خاص کښ صرف په خیر کښ استعمالیږی۔ او سلف صالحینو وئیلے دی چه دا ایت دلیل دے چه خالق دَ فجور او دَ تقویٰ او دَ خیر او شر الله تعالیٰ دے په دے کښ رد دے په قدریه فرقه باندے چه دَ فجور او تقویٰ خالق بنده ګنړی۔ او په دے ایت کښ دَ انسانانو دوه ډلو ته اشاره ده چه په هغوی کښ هم ښکاره فرق دے۔

۹ دا جواب قسم دے او دعویٰ دَ سورت ده چه فرق دے په عاقبت دَ دواړو قسمونو انسانانو کښ۔ مَنْ زَكّٰىهَا ضمیر دَ زکّٰی او دَسّٰی کښ دوه قولونه دی اول قول دا چه عبد ته راجع دی یعنی بنده پاک کړو خپل نفس لره په هغه عقیده او عملونو سره چه سورة بلد کښ ذکر شول، او بنده برباد کړو خپل نفس لره په هغه عقیده او اعمالو سره چه په سورة الیل کښ ذکر شول۔ دویم قول دا دے چه ضمیرونه الله تعالیٰ ته راجع دی یعنی الله پاک نفس دَ انسان لره پاک کړو په الهام دَ تقوی سره، او الله تعالیٰ برباد کړو نفس دَ انسان لره په الهام دَ فجور سره۔ زَكّٰىهَا دَ زکوٰة نه ماخوذ دے په اصل کښ زیاتوالی او اوچت والی او پاک والی ته وئیلے شی نو په نفس کښ چه توحید او عمل صالح راشی نو اوچت شی او پاک شی دَ شرک او بدعاتو او رذائلو نه۔ (پاتے په بل مخ)

دَ سَّاهَا لغت والا وائی چه دا په اصل کښ دَ سَّسَّهَا دے او دَ سْ پو ځيز په بل ځيز کښ پټول په دا سے طريقه چه په هغے کښ ورک شی.
او مراد دلته ګمراه کيدل يربادېدل دی او په ګناهونو کښ ورداخليدل دی او يو قول دا دے چه ځان په جماعت دَ صالحينو کښ داخل کړی دَ هغوی سره تشبيه کوی او حال دا چه په عمل او عقيده کښ دَ هغوی نه مخالف وی. (فائده) دَ قسمونو او جواب قسم مناسبت په څو طريقو سره دے اوله طريقه دا ده چه دَ دغه ځيزونو او دَ هغے دَ حالاتو صفاتو پيدا کوونکے الله تعالیٰ دے نو دا دليلونه دی په توحيد دَ الله تعالیٰ باندے انفسی او آفاقی،علوی،سفلی،وسطی. نو څوک چه ځان په توحيد سره پاک کړی نو دَ هغه دَ پاره فلاح ده او چه توحيد قبول نه کړی نو دَ هغه دَ پاره نا اميدی ده. دوېمه طريقه دا ده لکه څه رنګ چه فرق دے په مينځ دَ نمر او سپوږمۍ کښ او ورځ او شپه کښ او آسمان او زمکه کښ او دَ نفسونو په تسويه دَ شکلونو کښ څوک په يو شکل وی څوک په بل شکل وی او متقی او فاجر انسانانو کښ، نو دا رنګ دَ مؤحد او دَ مشرک په جزا او عاقبت کښ هم فرق دے او دَ دے ځيزونو په تخصيص کښ دَ فرق قسمونو ته اشاره ده ځکه چه موجودات په دوه قسمه دی يو نفسونو والا (مکلف بندګان) دويم غير دَ نفوسونه، په نفسونو کښ يا محسوسی فرق دے لکه چه په صورتونو او شکلونو کښ فرق وی يا معقولی فرق دے لکه دَ فاجر او متقی فرق دے او په غير دَ نفوسونو کښ فرق دے په غير دَ څه اشتراک نه لکه چه دَ آسمان او زمکے فرق په ډيرو وجوسره دے يا فرق دے سره دَ اشتراک نه په بعض صفاتو کښ نو هغه صفت رنړا ده لکه فرق دَ نمر او سپوږمۍ چه په رنړا کښ شريک وی ليکن دَ رنړا په کمی او زيا توالی کښ فرق دے يا هغه صفت توقيت (وخت ټاکل) لکه شپه او ورځ، دوی په وخت کيدلو کښ شريک دی يعنی دواړه يو وخت او زمانه ده ليکن په صفت دَ رنړا او تيارے کښ فرق دے نو دا فرق پنځمه قسمه دے اشاره ده چه په

كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِطَغْوٰىهَا ﴿١١﴾ إِذِ انْبَعَثَ

دَ دروغو نسبت اوکړو ثمودیانو په سبب دَ سرکشئ خپلے ، کله چه را اوچت شو

أَشْقٰىهَا ﴿١٢﴾ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ

بد بخت دَ هغوی ، نو اُوئیل دوی ته رسول دَ الله تعالیٰ

نَاقَةَ اللّٰهِ وَسُقْيٰهَا ﴿١٣﴾ فَكَذَّبُوْهُ

(لحاظ اوکړئ) دَ اوښے دَ الله تعالیٰ او دَ وار (نمبر) دَ اوبو دَ هغے ۔ نو دروغژن اُوئیل هغه ته

مفلحینو او خائبینو کښں په دے بولو طریقو سره فرق موجود دے او په دے فرق ذکر کولو کښں ترغیب دے صفت دَ فلاح ته او تحذیر دے دَ صفت دَ خیبوبت ته۔

سلا سلا په دے کښں تخویف دنیوی دے په مثال دَ ثمود سره متعلق دے دَ قَدْ خَابَ مَنْ دَسّٰهَا سره۔

بِطَغْوٰهَا بَاءِ سببیه ده طغوٰی صفت دے او په معنیٰ دَ طغیان سره دے او طغیان ئے دَ دے وجے ته ذکر کړو چه دوی سره دَ علم نه کفر کړے وؤ او دَ تخصیص دَ ذکرِ ثمود وجے مخکښں ذکر کړے شوی دی۔

إِذِ انْبَعَثَ دا دلیل دَ تکذیب دے او دا ئے لوئے جرم دے چه کومه معجزه چه دوی طلب کړے وه دَ هغے توهین ئے اوکړو۔

أَشْقٰهَا سورة قمر سلا کښں ذکر شوے دے او هغه ته قدار بن سالف وئیلے کیدلو۔ او احتمال شته چه ټول قوم ترینه مراد وی او مفرد په معنیٰ دَ جنس سره دے۔

سلا رَسُوْلُ اللّٰهِ نه مراد صالح علیه السلام دے نَاقَةَ اللّٰهِ فعل محذوف دَ یعنی إِحْذَرُوْا (ځان بچ کړئ) یا رَاعُوْا (لحاظ اوکړئ)۔

او نَاقَةَ اللّٰهِ اضافت دَ پاره دَ تشریف دے۔ وَسُقْيٰهَا دَ دے ذکر سورة شعراء سلاا کښں شوے دے۔

فَعَقَرُوهَا فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ رَبُّهُم بِذَنبِهِمْ

او پکړے یې کړه هغه اوښه، نو تباهي راوستله په دوی باندے رب د دوی په سبب د ګناه د دوی

فَسَوَّاهَا ﴿١٤﴾ وَلَا يَخَافُ عُقْبَاهَا ﴿١٥﴾

نو برابر یې کړه هغه په نښولو باندے او نه یریږي لو الله تعالیٰ د انجام د دے کار نه۔

۱۴-۱۵ مخکښې تکذیب عام مراد وو او دلته تکذیب د دے قول مراد دے چه نَاقَةُ اللّٰهِ الخ۔ فَعَقَرُوهَا عقر یو کس کړے وو په دلیل د سورة قمر ۲۹ سره او نسبت یې ټول قوم ته اوشو ځکه چه ټول و رباندے رضا وو او د هغه تابع وو۔ فَدَمْدَمَ دمدمه په اصل کښې عذاب عام کول او بار بار راوستل او هلاکول او برابره ول دی دلته مراد هلاکت راوستل دی په ټول قوم باندے۔ بِذَنبِهِمْ مفرد دے مراد ترینه جنس ګناهونه دی طغیان، تکذیب، عقر یا مراد ترینه ګناه د تکذیب دے چه ټول پکښې شریک وو۔ فَسَوَّاهَا ضمیر د هَا راجع دے زمکے ته یا دمدمه (مصدر) ته یا ټول امت د ثمود ته راجع دے یعنی لوئے واړه نارینه زنانه ټول هلاک شول وَلَا يَخَافُ عُقْبَاهَا په دے کښې اشاره ده غلبے او قدرت د الله تعالیٰ ته چه د عذاب د تاوان نه نهٔ ویریږي وَلَا يَخَافُ ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دے۔ عُقْبَاهَا هَا ضمیر دمدمه ته راجع دے او عقبیٰ نه مراد تاوان دے، یعنی الله تعالیٰ دا کار په حق سره اوکړو او څوک چه چا لره سزا په حقه سره ورکړي نو د هغې د تاوان نه نهٔ ویریږي۔ یا ضمیر د لَا يَخَافُ رسول ته راجع دے یا اشقا ته راجع دے۔

ختم شو تفسیر د سورة الشمس په فضل د الله تعالیٰ سره والحمد لله تعالیٰ

| سُوْرَةُ اللَّيْل مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۲۱ ركوعُهَا ۱ |
|---|---|---|

وَالَّيْلِ إِذَا يَغْشٰى ﴿۱﴾ وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلّٰى ﴿۲﴾

قسم دے په شپه باندے کله چه را او غوړیږی، او قسم دے په ورځ باندے کله چه روښانه شی،

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة اللیـل او سورة واللیـل ورته هم وئیلے شی

ربط دَ دے سورت دَ مخکښ سره په څو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ تفرقه دَ عاقبت دَ فریقینو ذکر شوه نو په دے سورت کښ دَ هغې علت ذکر کوی چه هغه تفرقه دَ عقیدے او دَ عملونو ده. دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ تخویف دنیوی ذکر شو نو په دے سورت کښ هغه اعمال ذکر کوی چه په هغې سره امن حاصلیږی دَ عذاب الهی نه. دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ تخویف وُو هغه قوم ته چه اموال ئے په غیر شرعی مصارفو کښ خرچ کول نو په دے سورت کښ ذکر کوی حال دَ هغه چا چه په شرعی مصارفو کښ خرچ کوی.

دعویٰ دَ سورت تفرقه ده په عقیده او اعمالو کښ په سړکښ او ذکر دَ یو نوم دَ الله تعالیٰ دے چه رب دے او پنځه فعلی صفتونه پکښ ذکر دی.

خلاصه دَ سورت. اول دوه شاهدان ذکر کوی په دعویٰ دَ سورت باندے تر ۴ پورے بیا تفصیل دَ دغه فرق دے احوال دَ یو فریق تر ۷ پورے او احوال دَ دویم فریق تر ۱۱ پورے بیا ترغیب دَے په دوه ایتونو ۱۲ ۱۳ کښ. بیا تخویف اخروی دے یوے ډلے ته په ذکر دَ درے صفتونو دَ هغوی تر ۱۶ پورے او بشارت دے بلے ډلے ته په ذکر دَ پنځه حالاتو سره تر ۲۱ پورے.

تفسیر ۱ ۲ دا دوه قسمونه دی إِذَا يَغْشٰى مفعول (پاټے په بل مخ)

وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰٓ ﴿٣﴾ إِنَّ

او قسم دے په هغه ذات چه پیدا کړے دی نارینه او زنانه ، یقیناً

سَعْيَكُمْ لَشَتَّىٰ ﴿٤﴾ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَىٰ

عملونه (کوششونه) ستاسو قسما قسم دی . نو هغه څوک چه ورکړے حق

ئے محذوف دے دَ تعمیم دَ پاره او مراد ترینه ټول دَ څیزونو دی په تیرے سره مبداء دَ سکون دَ هر څیز خپل ځائے ته او دَ پاره دَ راحت او خوب کولو او دَ تهجد کولو او دَ نورو ډیرو فوائدو دَ پاره .

إِذَا تَجَلَّىٰ رنړا دَ ورځے سبب دے دَ تیارو دَ زوال دَ پاره او دَ پاره دَ حرکت کولو په زمکه کښ دَ طلب دَ رزق دَ پاره او دَ لیدلو دَ دلیلونو دَ قدرت او دَ توحید دَ الله تعالیٰ دَ پاره . نو معلومه شوه چه دَ شپے او ورځ په اثارو او فائدو کښ ډیر فرق دے او دا نعمتونه دَ الله تعالیٰ هم دی او دلیلونه دَ توحید دَ هغه هم دی .

۳ـ دا دریم قسم دے او مَا په معنیٰ دَ من سره دے لکه چه په تفسیر سورة الشمس کښ ذکر شول نو دا قسم دے دَ الله تعالیٰ په خپل ذات یا ئے په صفت دَ خلق سره یا مَا مصدریه دے او تخصیص دَ خلق دَ ذکر او انثیٰ دَ دے وجے نه کړے دے چه دَ دوی په پیدائش او صفتونو کښ ډیر فرق دے نو هغے فرق ته اشاره ده او مراد دَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ نه ټول مذکر او مؤنث دی که دَ انسانانو نه دی او که دَ نورو حیواناتو نه دی او دَ دوی په احوالو او صفاتو کښ فرق هر عقل والا ته محسوس دے . په اول دوارو ایاتونو کښ اوقات دَ فائدے ذکر شول او په دے ایت کښ ئے فائده اخستونکی ذکر کړل .

۴ـ دا جواب دے . سَعْيَ خاص دَ عمل نه ځکه سعی هغه عمل دے چه دَ هغے اهتمام کیدے شی او په هغے کښ حتی الامکان کوشش کیدے شی . لَشَتَّىٰ جمع دَ شتیت ده مختلف دَ یو بل نه چه یو عمل دَ خیر کوی نو بل عمل دَ شر کوی یو مطیع دے بل عاصی دے یا یو دَ دُنیا دَ پاره سعی کوی نو بل دَ اخرت او دَ دین دَ پاره او دا رنګ اختلاف دے

وَاتَّقٰى ﴿٥﴾ وَصَدَّقَ بِالْحُسْنٰى ﴿٦﴾ فَسَنُيَسِّرُهٗ

او تقوى ئې اوکړه، او رشتيا ئې اوګڼله ښائسته خبره، نو ځامخا اسانه به کړو هغه ته

په جزا او سزا کښې هم۔

فائده:۔ مناسبت دَ قسمونو دَ جواب قسم سره دا دے چه په اوقاتو دَ سعي کښې ښکاره اختلاف دے چه شپه او ورځ ده دَ دے په صفاتو او منافعو کښې هم ډیر اختلاف دے او په ساعي کښې هم اختلاف دے یعنی مذکر او مؤنث کښې خو ښکاره اختلاف دے دَ صفاتو او دَ منافعو او دا اختلافاتِ حسیه او عقلیه دواړه دی نو دا شهادت کوی چه دَ انسانانو په سعي کښې هم اختلاف شته دے یعنی په صورت دَ اعمالو کښې اختلاف شته دے او په جزا او سزا کښې هم اختلاف شته دے او او په دے کښې رد دے په هغه چا چه مؤمنان او کافران، اطاعت کوونکی او عصیان کوونکی ټول یو شان ګڼړی لکه په سورة جاثیه ۲۱ کښې دی او دَ دے وجے نه دَ قیامت او دَ جنت او جهنم نه انکار کوی۔ او روستو آیاتونو کښې دَ شقی تفسیر موجود دے۔

۵-۶ په دے کښې بیان دَ سعي دَ خیر دے او دَ هغے درے اسباب ئې ذکر کړیدی۔

اول، أَعْطٰى مفعول ئې حذف کړے دے دَ تعمیم دَ پاره یعنی اعطاء دَ ایمان او دَ طاعت او اخلاص او توبه او شکر او احسان په مال ورکولو او بدن او نیت سره یعنی نفس او بدن دَ دهٔ پوره مطیع دے۔

دویم، تقوٰی ترک دَ جمیع منهیاتو او مشتبهاتو ته شامل ده دَ شرک دَ ټولو اقسامو نه او دَ بدعاتو او فسق و فجور نه ځان ساتل پکښې داخل دی۔

دریم، صَدَّقَ بِالْحُسْنٰى دا لفظ شامل دے کلمهٔ دَ توحید او جنت او ثواب او اجر او ټول احکام او اخبار شرعیه ته ټول پکښې داخل دی یعنی مدار دَ دین په درے خبرو بانـدے دے فعل دَ مامورا تو او ترک دَ محظوراتو او تصدیق دَ شرعی اخبارا تو۔

لِلْيُسْرٰى ۝۷ وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنٰى ۝۸

لار دَ اسانئ - او هغه څوک چه شومتیا ئې اوکړه او ځان ئې بې پروا کړو

وَكَذَّبَ بِالْحُسْنٰى ۝۹ فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلْعُسْرٰى ۝۱۰

او تکذیب ئې اوکړو دَ ښائسته خبرے ، نو زر دان به کړو هغه لره په لار دَ سختئ

وَمَا يُغْنِي عَنْهُ مَالُهٗٓ إِذَا تَرَدّٰى ۝۱۱

او فائده به ورنکړی دهٔ ته مال دَ دهٔ کله چه اورغړی -

ے تیسیر دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه توفیق دَ علم او عمل ورکول دی -
الیُسْرٰی نه مراد خصلتونه دَ خیر دی یا لار دَ جنت ده او په حدیث صحیح کښں راغلی دی (دَ هغې یو جمله داده) "چه څوک دَ اهلِ سعادت نه وی نو هغه ته عمل دَ سعادت آسان کړیشی"۔
ث س۹ دلته ئې هم درے اسباب ذکر کړے دی چه مخکښو دریو سره مقابل دی اول: بَخِلَ یعنی هیڅ حق نه ادا کوی حق دَ الله تعالیٰ او حق دَ بندګانو ، بخل په نفس سره . بخل په بدن سره . بخل په مال سره دے ټولو ته عام دے .
دویم، وَاسْتَغْنٰی صیغه دَ باب استفعال کښں اشاره ده چه غنی نه دے لیکن دعوی دَ غِنا کوی او دَ الله تعالیٰ او دَ انسانانو نه ئې ځان بے پرواه کړے وی او دا بے پرواهی سبب دے دَ پاره دَ ارتکاب دَ محرماتو او مشتبهاتو دَ دے وجے نه په مقابل دَ تقوٰی کښں ذکر شو .
دریم، کَذَّبَ بِالْحُسْنٰی دَ توحید او دَ طریقه شرعیه او دَ اعمالو دَ خیر نه انکار کوی.
ث دلته تیسیر نه مراد آسانول دَ اسبابو دَ شر او منع کول دَ اسبابو دَ خیر نه دی او دِ دے ته خذلان وئیلے کیږی . لِلْعُسْرٰی نه مراد هرهغه خصلت اولار چه عاقبت ئې سخت دے او رسوؤنکے دے جهنم ته او دا رنګ په حدیث صحیح کښں وارد دی "چه څوک دَ اهلِ شقاء نه وی نو آسانولے شی هغه ته عمل دَ شقاء"۔
س۱۱ دا عطف دے په فسنیسرهٔ باندے او دا مخکښں خصلتونه دَ شر اکثر په مالدارو او سرمایه دارو خلقو کښں وی او هغوی مال سبب دَ نجات ګنړی نو دَ هغوی رد ئې په دے آیت کښں اوکړو . تَرَدّٰی تَرَدّٰی

إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَىٰ ﴿١٢﴾ وَإِنَّ لَنَا لَلْآخِرَةَ

یقیناً زمونږ په ذمه باندے خاص هدایت دے. او یقیناً مونږ لره اختیار د آخرت

وَالْأُولَىٰ ﴿١٣﴾ فَأَنذَرْتُكُمْ نَارًا تَلَظَّىٰ ﴿١٤﴾

او د دُنیا دے. نو یره درکوم تاسو ته د اُور نه چه لمبے وهی.

لَا يَصْلَاهَا إِلَّا الْأَشْقَى ﴿١٥﴾ الَّذِي كَذَّبَ

نه به داخلیږی هغے ته مگر بد بخت سړے، هغه کس چه دروغژن ئے گنړلے وی (حق لره)

په اصل کښ د بره نه راغښتلو ته وئیلے کیږی او مراد ترینه هلاکت دے په عذاب دنیوی یا عذاب اخروی سره.

۱۲ ۱۳ دا علت دے د ماقبل مضمون د پاره یعنی تیر شوے تفصیل د الله تعالیٰ د طرف نه بیان د خیر او شر دے او په دے کښ ترغیب دے قرآن ته ځکه دا بیان د الله تعالیٰ په قرآن کښ دے. لَلْهُدَىٰ مراد د دے نه نفس بیان دے نو خیر او شر دواړو ته شامل دے یا الهدی مقابل د الضلال دے او مقابل ئے حذف کړے دے.

وَإِنَّ لَنَا لَلْآخِرَةَ وَالْأُولَىٰ آخرت نه مراد الدار الآخرة یعنی جنت دے نو مطلب دا دے چه جنت ورکول او دنیا ورکول دواړه د الله تعالیٰ په اختیار کښ دی نو طلب د دے د الله تعالیٰ نه پکار دے او لاره د هغے په قرآن کریم کښ ذکر ده نو څوک چه قرآن پریږدی او په بل ځائے کښ جنت او دنیا غواړی نو هغه بے وقوف دے لکه په سورة نساء ۱۳۳ کښ ذکر شویدی. یا مراد د آخرت نه ورځ د آخرت ده یعنی آخرة او دُنیا د دواړو تصرف او اختیار د الله تعالیٰ سره دے نو هدایت هم د هغه په اختیار کښ دے.

۱۴ ۱۵ ۱۶ دا تخویف اخروی دے دویم فریق لره او مراد په متکلم سره په فَأَنذَرْتُكُمْ کښ الله تعالیٰ دے، یا رسول صلی الله علیه وسلم دے او فعل ماضی پخپله معنیٰ ده اشاره ده هغه تخویفاتو ته چه د دے سورت نه مخکښ سورتونو کښ ذکر دی یا ماضی په معنیٰ د حال سره ده. نَارًا نکره د پاره د تعظیم شان ده راپاتے په بل مخ)

وَتَوَلّٰى ﴿۱۶﴾ وَسَيُجَنَّبُهَا الْاَتْقَى ﴿۱۷﴾ الَّذِىْ

او مخ يې اړولى دى. او خامخا بچ به اوسا تلى شى دَ هغې نه ډير پرهيزګار (متقى)، هغه كس

يعنى لويې اور چه دَ هر طرف نه به يې احاطه كړې وى.

اِلَّا الْاَشْقَى اسم تفضيل دلالت كوى چه مراد دَ دے نه كافر او مشرك دے او دَ دے نه لا ندے بيا شقى دے چه هغه مؤمن ګنهګار دے يا اشقى په معنى دَ شقى سره دے او مراد ترينه كافر دے.

كَذَّبَ وَتَوَلّٰى تكذيب په زړه سره دے او تولّى په عمل كولو سره ده.

سوال:- دَ لَا يصلاها الا الاشقى دَ حصر نه معلومه شوه چه مؤمن ګنهګار به جهنم ته نه داخليږى او دا دَ مرجيه مسلك دے او دا خو دَ تورو نصوصو نه خلاف مسلک دے او باطل دے؟

جواب:- په دوه طريقو سره دے اوله طريقه دا ده چه په اور دَ جهنم كښې منازل او درجات مختلفه دى هر منزل په جدا جدا خلقو پورے خاص دے لكه سورة حجر ۴۴ كښې معلومه شويده نو دلته هم نَارًا تَلَظّٰى يو خاص منزل دے دَ منازلو دَ اور نه هغه خاص دے په الاشقى (كافر) پورے. او مؤمن ګنهګار چه الله تعالىٰ اوغواړى نو دَ جهنم په بل منزل كښې به يې داخل كړى. دويمه طريقه دا ده چه لفظ الاتقى (چه روستو ذكر كوى) دليل دے چه په دے آيا تونو كښې دَ اعلىٰ شقى او اعلىٰ متقى مقابله ذكر كوى نو اعلىٰ شقى يې حصر كړے دے په نارا تلظى كښې او اعلىٰ متقى يې خاص كړيدے دَ پاره دَ جهنم نه دَ بچ كيدلو او مؤمن ګنهګار چه شقى دے من وجه او متقى دے من وجه دَ هغه حال يې نه دے ذكر كړے دَ پاره دَ رجا او تخويف دواړو.

۱۷-۱۸ په دے كښې بشارت دے په پنځه اوصافو سره. په دے دواړه آيا تونو كښې يې دوه اوصاف ذكر كړے دى او سَيُجَنَّبُهَا صيغه دَ مجهول كښې اشاره ده چه دَ جهنم نه بچ كيدل په فضل دَ الله تعالىٰ سره دى. الْاَتْقَى صيغه دَ اسم تفضيل دلالت كوى چه دلته اعلىٰ درجه مؤمن مراد دے او دليل دے چه په ايمان كښې زيا تے

يُؤْتِيْ مَالَهٗ يَتَزَكّٰى ﴿۱۸﴾ وَمَا لِاَحَدٍ عِنْدَهٗ

چه ورکوی مال خپل دَ دے دَ پاره چه ځان پاک کړی۔ او نیشته هیچا لره دَ هغه سره

مِنْ نِّعْمَةٍ تُجْزٰۤى ﴿۱۹﴾ اِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ

څه احسان چه بدله یٔے ورکړی ، مګر لټول دَ مخ

رَبِّهِ الْاَعْلٰى ﴿۲۰﴾ وَلَسَوْفَ يَرْضٰى ﴿۲۱﴾

دَ رب خپل چه اوچت دے۔ او زر ده چه خوشحاله به شی۔

اوکمے راځی۔ اَلَّذِیْ یُؤْتِیْ مَالَهٗ مراد ترینه ورکول دَ مال دی په مصارفو دَ خیر کښ په قرینه دَ مابعد سره چه یَتَزَکّٰی دے ځکه چه تزکیه بغیر دَ مصرف خیر نه حاصلیږی۔ او مراد دَ تزکی نه پاکی حاصلول دی دَ محبت دَ مال نه او ځان پخول دی په عقیده دَ توحید باندے او یَتَزَکّٰی بدل دے دَ یُؤْتِیْ نه یا حال دے دَ فاعل دَ هغه نه.

۱۹ تر ۲۱ په دے کښ نور درے اوصاف ذکر کوی۔ وَمَا لِاَحَدٍ عِنْدَهٗ الخ یعنی بعض خلق چه تصدّق په چا باندے دَ دے وجے کوی چه هغه ورسره مخکښ احسان کړے وی نو دَ هغه بدل خلاصوی لکه چه پدے دور کښ اکثر دعوتونه دَ طعام په بدل باندے بنا دی (استغفرالله) نو دغه اتقیٰ دَ دے وصف نه پخ دے بلکه بے بدله تصدق کوی۔ اِلَّا ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِ الْاَعْلٰى دا استثناء منقطع ده او وجه په خپله معنی باندے دے په غیر دَ تشبیه او تمثیل نه او دا رنګ په بندګانو کښ په عرف کښ وئیلے شی چه دا کار ما دَ فلانی په مخ باندے اوکړو یعنی دَ هغه لحاظ م اوکړو یا دلته مضاف محذوف دے یعنی رویهٔ وجه دَ دیدار دَ مخ دَ طلب کولو دَ پاره۔ وَلَسَوْفَ یَرْضٰی دا اجمالی بشارت دے دنیوی او اخروی بے شماره نعمتونو ته شامل دے۔ او مفسرینو په اتفاق سره لیکلی دی چه دا ایاتونه په پاره دَ ابوبکر صدیق رضی الله عنه کښ نازل شویدی دَ دے وجے نه هغه افضل دے په ټولو امتیانو کښ لیکن اعتبار عموم دَ الفاظو ته وی هغه پورے دا بشارت خاص نه دے۔

الحمدلله ختم شو تفسیر دَ سورة اللیل په فضل دَ الله تعالیٰ سره

| آیاتها ۱۱ رکوعها ۱ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | سُوۡرَۃُ الضُّحٰی مَکِّیَّۃٌ |
| --- | --- | --- |

وَالضُّحٰی ﴿۱﴾ وَالَّیۡلِ اِذَا سَجٰی ﴿۲﴾ مَا وَدَّعَكَ

| قسم دے په وخت د ساخت باندے، | او په شپه باندے کله چه او خوریږی، | نه دے پریخودلے تا لره |
| --- | --- | --- |

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

## سورة الضحیٰ

**ربط** دَ دے سورت دَ مخکس سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ تسلی وه دَ امتی دَ پاره نو په دے سورت کښ تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم دَ پاره. دویمه وجه تقابل او تضاد دے چه هغه سورت کښے په اللیل سره شورو کړے وو نو دا سورت ئے په الضحیٰ سره شورو کړو چه دَ شپے او دَ ورځے په مینځ کښ مقابله ده. دریمه وجه په هغه سورت کښ الاتقیٰ ذکر کړو نو په دے سورت کښ دَ سید الاتقیاء صلی الله علیه وسلم شان ذکر کوی.

**دعویٰ دَ سورت.** تسلی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په درے ځیزونو سره ۳ ۔ ۵ کښ او دفع دَ اعتراض دَ مشرکانو ده او دَ الله تعالیٰ یو نوم (رب) ئے ذکر کړے دے او پنځه صفات فعلیه ثبوتیه او دوه سلبیه ئے ذکر کړی دی.

**خلاصه دَ سورت دا ده.** دوه شهادتونه دی په ۱ ۔ ۲ کښ بیا دعویٰ دَ سورت ده په درے عنواناتو سره په ۳ ۔ ۴ ۔ ۵ کښ بیا ذکر دَ حالاتو دے (چه انعامات الهیه دی) مخکښ دَ نبوت نه په ۶ ۔ ۷ ۔ ۸ کښ او بیا دَ درے آداب حسنه ذکر دے په ۹ ۔ ۱۰ ۔ ۱۱ کښ او دا آداب دَ پاره دَ هر دعوت کوونکی دی۔ (فائده) دَ دے سورت نه تر سورة عادیات پورے په اتو سورتونو کښ ذکر دَ څلورو اصولو دَ ایمان دے. صداقت دَ رسول صلی الله علیه وسلم په سورة الضحیٰ او انشراح او سورة بینه کښ او توحید په سورة التین کښ او عظمت دَ قرآن په سورة علق او سورة قدر کښ او اثبات دَ قیامت په سورة زلزال کښ دے.

رَبُّكَ وَمَا قَلٰى ﴿۳﴾ وَلَلْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ

| رب ستا | او نه یې دشمني کړې ده. او | خامخا آخرت | غوره دے | تا لره |
|---|---|---|---|---|

تفسیر: ۱ ۲ په دے کښې دوه قسمونه دي اول په وخت دَ ضحیٰ باندے چه دَ ساخت وخت دے یا ترینه مراد ټوله ورځ ده او دویم قسم په شپه باندے دے او په سورت کښې تسلي ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته لکه چه بخاریؒ مسلمؒ او احمدؒ حدیث راوړے دے چه جبرئیل علیه السلام څه ورځے حصار شو دَ راتللو نه نو مشرکانو اوئیل چه محمد صلی الله علیه وسلم لره خپل رب پریخودلو (نو هغه ډیرخفه وو) نو دا سورت نازل شو. اِذَا سَجٰی په معنیٰ دَ سکون دے مراد دا دے چه پوره شپه شي او هر خیز لره په تیارے سره پټ کړي. نو ضُحیٰ هم دَ ورځے دَ پوره رڼا وخت دے او اذا سجیٰ دَ شپے دَ پوره تیارے وخت ته اشاره ده او دَ دے دواړو په مینځ کښې پوره مقابله ده او دا دواړه دَ برکاتو او دَ فائدو اوقات دي دَ هر یو جدا جدا فائدے دي.

۳ دا جواب قسم دے او په دے کښې تسلي ده رسول صلی الله علیه وسلم ته. وَدَّعَكَ تودیع رخصت ورکول او پریخودل دي چه مستلزم وي جدا ئي لره که دَ دوست سره وي او که دشمن سره وي. وَمَا قَلٰی دا خاص دے په دشمن پورے یعنې په هیڅ پریخودلو سره یې نه دے پریخے نه دا سے لکه دوست چه دوست نه جدا کیږي او نه دا سے لکه دُشمن چه دشمن پریږدي. او مناسبت دَ قسم او دَ جواب قسم دا دے لکه چه کله رڼا او ورځ وي او کله تیاره او شپه وي نو دا رنګ به کله جبرئیل وحي راوړي او کله به نه راوړي او چه په رڼا او تیاره کښې دَ الله تعالیٰ بے شماره حکمتونه دي نو کله په وحي حصارېدلو او کله راتللو کښې هم حکمتونه وي. (فائده) دا دَ هر داعي دَ حق دَ پاره تسلي ده یعنې کله به غلبه وي په دشمن او کله به کمزوري وي. کله به بیماري وي او کله به روغتیا وي. کله به مصیبت، تکلیف او فقیري وي او کله به راحت خوشحالي مالداري وي دا حالات بدلیدل دلیل دَ بدبختۍ نه دي.

مِنَ الْاُوْلٰى ﴿۴﴾ وَلَسَوْفَ يُعْطِيْكَ رَبُّكَ

دَ دُنیا نه۔ او خامخا زر ده چه در به کړی تا ته رب ستا

فَتَرْضٰى ﴿۵﴾ اَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيْمًا فَاٰوٰى ﴿۶﴾

نو خوشحاله به شے۔ آیا نه یې ته بیا موندلے یتیم نو ځائے یې درکړو۔

ک دا دویم جواب قسم او تسلی ده یعنی اخرت او دُنیا دواړو کښې ستا دَپاره عزت او شرافت شته دے لیکن دَ اخرت اکرامات او انعامات دَ دُنیا دَ هغې نه غوره او ډیر او همیشه دی۔ او احتمال دے چه مراد دَ اخرت نه روستو حالت دَ ژوند دنیوی وی او اولے نه مراد اول حالت وی او غوره والے په اعتبار دَ غلبے دَ اسلام او دَ مؤمنانو دَ ډیر والی دے۔

لَکَ او دا تخصیص دلالت کوی چه دا خاص ده په رسول الله صلی الله علیه وسلم پورے دَ نور مخلوق دَ پاره دا وعده نیشته په طریقه دَ یقین سره۔

ھ دا دریم جواب قسم او تسلی ده يُعْطِيْكَ رَبُّكَ مفعول ثانی محذوف دے دَ تعمیم دَ پاره او مراد ترینه اعطاء دَ نعمتونو ده په اخرت کښې چه په هغې کښې مقام شفاعت هم داخل دے چه دَ هغې په سبب به ټول امتیان (اجابت والا) جنت ته داخل شی نو نبی صلی الله علیه وسلم به پوره رضا شی یا مراد دَ دے نه اعطاء دَ نعمتونو ده په دنیا کښې یعنی فتح، نصرت، دَ ډیرو خلقو په اسلام کښې داخلیدل او وعدے دَ خزانو دَ کسرٰی او قیصر او غلبه دَ دین اسلام په ټول دینونو باندے۔ لَسَوْفَ لَام دَ پاره دَ تاکید او سوف دَ پاره دَ تاخیر دے یعنی دا اعطاء اگرچه روستو ده لیکن ضرور به وی خلاف دَ دے وعدے نشی کیدلے۔ او دا وعدے الله تعالی دَ خپل نبی سره رشتنی کړیدی۔

لا په دے کښې نعمتونه په نبی باندے قبل النبوة ذکر کوی دَ تاکید دَ تسلی دَ پاره یعنی الله تعالی په تا باندے قبل دَ نبوت نه دا سے نعمتونه کړیدی چه دَ نبوت دَ پاره یې تیار کړے یې نو دا دلیل دے

وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدٰی ۞ وَوَجَدَكَ

او موندلے ئې ته ناخبره نو پوهه ئې کړے ، او او موندلے ئې ته

چه تا هسے نه پرېږدی او نه درسره دُشمنی کوی . يَتِيمًا يتيم هغه څوك دے چه پلار ئې وفات وی او بالغ نه وی او دَ رسول صلی الله علیه وسلّم پلار دَ هغه دَ پیدائش نه وړاندے وفات شویوؤ په اکثرو روایاتو سره او بعضو وئیلی دی چه دَ هغه دَ ولادت نه روستو وفات شویوؤ او لفظ دَ اَلَمْ يَجِدْكَ کښ اشاره ده چه يتيمان نورهم ډیر وؤ لیکن دۀ لره ئې دَ یتیمانو دَ مینځ نه منتخب کړو په دے کښ هم اشاره ده اول تکلیف او بیا خوشحالئ ته . فَاٰوٰی اول تربیت ئې نیکه (عبدالمطلب) اوکړو بیا پوره تربیت او حفاظت ئې ترۀ ابوطالب اوکړو اګرچه ایمان ئې ورباندے راونړو بیا دَ حفاظت دَ پاره صحابه کرام پیدا شول او بیا مدینے والا (اوس او خزرج) پیدا شول دا ټول په فَاٰوٰی کښ داخل دی.

ک دا بل نعمت دے قرطبی دلته اته اقوال لیکلی دی ۱ ضال په معنیٰ دَ غافل دے دَ نبی جوړیدلو نه لکه په سورة یوسف ۳ کښ، فهدیٰ په معنیٰ دَ نبی جوړولو دے ۲ ضال ناخبره دَ تفصیلاتو دَ ایمان او دَ شرائعو نه لکه په سورة شوریٰ ۵۲ کښ - ۳ ضال ډیر محبت کوؤنکے دَ هدایت لکه په سورة یوسف ۹۵ کښ په دے معنیٰ دے ۴ ضال هیروؤنکے انشاء الله لره او فَهَدٰكَ معنیٰ یادول دی ۵ ضال په معنیٰ دَ متحیردے حیران وؤ چه دِے قوم ته په څه رنګ هدایت کوؤ ۶ ضال روک شوے په غرونو دَ مکے کښ یا په لارے دَ شام کښ ۷ ضال متفرد وے (یواځے) ، فهدی ملګری ئې درکړل ۸ ضال په مینځ دَ ګمراهانو کښ روک شوے . فهدیٰ نو جدا ئې کړے دَ هغوی نه .

قرطبی اوومه معنیٰ غوره کړے ده او زما په نیز دویمه معنیٰ غوره ده په قرینه دَ سورة شوریٰ سره . او دَ ضلال په لغت کښ لس معانی په تفسیر دَ سورة فاتحه کښ لیکلی شویدی .

فائده :- مفسر خازن وئیلی دی حاصل ئې دا دے (ریا ئې په بل مخ)

وَوَجَدَكَ عَآئِلًا فَأَغْنٰى ﴿۸﴾ فَأَمَّا الْيَتِيْمَ فَلَا تَقْهَرْ ﴿۹﴾

محتاج نو بے پروا ئے کړے۔ نو هر چه یتیم دے نو قهر (غصّه) ورته مکوه۔

چه هغه قول دَ بعض خلقو ته التفات نشی کیدے چه دَ ضال معنیٰ دا ده چه گمراه وؤ دَ خپل قوم په دین باندے ځکه چه زمونږ نبی صلی الله علیه وسلّم او ټول انبیاء علیهم السلام پیدا شویدی او لوئے شویدی په توحید او په ایمان باندے مخکښ دَ نبوت نه او معصوم دی مخکښ دَ نبوت او دَ جهل نه په صفاتو دَ الله تعالیٰ باندے او دَ توحید باندے او دلیل دا دے چه قریشو په هغه باندے هر عیب وئیلے وؤ لیکن دا ئے ورته نه دی وئیلی چه ته هم مشرک او جاهل وے را او نور دلیلونه ئے ذکر کړے دی او بیا ئے ذکر کړے دی "چه انبیاء علیهم السّلام واجب دادی چه معصوم دی مخکښ دَ نبوت او روستو دَ نبوت نه دَ کبائرو او دَ هغه صغائرو نه چه عیب والا دی"۔ نو دَ ضال معنیٰ گمراه او بے لارے کول دا باطل دی۔

۸ دا دریم نعمت دے عَآئِلًا ډیر عیال والا وے او مراد تری نه محتاج دے او احتیاج حقیقی او معنوی دواړو ته شامل دے یعنی فقیر او بے ماله وے نو مستغنی ئے کړے په سبب دَ نکاح دَ خدیجه رضی الله عنها سره او بیا روستو دَ نبوت نه په غنیمتونو سره او معنوی دا دے چه محتاج وے علم ته او دلیلونو ته نو مستغنی ئے کړے په سبب دَ وحی سره او دا رنگ استغناء دَ زړه (قناعت او صبر) ئے درکړه۔

فائده :- دا درے منازل دَ نبوت دَ نبی صلی الله علیه وسلّم ته وړاندے دَ دے دَ پاره ورکړے شول چه دَ نبوت ذمه وارئے ادا کولو ته تیار شی او دا درے دَ هر داعی حق دَ پاره پکار دی یو ځائے دَ تربیت دویم علم دَ وحی دریم استغناء دَ نفس۔

۹ دا اوله تفریع ده په اول احسان باندے۔ او دا خلاق دے دَ حال دَ جاهلیت نه چه هغوی به په یتیمانو ظلم کوؤ او دَ هغوی حقونه ئے ضائع کول۔ فَلَا تَقْهَرْ قهر غصّه کول او په زور سره مال اخستل دی۔

وَاَمَّا السَّآئِلَ فَلَا تَنۡهَرۡ ﴿۱۰﴾ وَاَمَّا بِنِعۡمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثۡ ﴿۱۱﴾

او هرچه سوال کوؤنکے دے نو رټنه ورته مکوه۔ او هر چه نعمت دے دَ رب ستا نو ښکاره کوه ئے۔

۱۰ دا تفریع ده په دویم احسان باندے او سَآئِلَ عام دے که سوالِ دنیا کوی اوکه دَ دین کوی او خازن وئیلی دی چه طالب دَ علم پکښې داخل دے سوال کوؤنکو سره نرمه لهجه پکار ده ځکه چه الله تعالیٰ تا ته هدایت کړے او دَ هادی مهتدی اخلاق خائستہ پکار دی۔

۱۱ دا تفریع ده په دریم احسان باندے یعنی ته ئے مستغنی کړے او مستغنی له پکار دی چه دَ نعمت پوره شکر ادا کړی۔ بِنِعۡمَةِ رَبِّكَ نعمت عام دے دنیوی وی اوکه دینی وی وحی او قران او علم دَ دین پکښې داخل دی۔ فَحَدِّثۡ تحدیث دَ نعمت دَ هغے شکر ادا کول او دَ منعم ثناء کول دی او اظهار دَ دغه نعمت په لباس او خوراک وغیره کښې په اراده دَ شکر سره پکار دی او تحدیث دَ نعمت دینی (وحی او علم) دَ هغے بیان کول او هغے ته دعوت ورکول دی۔

فائده ۱۔ دا درے اخلاق دَ هر داعی الی الحق دَ پاره ضروری دی دَ پاره دَ کامیابے دَ دعوت کولو۔

فائده ۲۔ ابن کثیر او قرطبی او نورو مفسرینو حدیث مرفوع ذکر کړے دے مضمون ئے دا دے "چه دَ سورة الضحیٰ نه دَ آخر دَ قران پورے دَ هر سورت په اختتام کښې الله اکبر وئیل ضرور دی"۔ نبی صلی الله علیه وسلم دَ دے امر کړے دے قرطبی وئیلی دی چه حدیث صحیح دے خو بخاری او مسلم نه دے راوړے او ابن کثیر په راوی (احمد بن المزی) باندے کلام نقل کړے دے او وئیلی دی چه ابوحاتم ضعیف کړے دے او عقیلی ورته منکر الحدیث وئیلی دی لیکن بیا ئے بله قرینه ذکر کړې ده دَ پاره دَ صحت دَ حدیث نو عمل ورباندے صحیح دے۔

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة الضحیٰ په توفیق دَ الله تعالیٰ سره۔

| اٰيَاتُهَا ۸ رُكُوْعُهَا ۱ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سُوْرَةُ الْاِنْشِرَاحِ مَكِّيَّةٌ |
|---|---|---|

اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ۝۱ وَوَضَعْنَا

آیا نه ده پرانستلے مونږ تا لره سینه ستا ، او سپک کړے دے مونږ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**سورة الانشراح** او نور مونونه ئې دا دی سورة الم نشرح اوسورة الشرح.

**ربط** دَ دے سورت دَ سورة الضحیٰ سره په څو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه په هغه سورت کښ یو قسم تسلّی وه نبی صلی الله علیه وسلّم ته او په دے سورت کښ بل قسم تسلّی ده هغه ته ـ دویمه وجه په هغه سورت کښ تذکیر وؤ په درے انعاما تو سره مخکښ دَ نبوت نه او په دے سورت کښ تذکیر دے په درے نعمتونو سره روستو دَ نبوت نه. دریمه وجه په مخکښ سورت کښ ذکر دَ تحدیث نعمت وؤ یعنی قرآن بیا نوؤل، تو په دے سورت کښ دَ هغے کیفیت ذکرکوی یعنی په بیان دَ قرآن کښ ځان ستړے کول او دَ الله تعالیٰ رضا طلب کول. څلورمه وجه هلته جواب دَ یو اعتراض دَ مشرکینو وؤ دلته جواب دَ بل اعتراض دَ هغوی دے چه دوی وئیل چه ته او ستا ملګری ډیر فقیران دی او په سختئ کښ دی.

**دعوٰی** دَ دے سورت تسلّی ده نبی صلی الله علیه وسلّم ته په ۵ ـ ۶ کښ او وعده ده دَ یُسر روستو دَ عُسر نه په دلیل دَ درے نعمتونو سره، او تیزی ورکول دی په ۷ ـ ۸ کښ په دعوت بانده او دَ الله تعالیٰ یو اسم ذکر دے (رب) او درے صفاتِ فعلیه دی.

**خلاصه** دَ سورت دا ده چه اول یاداشت دَ درے نعمتونو دے بیا تسلّی ده په یُسر سره بیا تیزی ده په دعوت بانده په مینه

عَنْكَ وِزْرَكَ ﴿٢﴾ الَّذِيْٓ اَنْقَضَ ظَهْرَكَ ﴿٣﴾

| ستا نه | بوج ستا ، | هغه چه | درَنه کړېده | ملا ستا ، |
|---|---|---|---|---|

دَ الله تعالىٰ سره ـ (فائده) په دے دواړه سورتونو کښې لوئے مقصد اثبات دَ صدق دَ رسول صلى الله عليه وسلم دے۔

تفسير: ۱ـ دا اول انعام ذکر کوى او دا انعام دَ موسىٰ په دُعا کښې ذکر دے سورة طٰه ۲۵ کښې او دا سبب دَ هدايت دے لکه په سورة انعام ۱۲۵ او سبب دَ نُور دے لکه په سورة زمر ۲۲ کښې او مراد دَ شرح صدر نه ضرورى علمونه او معارف ورکول دى او هر قسم شبهات او شکونه دَ زړه نه زائل کول دى او دا اشاره ده مقام دَ نبوت ته او اسبابو دَ دعوت ته او حديث کښې وارد دى چه مخکښې دَ نبوت نه په صحرا کښې دَ نبى صلى الله عليه وسلم سينه (جبرئيل عليه السّلام) سيرے کړله او دَ هغې نه ئے غل او حسد اُويستل او حصّه دَ شيطان ئے ترينه لرے کړله او رافت او رحمت ئے پکښې واچول دا په ابن کثير کښې دَ ابو هريره رضى الله عنه او تفسير خازن کښې دَ انس رضى الله عنه روايت دے نو په دے طريقے سره هم شرح دَ صدر دَ هغه او کړے شوه او شرح دَ صدر پخپله نبى صلى الله عليه وسلم ته معلومه او محسوسه وه دَ دے وجے په طريقه دَ استفهام دَ تقرير او تاکيد دَ پاره ذکر کړو۔

۲ـ دا دويم انعام ذکر کوى يعنى دَ نبوت ورکولو نه روستو دَ نبوت کار اسانول۔ وَ وَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ وِزْرَ بوج ته وئيلے شى او وضع دَ وزر بوج سپکول او بوج لرے کولو ته وئيلے شى او وزر نه مراد نبوت دے ځکه دَ وحى بوج دومره زيات وُو چه په نبى صلى الله عليه وسلم په ابتداء کښې داسے هيبت راغلے وُو چه نزدے وه چه ځان ئے دَ غر دَ سر نه راغورځولے وے ليکن جبرئيل عليه السّلام منع کړو او په سخت ژمى کښې به په هغه باندے خوَله راتله ليکن دا بوج الله تعالىٰ اسان کړو ترد دے پورے چه هغه بيئ په اسانه طريقه سره وحى ايزده کوله۔ او په رسولو دَ وحى کښې هم ډير مصيبتونه تکاليف وو دَ وجے دَ مخالفت دَ قوم نه ليکن هغه هم (پاتے په بل مخ)

وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ ④ فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ⑤

او پورته کړی دے مونږ تا لره ذکر (یادول) ستا ـ یقیناً دَ سختۍ سره اسانتیا وی ـ

الله تعالیٰ اسان کړل یا مراد دَ وزر نه گناهونه دی او وضع په معنیٰ دَ محفوظ ساتلو دے یعنی محفوظ م او ساتلے دَ گناهونو نه مخکښ دَ نبوت او روستو دَ نبوت نه ـ او دَ شرح صدر (چه اسباب دَ دعوت دی) نه روستو اسانتیاؤ کار ته ضرورت وی چه په هغه اسبابو سره مقصد حاصل شی او دے ته هم دَ داعی ضرورت دے ـ

۳ اَنْقَضَ تقیض هغه اواز ته وئیلے شی چه دَ وجے دَ درونډوالی دَ بوج نه وی مراد ترے دلته درونډ والے دے یعنی درنه کړے ئے وه مَلا ستا ـ مراد ترینه ماتول نه دی ـ او دا جمله دلیل دے چه مراد دَ وزر نه بوج دَ نبوت دے ځکه چه په نبی صلی الله علیه وسلم دَ گناهونو بوج ماتوونکے دَ مَلا هیچرے نه وو ـ

۴ دا دریم انعام دے رفع دَ ذکر دَ نبی صلّی الله علیه وسلّم په ډیرو طریقو سره ده اول ذکر دَ هغه په کلمه دَ تشهد کښ دے او په اذان کښ او په خطبا تو کښ او دویم په منبرونو باندے په ورځ دَ جمعے او اخترونو او وعظونو کښ ـ دریم ذکر دَ هغه په مخکنو کتابونو کښ څلورم میثاق اخستل دَ مخکنو انبیاء علیهم السلام نه په باره دَ ده کښ ـ پنځم ذکر دَ ده په ملائکو کښ شپږم ذکر دَ ده دَ الله تعالیٰ په مقام دَ اطاعت کښ (اطیعوا الله و اطیعوا الرسول) او په مقام دَ رضا کښ (والله ورسوله احق ان یرضوه) اووم په اوچتو او شریف اخلاقو سره متصف کیدل او رفع دَ ذکر لره چه په دغه طریقو سره وی هغے لره ډیر اثر دے په قبولیت دَ دعوت دَ هغه کښ ځکه چه دَ کم عزت والا انسان خبره دومره مؤثره نه وی څومره چه دَ عزت منډ شخص خبره مؤثره وی نو دا درے انعامات دَ دعوت دَ رسالت دَ رسولو دَ پاره ضروری امور دی چه دا ټول نبی صلّی الله علیه وسلّم لره حاصل وو او دَ دے وجے نه افضل دے دَ ټولو رسولانو نه په مرتبه کښ ـ

۵ ـ ۶ دا دعویٰ دَ سورت ده (تسلی) تفریع ده په مخکښ درے

إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ﴿٦﴾ فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ ﴿٧﴾

یقیناً دَ سختۍ سره اسانتیا وی . نو کله چه اوزګار (فارغ) شې نو ځان ستړے کړه،

نعمتونو بانده یعنی د غه نعمتونه سبب دے دَ یُسر (اسانتیا) په دُنیا او آخرت کښ او په دے کښ دفع دَ اعتراض ده چه مشرکینو وئیل چه دا رسول او صحابه فقیران دی نو معلومه شوه چه دَ دوی دَ الله تعالیٰ سره هیڅ مرتبه نیشته نو جواب اوشو په دے ایت کښ . مَعَ په معنیٰ دَ بعد دے لیکن دَ زر راتللو په وجه دَ هغے نه تعبیر په مع سره اوشو .

الْعُسْرِ مشهوره دا ده چه دلته یو عسر سره دوه یُسرونه دی ځکه العسر ئې دوه کرته معرفه راوړے ده نو دویم عین اول دے نو عسر یو مراد شو او یسرًا ئې دوه کرته نکره راوړے ده او دواړه جدا جدا شول او دَ دے په تائید کښ ابن کثیر حدیث دَ حسن بصری راوړیدلے چه چرے یو عسر په دوه یسرونو بانده نه غالب کیږی لیکن دا حدیث مرسل دَ حسن بصری دے لیکن خازن او قرطبی دَ جرجانیؒ نقل کړے دے چه دا قاعده او دا قول فاسد دے او صحیح دا ده چه په اوله جمله کښ عسر دنیوی یعنی فقر او غریبی مراد دے چه په هغے پسے ډیر غنیمتونه او فتح دَ ملکونو راغلے او الله تعالیٰ په نبی او صحابو بانده دنیوی وسعتونه راوستل . او په دویمه جمله کښ دَ عسر نه مراد عسر دینی دے یعنی دینی تکالیف او مصائب په اول وخت کښ ډیر وو بیا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه فتح نصرت راغے او خلق په ډلے ډلے په دین کښ داخلیدل او دا رنګ په دے پسے اخروی یُسر دے (جنتونه)، او پدے دواړو جملو کښ تنکیر دَ یسرًا دَ پاره دَ تعظیم دے .

ف۸ روستو دَ ذکر دَ انعاماتو نه ترغیب ګڼی دَ هغے شکر کولو ته او دَ هغه شکر دوه طریقے ئې ذکر کړے دی اوله طریقه فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ ، پدے جمله کښ مفسرینو ډیر اقوال ذکر کړے دی اول دا چه فارغ شې دَ فرض مونځ نه نو ځان ستړے کړه په دُعا کښ دا روایت دَ ابن عباسؓ دے په تفسیر ابن عباس او ابن جریر او تفسیر سراج المنیر او تفسیر خازن کښ او کوموم مفسرینو چه صلوٰة مطلق ذکر کړیدے نو دَ هغے دَ مطلق نه مراد فرض مونځ دے لکه چه دا قاعده ده دَ محدثینو او فقهاؤ

# وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَارْغَبْ ﴿٨﴾

او خاص خپل رب ته رغبت کوه ۔

نو دَ دے ایت نه دُعا روستو دَ فرض نه ثابت ده لیکن په دے کښ هم هیئت اجتماعیه په التزام سره جوړول لکه اوس چه رواج دے نو دا بدعت دے لکه چه هیئۃ اجتماعیه په دُعا بعد السنۃ کښ بدعت دے نو دَ دے ایت نه دَ دُعا بعد السنن یا بعد الفرض بالهیئۃ الاجتماعیه دَ پاره دلیل نیول دَ جاهلانو کار دے ۔ دویم هرکله چه فارغ شے دَ فرض مونځ نه نو ځان ستړے کړه په قیام اللیل کښ. دریم هر کله چه فارغ شے دَ تشهد نه نو ځان ستړے کړه په دُعا کښ څلورم قول هرکله چه فارغ شے دَ دنیا دَ ضروری کارونو نه نو ځان ستړے کړه دَ دین په کار کښ چه عبادت او دعوت کول دی پنځم قول دا دے هر کله چه فارغ شے دَ دعوت او تبلیغ نه نو ځان ستړے کړه په بل کار دَ دنیا او دَ دین کښ یعنی انسان له بے کاره کیناستل پکار نه دی (لکه چه دَ عمر رضی الله عنه روایت دے) یا به مشغول وی په کار دَ دُنیا کښ یا په کار دَ اخرت کښ ۔ قرطبی دَ شریح نه نقل کړے دے چه دے ورتیر شو په یو قوم باندے چه دَ اختر په ورځ ئے لوبے کولے نو دهٔ ورته اووئیل چه ایا دَ فراغ په وخت کښ تاسو ته دا حکم شوے دے معلومیږی چه هغه داسے لوبے وے چه هیڅ فائده پکښ نه وه او چه فائده پکښ وی نو هغه لوبے خصوصًا دَ اختر په ورځ جائز دی لکه چه حدیث صحیح کښ ذکر دی یا دا وجه وه چه دِ دے خلقو علت پیش کړے وو په فراغت دا علت ئے نه وؤ ذکر کړے چه دَ عید ورځ ده ۔

دریمه طریقه دَ شکر وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَارْغَبْ ده یعنی خپل رغبت صرف الله تعالیٰ ته اوګرځوه ، په ټولو احوالو خپلو کښ هیڅ عبادت او دعوت کښ دَ الله تعالیٰ نه سیوا دَ بل چا لحاظ مهٔ کوه او مراد ترینه توکل او اخلاص کول دی ۔

ختم شو تفسیر دَ سورۃ الانشراح په فضل دَ الله تعالیٰ سره

| رکوعها | آیاتها ۸ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سُوْرَةُ التِّيْنِ مَكِّيَّةٌ |
| --- | --- | --- | --- |

وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ ﴿۱﴾ وَطُوْرِ سِيْنِيْنَ ﴿۲﴾

قسم دے په اینځر او په خوتۀ باندے ، او په طور تک شین (یا د نړا والا) باندے۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة التين او بل نوم ئے والتين دے۔

**ربط دَ دے سورت** دَ ماقبل سره په ډيرو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښ سورت کښ تيزی ورکول وؤ په دعوت باندے نو په دے سورت کښ مقصد دَ دعوت ذکر کوی چه هغه توحيد دے دويمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ شان دَ نبی صلی الله عليه وسلم ذکر وؤ او په دے سورت کښ شان دَ عامو انسانانو ذکر دے ۔ دريمه وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ تيزی ورکول وو په دعوت باندے نو دلته اشاره کوی په ذکر دَ حال دَ بعض داعيانو سره په ذکر دَ مکان او مراد ترينه مکين دے لکه روستو به ذکر کړے شی۔

**دعوٰی دَ سورت**۔ اثبات دَ توحيد ئے په دے باندے انسان فطرةً پيدا شوے دے په ۳ ـ ۸ کښ او اثبات دَ ورځ دَ جزا تفريعًا ذکر کوی په ۷ کښ۔ او يو اسم دَ الله تعالیٰ او دوه صفاتِ فعليه پکښ ذکر دی۔

**خلاصه دَ سورت** دا ده چه اول ئے څلور شواهد ذکر کړے دی بيا دعویٰ دَ سورت ده تر ۴ پورے بيا تقسيم دَ انسان دوه قسمونو ته يو لره تخويف په ۵ کښ او بل لره بشارت دے په ۶ کښ او بيا اثبات دَ قيامت پطور دَ تفريع سره په ماقبل باندے په ۷ کښ بيا تصريح ده په دعوٰی دَ توحيد باندے په ۸ کښ۔

**تفسير** وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ ۔ دا دوه قسمونه په طريقه دَ شهادت دی لکه دَ دے تحقيق سورة يٰس او صافات کښ تير شوے دے او دَ مفسرينو دَ نقل موافق دَ دے نه عينِ دواړه اونے (اينځر او خونه) (پاتے په بل مخ)

مراد دی یا مسجد دَ دمشق او مسجد دَ بیت المقدس مراد دے چه مکان دَ دعوت دَ عیسیٰ علیه السّلام وؤ یا دَ تین نه مراد مقام دَ دعوت دَ نوح علیه السّلام او دَ زیتون نه مراد مقام دَ دعوت دَ عیسیٰ علیه السّلام مراد دے په طریقه دَ ذکر دَ مکان او مراد تری نه مکین دے. او پنا په اول قول باندے دَ دے دواړو اونو شرافت ته اشاره ده ځکه چه دا دواړه په ډیرو فوائدو باندے مشتمل دی لکه چه مفسرینو ذکر کړے دی چه التّین هغه میوه ده چه دَ نقائصو نه پاکه ده یعنې اډوکی پکښ نیشته، دَ نوړے په مقدار یَے دانه ده، او دا غذا او بخکړے (سالن) او دواء هم ده او طبیعت کښ یَے حرارت رطوبت دواړه دی او دا طبیعت دَ حیات دے او قوۃِ باه ته هم فائده ورکوی او بواسیرو دَ پاره هم علاج دے، تازه او اوچ خوړے کیږی نو دَ الله تعالیٰ دَ قدرت عجیبه نښه ده او په مثال دَ مؤحد انسان دے چه په هغه کښ هم لازمی او متعدی ډیرے فائدے دی.

او الزّیتون په سورة مؤمنون ۲۰ کښ دَ دۀ فائدے ذکر دی. دهن، صبغ. او دهن منشاء دَ رڼا او دَ نرم والی ده او صبغ سبب دَ لذت او دَ سهولت دَ خوراک دے او پاڼرے دَ دۀ نه غورځیږی او نورے ډیرے فائدے یَے هم دی چه دلالت کوی په قدرت عظیمه دَ الله تعالیٰ یا ئے او مشابهت لری دَ مؤحد انسان سره په ډیرو منافعو کښ.

۲ دا دریم قسم دے طُوْر هر هغه غر ته وئیلے شی چه شین وی، او نوم دے دَ هغه غر چه دَ موسیٰ علیه السّلام مهبط دَ وحی ووَ.

او سِیْنِیْنَ هم هغه غر ته وئیلے شی چه په هغے کښ میوه دارے اونے دی نو دا اضافت دَ موصوف دے صفت ته یا سینین نوم دَ هغه مکان دے چه په هغے کښ طور (غر) موجود دے اضافت دَ مظروف دے ظرف مکان ته او دلته هم مراد هغه غر دے چه موسیٰ علیه السّلام ته په هغے کښ وحی شورو شوے وه او میقاتونه یَے دَ هغے په خوا کښ کیدل ځکه چه هغه غر دَ ډیرو منافعو نه ډک دے یا موسیٰ علیه السّلام مراد دے په طریقه دَ ذکر مکان او مراد تری نه مکین.

وَهٰذَا الْبَلَدِ الْاَمِيْنِ ﴿٣﴾ لَقَدْ خَلَقْنَا

او (قسم دے) په دے ښار امن والا باندے، یقیناً پیدا کړے دے مونږ

الْاِنْسَانَ فِيْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ ﴿٤﴾ ثُمَّ

انسان په ډیر ښائسته اندازه کښې (چه فطرت د توحید دے)۔ بیا

۳ دا څلورم قسم دے او مراد د دے نه مکه مکرمه ده چه په هغې کښې ابراهیم علیه السلام کعبه جوړه کړله او دُعاء ئے غوختلے ده د هغې دَ امن دَپاره لکه په سورة بقره ۱۲۶ او سورة ابراهیم ۳۵ کښې ذکر دی او په هغه ښار کښې خاتم النبیین صلی الله علیه وسلم ته وحی شورو شوی ده نو دلته مراد نفس ښار دَ مکے مکرمے دے یا ابراهیم علیه السلام یا محمد صلی الله علیه وسلم مراد دے په طریقه دَ ذکر دَ مکان او مراد ترینه مکین۔

۴ دا جواب قسم دے الْاِنْسَانَ دَ دے نه مراد هر انسان دے۔

فِيْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ، تقویم په معنیٰ دَ قوام سره دے جوړښت مراد دے او جوړښت ظاهری دَ بدن او جوړښت باطنی روحانی دواړه احسن دی جوړښت باطنی دا دے چه هر انسان په فطرة دَ توحید پیدا کړے شوے دے لکه په سورة روم ۳۰ کښې ذکر دی او حدیث صحیح کښې وارد دی چه كُلُّ مُوْلُوْدٍ يُّوْلَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ (هر بچے پیدا کیدلے شی په توحید باندے) او جوړښت بدنی دا دے چه سیده ها قد والا لاس او خپے ئے جدا جدا دی په لاسو باندے خوراک کوی ښائسته صورت ئے دے لکه چه په سورة مؤمن ۶۴ او سورة تغابن ۳ کښې ذکر دی او په دے مناسبت سره قرطبی شربینی وغیره هغه واقعه دَ عیسیٰ بن یوسف هاشمی ذکر کړے ده چه هغه ښځے ته وئیلی ووُ چه که چرے ته دَ سپوږمئے نه زیاته ښائسته نه ئے نو ته په ما طلاقه ئے نو ټولو علماؤ دَ هغه وخت اوئیل چه دا طلاقه ده او امام محمد بن حسن رحمة الله دا آیت تلاوت کړو چه دا دلیل دے چه انسان دَ هر څیز نه ښائسته دے نو دا ښځه نه طلاق کیږی۔

(فائده) مناسبت په مینځ دَ قسمونو او جواب قسم کښې (پاتے په بل مخ)

# رَدَدْنٰهُ اَسْفَلَ سٰفِلِيْنَ ۝ اِلَّا الَّذِيْنَ

دا ګرځولے دے موږه دے کوز دَ کوزو نه ، مګر هغه کسان

دا دے په اعتبار دَ اول توجیه سره (چه تین زیتون طور او مکه مراد شی) چه په دغه ځیزونو کښې څه رنګ بے شماره فائدے الله تعالیٰ پیدا کړیدی او دَ الله تعالیٰ دَ قدرت نمونے دی لیکن روستو خلق دوه قسمه دی څوک دَ دے نه فائدے اخلی او دَ الله تعالیٰ دَ قدرت نمونے ئے ګنړی او څوک ئے ضائع او عبث ګنړی نو دا رنګ انسان الله تعالیٰ دَ توحید په عقیده کښې پیدا کړیدے لیکن څوک په دے توحید باندے باقی پاتے شی او څوک تړینه واوړی یهودیت، نصرانیت، مجوسیت وغیره او دا رنګ دا انسان دَ الله تعالیٰ دَ قدرتونو دَ پاره یو عظیمه نمونه ده لکه حکماؤ وئیلی دی چه انسان عالَم صغیر دے۔

او په اعتبار دَ دویمے توجیه سره (چه دَ دے نه پنځه انبیاء مراد شی) یعنی نوح علیه السلام عیسیٰ علیه السلام موسیٰ علیه السلام ابراهیم علیه السلام او محمد صلی الله علیه وسلم چه دَ توحید دَ مسئلے دَ پاره ئے په دغه مکانونو کښې څومره تکالیف تیر کړیدی او دَ توحید دعوت ئے کړے دے، دا شهادت دے په دے باندے چه انسان په اصل کښې په توحید باندے پیدا دے لیکن دَ نورو عوارضو دَ وجے نه بعض انسانان توحید پریږدی نو الله تعالیٰ انبیاء علیهم السّلام چه په هغوی کښې دا پنځه اصحاب الشرائع دی دَ توحید دَ حفاظت دَ پاره رالیږلے دی۔

ف هرکله چه دَ الْاِنْسَانَ نه مراد ټول (جنس) انسانان وو نو اوس په هغوی کښې تقسیم کوی یو قسم هغه دی چه هغوی توحید پریږدولو او په کفر او شرک کښې اخته شول (دین فطری ئے بدل کړو) نو په دے ایت کښې هغوی لره تخویف دے۔

رَدَدْنٰهُ ضمیر الانسان ته راجع دے په اعتبار دَ بعض افرادو سره په قرینه دَ استثناء سره په روستو ایت کښې۔

اَسْفَلَ سٰفِلِيْنَ په دے کښې دَ مفسرینو دوه قولونه دی اول دا چه مراد دَ دے نه ارذل عمر دے چه روستو دَ علم او عقل نه بیا واپس

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَلَهُمْ اَجْرٌ

چه ایمان ئې راوړے دے او عملونه ئې کړیدی د سنت برابر نو دوی لره ثواب دے

غَیْرُ مَمْنُوْنٍ ⑥ فَمَا یُکَذِّبُکَ بَعْدُ

بے انتها - نو څه څیز دروغژن ګرځوی شی تا روستو د دینه

جاهل ناپوهه شی لکه په سورة نحل ۷۰ او سورة حج ۵ کښ دی او
ارنګ په حدیث کښ تعوذ ذکر دے د هرم نه او د واپسئ نه ارذل العمر
ته او دا قول ابن جریر غوره کړیدے او د عکرمه نه ابن کثیر روایت
نقل کړے دے چه مَنْ جَمَعَ الْقُرْاٰنَ لَمْ یُرَدُّ اِلٰی اَرْذَلِ الْعُمُرِ (یعنی
قران والا عالم باعمل ارذل العمر ته نه شی وړګرځیدلے).
دویم قول دا دے چه مراد د دے نه اور د جهنم دے او ترتیب د
دے پشان د سورة انشقاق ۲۴ ۲۵ او سورة عصر ۲ ۳ دے او دا
قول ابن کثیر غوره کړیدے او ابن قیم په بدائع التفسیر ص۱۷۴ کښ د
اول قول د ضعیف کولو د پاره لس وجې ذکر کړے دی بعض د هغې نه
دا دی اوله وجه چه د اسفل سافلین اطلاق په لغت او عرف د عربو
کښ په ارذل العمر باندے نه دے شوے، دویمه دا چه ارذل العمر
والا خلق لږ دی بلکه اکثر مړه شی مخکښ د رسیدلو ته دغه عمر ته
او استثناء دلالت کوی چه دوی په ډیر دی، دریمه وجه دا ده چه په
ارذل العمر رسیدلو کښ عام مؤمنان او غیر مؤمنان برابر دی صرف
قران والا عالمان باعمل ترینه مستثنیٰ دی څلورمه وجه دا ده
چه د بشارت اخرویه په مقابله کښ ارذل العمر ته ردکیدل مناسب
نه دی، او نور وجوه په هغه تفسیر کښ اوګورئ نو ښنا په دویمه توجیه
سره حاصل د ایت دا دے چه کوم خلق د توحید نه چه دین فطری
دے اوړیدلے دی نو هغه به سجین کښ وی چه هغه اسفل سافلین دے
او په دے کښ دویم قسم انسان ذکر کوی چه هغوی په دین فطری باندے
پاخه دی نو هغوی لره بشارت دے او د هغوی صفت ئې ایمان او
عمل صالح ذکر کړے دے. اَجْرٌ غَیْرُ مَمْنُوْنٍ مَنّ (ریاتے یه بل مخ)

بِالدِّيْنِ ۝۷ اَلَيْسَ اللّٰهُ بِاَحْكَمِ الْحٰكِمِيْنَ ۝۸

دَ جزا په باره کښ. آیا نه دے الله تعالیٰ لوی فیصله کوونکے دَ فیصلے کوونکو نه.

قطع او نقص او احسان ته وئیلے کیږی دلته اولے دواړه معانی مراد دی او دریمه معنیٰ هم جواز لری لیکن په هغے کښ موافقت دے دَ قدریه ډلے سره چه هغوی وائی چه دا اجرجزاء دَ عمل دَ دوی، احسان دَ الله تعالیٰ نه دے او دا قول باطل دے او احسان دَ الله تعالیٰ په بنده باندے سبب دَ خوشحالئ او دَلذت دَ بنده دے سبب دَ خفگان نه دے لکه چه قدریو خیال کړے دے نو مراد دَ اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ نه جنت دے چه دَ هغے نعمتونه ابدی دی او لا مقطوعة ولا ممنوعة دی.

فائده:- سورة قلم کښ و ان لك لاجرا غیرممنون کښ وجه تخصیص په نبی صلی الله علیه و سلم پورے په تفسیر کښ ذکر شوے ده یعنی هلته اجر په سبب دَ دعوت او دَ تبلیغ سره مراد دے تر قیامته پورے په دُنیا کښ او همیشه دَ پاره په قیامت کښ جاری دے.

ـك دا تفریع ده په مخکښ ذکر دَ قدرتونو دَ الله تعالیٰ باندے دَ پاره دَ اثبات دَ ورځ دَ جزا او دَ دے وجے فَآئے راوړے ده یعنی هغه الله تعالیٰ چه دَ هغه دَ قدرت مثالونه په تین، زیتون، طور، بلد امین او انسان او په هغوی کښ تقسیم کولو کښ ښکاره دی نو معلومه شوه چه هغه الله تعالیٰ قادر دے په بعث بعد الموت او په جزا ورکولو باندے، نو څه دلیل دَ تکذیب کیدے شی دَ پاره دَ مکذبینو. فَمَا ما کښ دوه توجیه دی اوله دا چه په معنیٰ دَ ای شیءٍ یکذبك ده دویم دا چه په معنیٰ دَ من الذی یکذبك ده او کاف دَ یکذبك کښ هم دوه احتمالونه دی چه مخاطب مکذب انسان دے یا مخاطب نبی صلی الله علیه وسلم دے او پنا په اول احتمال باندے معنیٰ دا ده چه څه څیز (دلیل سبب عذر) دے چه مکذب گرځوی تا لره، مکذب دَ جزا روستو دَ دے نمونو دَ قدرت الهیه نه یعنی هیڅ دلیل او سبب دَ تکذیب نیشته. او په دویم احتمال باندے معنیٰ دا ده چه څوك دے هغه شخص چه کاذب (دروغژن) په او گرځوی تا له په خبر ورکولو دَ ورځ دَ جزا کښ روستو دَ دے دلیلونو دَ قدرت الهیه نه.

نو بنا په اول باندے تکذیب کښ معنیٰ نسبتی ده او بنا په دویم باندے باب تفعیل (تکذیب) دَ پاره دَ جعل او تصییر دے۔
ف دا تصریح ده په دعویٰ دَ توحید چه احسن تقویم کښ اشاره ذکر وه. او دا رد دَ شرک فی التصرف والحکم دے ځکه مراد دَ حکم نه عام دے حکم تکوینی یعنی تصرفات کونیه او حکم تشریعی دواړو ته شامل دے او دا صفت دَ الله تعالیٰ په سورة هود ۲۵ کښ ذکر شوید ے او احکم تفضیل کښ اشاره ده چه هر تصرف او حکم شرعی دَ الله تعالیٰ مضبوط دے څوک یې مقابله نشی کولے او په هغې باندے دَ هیچا اعتراض او اپیل نه چلیږی. او دا یې اخر دَ سورة کښ دَ پاره دَ تاکید دَ مضمون دَ سورت راوړو یعنی نباتات او جمادات او انسانان پیدا کول او په انسانانو کښ دوه قسمونه جوړول او هر یو لره دَ هغه مناسب جزا ورکول دَ الله تعالیٰ احکمیت باندے ښکاره دلیل دے او په حدیث دَ ترمذی کښ دَ ابو هریره رضی الله عنه نه مرفوعًا نقل دی چه چا والتین والزیتون او لوستلو او بیا یې الیس الله باحکم الحاکمین او لوستلو نو ورپسے دِ اوائی بلی و انا ذلك من الشاهدین.

خټم شو تفسیر دَ سورة التین په فضل دَ الله تعالیٰ سره

| سُوْرَةُ الْعَلَقِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۱۹ | رُكُوْعُهَا ۱ |
|---|---|---|---|

اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ ﴿۱﴾

اولوله په مدد د نوم د رب ستا هغه ذات چه پیدائش ئې کړیدے (عام)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة العلق او بل نوم ئې سورة اقرء دے.

ربط د دے سورت د ماقبل سره په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه په مخکښې سورت کښې توحید ذکر شو نو په دے سورت کښې د علم د توحید د پاره امر کوی په قراءة د قران سره. دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې صورت د انسان ذکر شو نو په دے سورت کښې ماده د پیدائش د انسان ذکر کوی. دریمه وجه دا ده چه په مخکښې سورت کښې ئې د انسانانو په جزا کښې فرق ذکر کړو نو په دے سورت کښې د هغوی په اعمالو کښې فرق بیانوی.

دعوی د دے سورت. امر دے په قراءة د قران سره دوه کرته په ۱ او ۳ کښې او په عبادت د رحمٰن سره د پاره د قربت په ۱۹ کښې او درے اسماءِ حسنیٰ ذکر دی. الله، رب، اکرم، او صفاتِ فعلیه پکښې اوو ذکر دی.

خلاصه د دے سورت دا ده اول امر دے په قراءة د قران سره د ادب نه او علت د هغے ئې خلق ذکر کړے دے په ۱، ۲ کښې بیا دویم کرت امر په قراءت سره دے او علت د هغے ئې صفت د اکرمیة او تعلیم بالقلم ذکر کړیدے په ۳، ۴، ۵ کښې بیا زجر دے مکذب انسان ته په ذکر د شپږ اوصافِ قبیحه د هغه سره او تسلی ده داعی د قران ته په ذکر د څلورو صفاتِ حسنه سره تر ۱۴ پورے بیا تخویف اخروی دے مکذب ته په ۱۵، ۱۶، ۱۸ کښې او ترغیب دے قران والا ته په یو نهی او دوه امرونو سره.

تفسیر ۱، ۲، ۳، ۴، ۵ دا پنځه ایاتونه د دے سورت نه د قران کریم

خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ﴿۲﴾ اِقْرَاْ وَرَبُّكَ

پیدا کړیدے انسان دَ ټکړے دَ وینے نه. لوله همیشه او رب ستا

الْاَكْرَمُ ﴿۳﴾ الَّذِیْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ﴿۴﴾

ډیر عزت والا دے، هغه ذات چه تعلیم ئے ورکړیدے په قلم سره،

اول وحی ده چه په غارِحرا کښں نازل کړے شویوو. اِقْرَءْ مفعول محذوف دے ما انزل الیك او القران، معلومه شوه چه اوله فریضه په نبی صلی الله علیه وسلم باندے قران لوستل دی او دَ دے تبلیغ دے. بِاسْمِ رَبِّكَ دَ بَا متعلق محذوف دے مُفْتَتِحًا او مستعینًا باسم ربّك په دے کښں ادب دَ قراءة دَ قران ذکر دے چه افتتاح دَ قراءة په بسم الله الرحمٰن الرحیم سره پکار ده او هرکله چه قراءة دَ قران لوئے او سخت بوج دے نو دَ دے دَ پاره استعانت دَ الله تعالیٰ نه ضروری دے دَ هغه په امداد سره اسانیږی. اَلَّذِیْ خَلَقَ دَ دے مفعول محذوف دے دَ تعمیم دَ پاره یعنی خلق کل شیءٍ یا مفعول نسیًا منسیًا دے یعنی صرف معنیٰ حدثی مراد ده. خَلَقَ الْاِنْسَانَ دا تخصیص دے روستو دَ تعمیم نه او هر انسان مراد دے. مِنْ عَلَقٍ دا جمع دَ علقه ده جمع ئے دَ دے وجے نه ذکر کړیده چه جنس انسان په معنیٰ دَ جمع سره دے.

سوال:- اول پیدائش خو دَ نطفے نه دے لکه چه سورة حج ۵ او سورة مؤمنون ۱۳ او نورو ایا تونو کښں ذکر دی نو دلته دغه ابتدا ولے ذکر نه شوه؟

جواب:- اشاره ده چه نطفه اصل دے او اول انقلابی حالت علقه ده اشاره ده چه قران کریم هم دَ انقلاب دَ پاره راغلے دے او په علقه کښں وصف دَ پیوست والی او دَ جوړخ دے نو قران هم دَ جوړخ کتاب دے او محبت او اتصال پیدا کوونکے دے.

اِقْرَءْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ تکرار دَ تاکید دَ پاره دے یعنی هر وخت قران لوله یا مراد دَ اول اِقْرَءْ نه ځان له تلاوت کول دی او دَ دویم اِقْرَءْ نه مراد قراءت دَ دعوت او دَ تبلیغ دے (پاتے په بل مخ)

عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ۝ كَلَّا

تعلیم ئې ورکړې دے انسان ته د هغه څیز چه د ے پوهے نه پوهیدلو . یقیناً دا دی

یا په اول سره مراد شوروکول د قراءت دی او د شوروکولو د پاره ادب ذکر شو او دویم اقرء د اجراء او استمرار قراءت د پاره دے یا اول قراءت تا بالغو ته او امیانو ته تبلیغ او تعلیم دے چه د هغوی پیدائش زمانے د عَلَقه ته نزدے دے او دویم قراءت بالغانو او اهل قلم ته دے .

الاَکْرَمُ دا صیغه د تفضیل ده د کرم نه او هغه کثرت د خیر ته وئیلے کیږی نو دا صفت خاص دے په الله تعالیٰ پورے ځکه چه خیر ټول د هغه په لاس کښ دے او نعمتونه ټول د هغه د طرف نه دی . او معافے کوونکے دے د جهل د بندګانو نه او روستو کوونکے د عذاب دے د مستحقینو د عذاب نه او عطیات ورکوونکے دے په غیر د عوض نه او ډیر اجر او ثواب ورکوونکے دے په لوستلو د قرآن کریم سره .

الَّذِیْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ او دا عام دے ملائکو او انسانانو او جنانو ته لیکن په انسان باندے په طور د خاص احسان سره ذکر دے .

په خلق (پیدائش) پسے لوئے نعمت علم دے او علم دوه قسمه دے یو علم په قلم سره هغه ئې دلته ذکر کړو او بل علم په بیان سره هغه ئې په دے جمله کښ ذکر کړو چه عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ مَا صریح په عموم کښ نه دے بلکه کله عام او کله خاص راځی او دا قول د محققینو اصولیانو او عربیت والو دے نو دلته مراد بعض علمونه دی چه الله تعالیٰ د خپل اراده په بِنا باندے بعضو انسانانو ته یو قسم علم ورکوی او بعضو ته بل قسم علم ورکوی .

ابن کثیر وئیلے دی چه علم کله په اذهانو کښ وی او کله په ژبه باندے وی او کله په قلم باندے وی اول ذهنی دویم لفظی دریم رسمی دے او رسمی مستلزم دے دغه دواړو لره د دے وجے د علم بالقلم (چه رسمی دے) د هغے تخصیص ئې کړے دے او هغه ئې مقدم کړے دے .

إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَىٰ ﴿٦﴾ أَن رَّآهُ اسْتَغْنَىٰ ﴿٧﴾

بیشکه چه (بعض) انسان خامخا سرکشي کوي ، دَدے وجے نه چه ځان مالدار وینی .

إِنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ الرُّجْعَىٰ ﴿٨﴾ أَرَأَيْتَ الَّذِي

یقینًا طرف دَ رب ستاته گرځیدل دي . آیا ته وینے هغه کس

يَنْهَىٰ ﴿٩﴾ عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰ ﴿١٠﴾ أَرَأَيْتَ إِن كَانَ

چه منع کول کوي ، بنده لره . کله چه مونځ کوي . آیا ته وینے که چرے وِے دی

۶ ۷ په دے کښې زجر دے مخالفت کوونکی دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ قرآن ته او کَلَّا په معنیٰ دَ حقا سره دے اَلْإِنسَانَ مراد دَ دے نه مکذب انسان دے یَطْغَىٰ تجاوز کوي دَ حد نه په حقوق الله کښې په کفر او شرک سره او په حقوق العباد کښې په ظلم او غصب سره أَن رَّآهُ لام مقدر دے (لِأَنْ) او دا سبب دے دَ طغیان او مراد دَ ہٗ نه نفسه دے . اسْتَغْنَىٰ غِنا په مال سره او په لوئې قبیلے او تابعدارو سره ده او باب استفعال ئے ذکر کړو اشاره ده چه انسان په حقیقت کښې غنی نشي جوړے دے ځکه چه غنی بے حاجته ته وئیلے کیږي او الله تعالیٰ ته خو دے ضرور محتاج دے لیکن ځان ئے بے حاجته گنړلے دے . اشاره ده چه سرمایه داري اکثر سبب دَ طغیان (کفر او شرك) جوړیږي .

۸ په دے کښې تخویف دے مکذب ته او تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته . الرُّجْعَىٰ مصدر دے په معنیٰ دَ رجوع سره دے .

۹ ۱۰ دا دَ مکذب نور صفات قبیحه ذکر کوي . أَرَأَيْتَ دَ پاره دَ تعجب دے عَبْدًا مراد دَ دے نه نبی صلی الله علیه وسلم دے ځکه چه ابوجهل هغه لره دَ مونځ کولو نه منع کووُ نو نکره دَ پاره دَ تعظیم ده یعنی لوئے شان والا بنده یا تنکیر دَ پاره دَ تعمیم دے یعنی هر څوک چه هر چا لره دَ مونځ او طاعت نه منع کوي نو هغوي ته شامل دے لکه چه خازن او شربیني وئیلے دي . إِذَا صَلَّىٰ صلوٰة نه مونځ مراد دے لیکن لوئے رکن په هغے کښې قرآن لوستل دي چه دَ مشرکینو اصل مخالفت دَ قرآن سره وو دَ هغے نه به ئے منع کوله او س هم جاهلان خلق موحدینو لره (ایا تے په بلغ)

عَلَى الْهُدٰىٓ ﴿۱۱﴾ اَوْ اَمَرَ بِالتَّقْوٰى ﴿۱۲﴾

په هدایت باندې ، یا حکم کوي په تقوىٰ سره .

اَرَءَيْتَ اِنْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى ﴿۱۳﴾ اَلَمْ يَعْلَمْ

ایا ته وینې که چرې دې تکذیب کوي او مخ اړوي . ایا دې نه پوهیږي

بِاَنَّ اللّٰهَ يَرٰى ﴿۱۴﴾ كَلَّا لَئِنْ لَّمْ يَنْتَهِ

چه یقینًا الله تعالیٰ لیدل کوي - هیڅ داسې نه ده پکار. که چرې دې منع نه شو

دَ مونځ کولو نه په خپلو مساجدو کښې او دَ قرآن وئیلو نه منع کوي.
او دَ اَرَاَیت دویم مفعول محذوف دے ان یامَنَ مِنَ العقاب (چه بچ په شي دَ عذاب نه).

سلا سلا دا صفات دَ داعي دَ قرآن دي او په دې کښې وعظ دې منع کوونکي ته اِنْ په معنیٰ دَ اذا سره دے. كَانَ ضمیر عبد ته راجع دے.
عَلَى الْهُدٰىٓ اَوْ اَمَرَ بِالتَّقْوٰى او دلته دَ پاره دَ منع الخلو دے یعنی دانبي صلی الله علیه وسلّم دَ دې دواړه حالتونو نه خالی نه دے بلکه دواړه صفتونه پکښې جمع شویدي ځکه پخپله په هدایت باندې دے او نورو خلقو ته دعوت دَ تقوىٰ ورکوي. دَ اَرَءَيْتَ دویم مفعول او دَ اِنْ جزا محذوف ده (فَنَاهِيْهِ هَالِكٌ بِالضَّرُوْرَةِ) نو منع کوونکي دَ دهٔ ضرور تباه دے. او نسفي په مدارک کښې ضمیر دَ كَانَ ناهي ته راجع کړې دے یعنی دا کافر منع کوونکے پخپل خیال کښې په هدایت باندې دے او امر کوونکے دے په شرک سره او هغې ته تقوىٰ وائي او اِنْ په خپله معنیٰ سره دے لیکن په دې توجیه کښې تکلف دے.

سلا سلا په دې کښې زجر دے او نور صفات دَ منکر ذکر کوي.
كَذَّبَ وَتَوَلّٰى کښې ضمیرونه هغه ناهي (کافر) ته راجع دي. كَذَّبَ په اعتبار دَ قول سره او تَوَلّٰى په اعتبار دَ عمل سره دے او دلته هم دَ اَرَءيت مفعول ثاني او جزا دَ اِنْ پټه ده یعنی فَمَا اَعْجَبَ اَوْ اَخْبَثَ حَالَهٗ (نو مره ډیر عجیبه یا ډیر ګنده دے حالت دَ دهٔ). اَلَمْ يَعْلَمْ په دې کښې هم زجر دے مکذب لره. بِاَنَّ اللّٰهَ يَرٰى با ئې دَ پاره دَ تاکید راوړې ده مفعول

لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ ﴿۱۵﴾ نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ

خامخا او به نیسو موږ (ده) تیکلے د سر، تیکلے دروغژن

خَاطِئَةٍ ﴿۱۶﴾ فَلْيَدْعُ نَادِيَهُ ﴿۱۷﴾ سَنَدْعُ

ګنهګار. نو آواز دې اوکړي خپل مجلس والو ته، زر ده آواز به اوکړو موږ

د یړی محذوف دے د تعمیم د پاره یعنی یږی کلّ شیء (هرڅه وینی) نو تکذیب او تولّی او نهی د دے منکر لره وینی او هدایت او تقوٰی د بنده حق پرست سره وینی نو هریو لره به د غه مناسب جزا ورکوی.
۱۵ ۱۶ په دے کښی تخویف اخروی دے مکذّب لره. کَلَّا ردعیه دے یعنی نهی تکذیب او تولّی پکار نه ده. نَسْفَعًا دا نون خفیفه د تاکید دے لیکلے شوے دے په صورت د تنوین کښی او سفع په زور سره نیول او راښکل دی یا تور داغ لګول دی لکه په سورة رحمٰن ۴۱ کښی. بِالنَّاصِيَةِ د سر مخکنی ویښته چه په تندی باندے اویزان کړوی او هغې ته تیکلے وئیلے کیږی او دا د هغه کسانو په سرکښی وی چه ویښته ئې د سنت د نبی صلی الله علیه وسلّم نه په خلاف طریقے سره ساتلے وی او دا طریقه په انګریزی ویښتو د سرکښی وی او اکثر د حق د مخالفینو سرمایه دارو ویښته هم دغسے وی. نَاصِيَةٍ بدل دے د ماقبل نه او ابدال د نکره موصوفه د معروفه نه صحیح دے.
كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ دا صفتونه د ناصیة په اعتبار د صاحب د هغې سره دی لیکن اشاره ده چه د کذب او خطا نخے په تندی او په مخ کښی ښکاره کیږی.
كَاذِبَةٍ په اعتبار د اقوالو سره او خَاطِئَةٍ په اعتبار د افعالو سره.
او خاطئه هغه دے چه قصدًا ګناه هو ته کوی او دے ماخوذ دے او مخطئ هغه دے چه په خطا سره کوی او دے معاف دے.
۱۷ ۱۸ دا هم په تخویف کښی داخل دے یعنی که چرے مکذّب دعوٰی کوی چه زما تابعدار ملګری او مجلس والا شته دے چه هغوی ورسره ده له بازی او مدد کوی نو اشاره کوی چه هغه دے هم را اوبلی لیکن هیڅ فائده نشی ورکولے. نَادِيَهُ نادی مجلس د اجتماع ته (یا تے په بل مخ)

الزَّبَانِيَةَ ﴿١٨﴾ كَلَّا ۭ لَا تُطِعْهُ

| زبانيه | ته | ، | هيچرې داسې نه ده يكار - مه كوه | طاعت | دَ هغه |
|---|---|---|---|---|---|

وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ ﴿١٩﴾ ۩ السجدة

| او | سجده كوه | او ځان نږدې كړه الله تعالىٰ ته - |
|---|---|---|

وئيلې شى خو په دې شرط چه اهل مجلس پكښې موجود وى او دلته مضاف محذوف دې يعنى أَهْلَ نَادِيَهُ - سَنَدْعُ الزَّبَانِيَةَ دا دعوت دَپاره دَعذاب دَ مكذب دې - الزَّبَانِيَةَ دَ زَبَن نه دې او زبن دفعه كول دى په سختئ سره نو دا هغه ملائك دى چه كافرانو لره به ډيكې وركوى او په زور سره به ئې جهنم ته داخلوى لكه په سورة طور ۱۳ كښې تيرشويدى او دَدې ملائكو صفات په سورة تحريم ۶ كښې ذكر شويدى -

۱۹ كَلَّا ردعيه دې يعنى داسې نه ده لكه چه گمان كوى منع كوونكې يا په معنىٰ دَ حقا سره دې - لَا تُطِعْهُ نهى دَپاره دَ دوام او اثبات ده يعنى مخكښې دې هم اطاعت دَهغه نه دې كړې او ائنده دَپاره هم په عدم اطاعت باندې ثابت قدم اوسه يعنى دَ طاغى منع كوونكى هيڅ خبره او نه منې -

وَاسْجُدْ په وخت دَ سخت مخالفت دَ منكرينو كښې الله تعالىٰ ته خاص توجه كول ضرورى دى او هغه په سجده كولو سره دى دلته هم امر دَپاره دَثبات او دوام دې او مراد دَ دې نه صرف سجده كول دى دَ دې وجې نه دلته سجده تلاوت كول ضرورى دى يا ذكر دَ سجدې او مراد ترينه مونځ دې - وَاقْتَرِبْ دا مقصد دَ سجود دې ځكه چه حديث صحيح كښې وارد دى چه اقرب وخت رب تعالىٰ ته وخت دَ سجدې كولو دې او مراد دا دې چه الله تعالىٰ ته تقرب حاصل كړه په قرآن بيانولو سره او سجده كولو سره -

الحمد لله ختم شو تفسير دَ سورة علق په فضل دَ الله تعالىٰ سره

سُوۡرَةُ الۡقَدۡرِ مَکِّیَّةٌ — بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ — اٰیَاتُهَا ۵ رکوعها ۱

إِنَّآ أَنزَلۡنَٰهُ فِي لَيۡلَةِ ٱلۡقَدۡرِ ① وَمَآ أَدۡرَىٰكَ

یقیناً مونږ (شروع کړیدی) نازلول دَدی (قران) په شپه دَ قدر کښې. او څه پوهه درکړیده تا ته

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

## سورة القدر

دَ دے سورت په باره کښې اختلاف دے چه مدنی دے یا مکی دے قرطبی دواړه قولونه ذکر کړیدی لیکن راجح داده چه دا مکی دے لکه چه ابن حیان او اصفهانی وئیلے دی۔

**ربط دَ دے سورت** دَ ماقبل سره دَ دوه وجو نه دے اوله وجه دا ده چه په مخکښې سورت کښې ترغیب وؤ په قراءت دَ قران سره نو په دے سورت کښې دَ هغے علت ذکر کوی یعنی عظمت دَ قران کریم۔ دویمه وجه په مخکښې سورت کښې زجر وؤ منع کوؤنکو ته دَ قران نه نو په دے سورت کښې تسلّی ده قران والو ته راشاره ده چه دَ قران والا مقام ډیر لوئے دے).

**دعوٰی دَ سورت۔** بیان دَ عظمت دَ قران کریم دے ذکر دَ عظمت دَ زمانِ نزول سره۔ ځکه چه عظمت دَ ظرف مستلزم دے عظمت دَ مظروف لره او دا رنګ په عکس سره ده۔ او دَ الله تعالیٰ یو اسم (رب) پکښې ذکر دے او یو صفتِ فعلیه دے۔

**خلاصه دَ سورت۔** ذکر دَ نعمت دَ انزالِ قران دے په لیلة القدر کښې دَ پاره دَ اظهار دَ عظمتِ قران۔ او بیا عظمت دَ لیلة القدر ذکر کوی اجمالًا په ۲ کښې او تفصیلًا په ۳ کښې او نخه دَ عظمت دَ هغے په ۴ ۵ کښې ذکر کوی۔

**تفسیر ۱** إِنَّآ أَنزَلۡنَٰهُ هو ضمیر په اتفاق دَ مفسرینو سره قران ته راجع دے اګرچه دَ هغے ذکر په دے سورت کښې تیر شوے نه دے لیکن په نورو سورتو نو کښې ذکر دے او شیعه ګان چه (رپاتے په بل مخ)

وائي چه دا ضمير علي رضي الله عنه ته راجع دے او اشاره کوي ليلة الهجرة ته نو دا تحريف دے ذکر د علي رضي الله عنه نه صراحةً او نه دلالةً شته دے او زمونږ د قول تائيد په سورة الدخان ۳ او سورة البقره ۱۸۵ کښې تير شويدے او په لفظ د إِنَّآ (تاکيد او صيغه د جمع متکلم) او انزلنٰه (صيغه د جمع متکلم) او ضمير باندے اکتفاء دليل دے په عظمت د قرآن باندے. أَنزَلْنَٰهُ په دے کښې دوه قولونه دي اول قول دا دے چه ټول قرآن په يوکرت سره د لوح محفوظ نه اسمان د دُنيا (بيت العزة) ته نازل کړے شويدے او بيا زمکے ته په درويشت ۲۳ کالونو کښې نازل کړے شويدے. البقاعي په مصاعد النظر ص۲۱ کښې وئيلے دي چه دا روايت د طبراني دے او په دے کښې عمرو بن عبد الغفار راوي دے او هغه ضعيف دے او دارنګ عمران القطان خو په هغه کښې اختلاف دے نو معلومه شوه چه د دے قول د پاره صحيح سند نيشته نو دويم قول صحيح دے هغه دا دے چه دا فعل په معنیٰ د ابتدا سره دے يعني إِنَّا ابتدانا انزاله (شروع کړے دے مونږ انزال د قرآن په دغه شپه کښې) او دا قول د امام شعبي نه نقل دے.

لَيْلَةِ الْقَدْرِ قدر په معنیٰ د تقدير سره دے ځکه چه په دے شپه کښې تقدير د خيزونو تر يو کال پورے ملائکو ته او سپارلے شي او هغوي ئې په خپل کتاب کښې اوليکي. يا قدر په معنیٰ د شرف او عزت سره دے يعني د دے شپے شرافت ډير دے او دارنګ په دے شپه کښې د عبادتونو شرافت او اجر ډير دے يا قدر په معنیٰ د تنګسيا سره دے يعني په دے شپه کښې د ډيرو ملائکو د نزول د وجے نه زمکه په هغوي باندے تنګه شي او هر کله چه دا شپه په دے امت پورے خاص ده لکه چه د صحيح احاديثو نه ثابت ده نو معلومه شوه چه د دے دا قدر او شرافت د وجے د انزال د قرآن نه دے نو د قرآن عظمتِ شان ثابت شو په اعتبار د وخت د انزال د هغهٔ سره.

فائده :- محدثينو په باره د ليلة القدر کښې څه د پاسه څلويښت اقوال ذکر کړے دي ليکن تحقيق زما په نيز باندے دا دے چه ليلة القدر

مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ ﴿٢﴾ لَيْلَةُ الْقَدْرِ ۙ خَيْرٌ مِّنْ

چه څه ده شپه د قدر . شپه د قدر غوره ده د

أَلْفِ شَهْرٍ ﴿٣﴾ تَنَزَّلُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوحُ

زرو میاشتو نه . راکوزیږي ملائیک او روح

دَ رمضان په اخري لسو اوتارو (تاکو) کښ ګرځي رانګرځي یعني کله یو ویشتمه او کله دریشتمه او کله پنځو یشتمه او کله اُویشتمه او کله یو کم دیرشمه وی او اکثر او اکثر اُویشتمه راځي او الله تعالی دا شپه پټه کرځولے ده دَ پاره دَ دے چه مسلمانان په رمضان او بالخصوص په اخري عشره کښ په عبادت کولو کښ ډیر کوشش اوکړي، او دَ هغے دَ پاره څه مخصوص نخه نیشته په یو حدیث کښ دَ هغے په صبا باندے دَ باران ذکر راغلے دے لیکن اکثر محدثین وائي چه دغه یو اتفاقي واقعه وه همیشه دَ پاره دا سے نه ده، او ابن کثیر حدیث دَ امام احمد نه نقل کړیدے چه په هغه شپه کښ سپوګمئ ښکاره وی او دا شپه بالکل صفا وی ګرمي او یخني پکښ نه وی او ستوري پکښ نه ویشتلے کیږي او صباله نمر صفا را اوخیژي چه دَ هغه شعاع نه وی لکه سپوګمئ دَ پنځلسمے شپے بیا ابن کثیر وئیلي دي چه دَ دے سند حسن دے لیکن په متن کښ غرابت دے او په بعض الفاظو کښ نکارت دے او زهٔ وایم چه دَ حدیث دَ باران سره (چه مخکښ ورته اشاره وشوه) هغے سره تعارض هم دے هاں چه نمر راخیژي او شعاع ئې نه وی دا حدیث صحیح دے.

۲ په دے کښ اشاره ده تعظیم دَ لیلة القدر ته اجمالًا او تشویق ورکول دي دَ هغے موندلو ته او دَ فراء نه نقل دے چه کوم ځائے کښ وما ادراك وئیلي دے نو هلته ئې علم ورکړے دے او کوم ځائے چه ما یدریك وئیلي دے نو دَ هغے علم ئې نه دے ورکړے.

۳ په دے کښ عظمت دَ دغه شپے ذکر کوی په تفصیل سره دا اول عظمت دے. اکثر مفسرینو وئیلي دي چه مراد دا دے چه عمل دَ نیکے په دے شپه کښ غوره دے (ثواب او برکات ئې ډیر دي) (پاتے په بل مخ)

فِيْهَا بِاِذْنِ رَبِّهِمْ مِنْ كُلِّ اَمْرٍ ④

په هغه شپه کښې په حکم دَ رب خپل دَ هر کار دپاره کښې .

سَلٰمٌ هِيَ حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ ⑤

شپه دَ امن (سلامتيا) ده، دا تر ختلو دَ صبا پورې ده .

په نسبت دَ دغه عمل کولو په زرو مياشتو کښې چه دَ دغه شپې نه علاوه وی او دا رنګ کوم خير او برکات چه په دې شپه کښې نازليږی نو دَ هغې مثال په زرو مياشتو کښې نه موجوديږی او تخصيص دَ اَلْفِ شَهْرٍ دَپاره بعض مفسرينو دا وجه ليکلې ده چه په مخکنو امتونو کښې عابد به هغه شخص وؤ چه زر مياشتې به ئې دَ الله تعالیٰ بندګی اوکړه او دَدې امت عمرونه خو الله تعالیٰ کم مقرر کړې دی نو دوی لره ئې يوه شپه داسې مقرر کړه چه دَ هغې عبادت دَ زرو مياشتو نه غوره دې او دې ته قريب روايت امام مالک په موطا کښې ذکر کړې دې او زر مياشتې برابر دی دَ درې اتيا کالونو او څلورو مياشتو سره . او بعضو مفسرينو وئيلې دی چه الف شهر کنايه ده دَ ټولې زمانې نه ځکه چه عرب اَلْفِ ذکر کوی دَ غايه دَ خيزونو دَ پاره لکه په اَنْ يُّعَمَّرَ اَلْفَ سَنَةٍ (بقره ۹۶) کښې .

تَنَزَّلُ په دې کښې دويم عظمت ذکر کوی يعنې په دې کښې ډير ملائک نازليږی او نزول دَ ملائکو دَپاره دَ نزول دَ برکاتو دې .

تَنَزَّلُ دا صيغه دلالت کوی چه دا ملائک په يو کرت نه راځی ځکه چه زمکه کښې دَ هغوی دَپاره وسعت نيشته .

اَلْمَلٰٓئِكَةُ عام ملائک دَ ټولو اسمانونو او دَ سدرة المنتهیٰ نه نازليږی .

وَالرُّوْحُ مراد دَ دې نه جبرئيل عليه السّلام دې په طريقه دَ تخصيص بعد التعميم سره او دليل په دې باندې حديث دې چه خازن او شربينی ذکر کړې دې ، چه هر کله ليلة القدر شی نو جبرئيل په يو ډله دَ ملائکو کښې راکوز شی او سلام کوی او دُعا کوی هر هغه بنده ته چه اولاړوی يا ناست وی او الله تعالیٰ يادوی او بعضو وئيلې دی چه روح وئيلې دی چه روح يو بله توعه ده دَ ملائکو او بعضو

وئیلي دي چه مراد دَ دے نه رحمتِ خاصه دَ الله تعالیٰ دے.
بِإِذْنِ رَبِّهِمْ اشاره ده چه ملائک هم دَ الله تعالیٰ اذن ته محتاج دي لکه چه په سورة مریم ۶۴ کښ تیر شویدي مِنْ كُلِّ أَمْرٍ من په معنیٰ دَ بآ سره دے او مراد دَ امر نه هغه کارونه دي چه تقدیر دَ هغے دَ یو کال دَ پاره ملائکو ته سپارلے شوے وي یا مراد ترینه هر خیر او برکت دے.
۵ دا دریم عظمت دَ هغے شپے دے او په دے کلام کښ دوه توجیه دي اوله دا چه سلام خبر مقدم دے او هِيَ مبتداء مؤخر ده او حمل دَ مصدر (سلام) دَ وجے دَ کثرتِ سلامونو دَ ئے په دغه شپه کښ یا په معنیٰ دَ ذات سلامة دے (سلامتیا والا شپه ده). دویمه توجیه دا ده چه سلام خبر دَ مبتداء محذوف دے هذه الليلة سلامٌ. او هِيَ مبتداء ده، حَتّٰى الخ خبر دے. مَطْلَعِ مصدر میمی دے په معنیٰ دَ طلوع سره دے.

ختم شو تفسیر دَ سورة القدر په فضلِ الله تعالیٰ سره

| سُوْرَةُ الْبَيِّنَةِ مَدَنِيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۸ رکوعها ۱ |
|---|---|---|

لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ

نه وُ هغه کسان چه کفر ئے کړیدے دَ اهل

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة البینة او دے ته سورة المنفکین او سورة البریه او سورة لم یکن او سورة البلد او سورة القیامه هم وئیلے کیدیشی ربط دَ دے سورت دَ ما قبل سره په دیرو وجو سره دے، اوله وجه دا ده چه دا پشان دَ علت دے دَ پاره دَ انا انزلناه اه یعنی دا قران مونږ نازل کړو دَ دے وجے نه چه دَ اهلِ کتابو کافران او مشرکانو اصلاح بغیر دَ دے قران نه نه کیدله۔ دویمه وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ دَ قران عظمت ذکر کړے شو نو په دے سورت کښ دَ هغے مقصد ذکر کوی۔ دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ صداقت دَ قران ذکر شو نو په دے سورت کښ صداقت دَ رسول ذکر کوی۔

دعویٰ دَ سورت۔ ذکر دَ نعمت دَ رسالت دے سره دَ زجر نه منکرینو دَ رسالت ته په ۱۔۲ کښ او دَ اسماءِ حسنیٰ نه دوه ذکر دی الله، رب۔

خلاصه دَ سورت دا ده دَ اول نه ذکر دَ ضرورت ( نعمت ) دَ رسالت دَ اخری رسول دے په ۱۔۲۔۳ کښ بیا زجر په تفرق سره په ۴ کښ بیا مقصد دَ قران او دَ رسول په ۵ کښ بیا تخویف اخروی دے منکرینو ته په ۶ کښ او بشارتِ اخرویه دے مؤمنانو ته په ۷۔۸ کښ۔

تفسیر ۱ لَمْ يَكُنْ دا لفظ شامل دے معنی او حال او استقبال ته مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ دَ پاره دَ بیان دے او مراد دَ اهلِ کتابو کافرانو نه

# الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِيْنَ مُنْفَكِّيْنَ حَتّٰى

| حتی | منفکین | والمشرکین | الکتاب |
|---|---|---|---|
| تر دے پورے | پریخو دونکی | مشرکان | او / کتابو نه |

هغه یهود او نصاریٰ دی چه اصل دین ئې حق دے او دعوٰی کوی د کتاب سماوی لکه تورات او انجیل لیکن په دین کښې ئې تبدیل او تحریف کړے دے په عقیده او اعمالو کښې۔

وَالْمُشْرِكِيْنَ په دے کښې دوه اقوال دی اول دا چه دا معطوف دے په اهل کتاب باندے نو مراد د دے نه هغه کافران دی چه د هغوی کتاب سماوی نیشته او اصل دین ئې باطل دے چه هغه عبادت د بُتانو او د نمر او سپوږمئ او ستورو وغیره دے حاصل د فرق دا دے چه کتابی کافر شرک کوی لیکن هغې ته توحید وائی او د شرک د نوم نه نفرت کوی او مشرک کافر هغه دے چه شرک کوی او هغې ته شرک وائی او هغې ته دین حق وائی او په دے معنی سره کتابی ته مشرک نه وئیلے کیږی او بنا په دے قول باندے په معطوف او معطوف علیه کښې مغایرة ذاتی دے او دویم قول دا دے چه المشرکین معطوف دے په اهل کتاب باندے په طریقه د عطف د یوصفت په بل صفت باندے او په دے قول باندے په مینځ د معطوف او معطوف علیه کښې مغایرة صفتیه دے یعنی ذات یو دے او په دے توجیه سره مراد د مشرک نه هر هغه څوک دے چه په عقیده یا عمل کښې ئې یو قسم شرک پیدا شی یعنی شرک فی الربوبیة یا فی الالوهیة یا فی الاسماء والصفات یا فی الحکم نو هغه مشرک دے اگرچه الله تعالٰی منی او کتاب سماوی او دین سماوی منی او نوم د توحید باندے هم اقرار کوی خو په دے معنٰی سره کتابی (چه یو قسم شرک کوی) نو هغه ته هم مشرک وئیلے کیږی ځکه چه یهود عزیر ته ابن الله وائی او نصارٰی عیسٰی ته ابن الله وائی او دا رنګ احبار او رهبان ئې د الله تعالٰی په حکم کښې شریکان کړے دی او په سورة توبه ۳۱ کښې د دوی په اعمالو د شرک اطلاق کړے شوے او په سورة بقره ۱۳۵ او آل عمران ۶۷ کښې ئې دوی ته اشارةً مشرکین وئیلے دی او حدیث د صحیح البخاری د عمر رضی الله عنه رِوایت په بل مخ)

تَاۡتِيَهُمُ الۡبَيِّنَةُ ۝١ رَسُوۡلٌ مِّنَ اللّٰهِ

چه راشي دوی ته دلیل ښکاره ، رسول د طرف د الله تعالیٰ نه

په دے شاهد دے چه هغه ابن ابی الحقیق یهودی ته په هغه وخت وئیلے وو چه د خیبر نه جلا وطن شه ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ او نور احادیث هم په دے باب کښ شته دے. (محاکمه) کوم علماء چه وائي چه کافر کتابی مشرک نه دے نو مراد د مشرک نه اوله معنیٰ ده او کوم اهلِ علم چه وائي چه کتابی (چه یو قسم شرک اوکړی) ته مشرک وئیلے کیدیشی نو دویمه معنیٰ مراد ده نو دا پښان د نزاع لفظی ده او که خوک داسے وائي چه کتابی چه شرک کوی لیکن په هیڅ معنیٰ سره هغه ته مشرک نه وئیلے کیږی نو دا خبره د جهل ده او زمونږ د زمانے بعضِ صوفیان (چه شرک فی الربوبیة او فی الالوهیة کوی) او بریلیان چه په ډیر قسمونو د شرک کښ مبتلا دی د دوی حکم د کتابیا نو پشان دے یعنی په اول معنیٰ سره مشرک نه دی او په دویمه معنیٰ سره مشرک دی.

مُنۡفَكِّيۡنَ انفکاک په ډیرو معانو سره راځی. پریخودل، جدا کیدل، تردد او شک کول، هلاک کیدل په عذاب سره، مهمل کیدل، تفصیل د دے معانو داسے دے اوله معنیٰ چه انفکاک په معنیٰ د هلاکت سره شی، نه دی کافران اهل کتاب او مشرکان هلاک کیدونکی په عذاب د الله تعالیٰ سره تر دے پورے چه دوی ته بینه راشی" نو هر کله چه بینه (رسول او قران) راغے نو دوی تفرق او انکار اوکړو نو اوس د عذاب مستحق شول لکه په سورة اسراء ۱۵ کښ دی. دویمه معنیٰ دا ده چه انفکاک په معنیٰ د تردد او شك سره شی، نه وو کافران کتابیان او مشرکان شک او تردد کوونکی په خپل دین باطل کښ تر دے پورے چه راغے دوی ته رسول او قران نو چا خو ایمان راوړو او چا چه خلاف اوکړو نو د هغوی هم په خپل دین کښ شك او تردد پیدا شو نو متفرق شول. دریمه معنیٰ چه انفکاک په معنیٰ د مهمل والی شی" نو نه وو کتابیان کافران او مشرکان مهمل پریخودلے شوی یعنی په دوی

بانده هیڅ حجت نشی قائم کیدلے او نه به دوی ته د الله تعالی هیڅ حکم راځی) تردے پورے چه دوی ته رسول او قرآن راغے نو حجت ور بانده قائم شو نو بیا دوی تفرق اوکړو۔ څلورمه معنیٰ داده چه انفکاک په معنی د جدا کیدلو او پریخودلو سره شی نو په دے کښ بیا احتمالات دی اول احتمال دادے (او داڅلورمه معنیٰ ده) "چه نه وو کافران کتابیان او مشرکان د یو بل نه جدا کیدونکی (بلکه د دوی د یو بل سره دوستانه وه او د یو بل صفتونه ئے کول) ترد ے پورے چه دوی ته رسول او قرآن راغے نو دوی د یو بل په باطل پرستئ بانده پوهه شول نو تفرق پکښ راغے۔ دوئیم احتمال دادے (او داپنځمه معنیٰ ده) چه نه وو کافران کتابیان او مشرکان جدا کیدونکی (پریخودونکی) مدح کولو او طلب کولو د بعثت د رسول صلی الله علیه وسلم لره ترد ے پورے چه هغه رسول راغے نو تفرق ئے شوروکړو او د هغه رسول مدح کول ئے پریخودله. تائید د دے معنے دادے چه کتابیانو به په نبی صلی الله علیه وسلم سره استفتاح کوله لکه چه په سورۃ بقره ۸۹ کښ د هغے ذکر شویدے او مشرکین عرب به د رسول د راتللو او د هغه د منلو وعدے کولے لکه چه په سورۃ فاطر ۴۲ کښ دی او حدیث صحیح سره ثابت دی چه دوی به د بعثت د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مخکښ هغه ته امین او صادق وئیلو۔ دریم احتمال دادے (او داشپږمه معنیٰ ده) "چه نه وو کافران اهل کتاب او مشرکان جدا کیدونکی او پریخودونکی د کفر او شرک نه ترد ے پورے چه راشی دوی ته بینه (رسول او قرآن)، په مخکښنو توجیهاتو سره تَأْتِيَ (فعل مضارع) په معنیٰ د ماضی سره ده او په دے توجیه کښ تأتی په خپله معنیٰ سره دے۔

سوال:۔ په دے معنیٰ کښ اشکال دے په دوه وجو سره اوله وجه داده چه حَتّٰی د پاره د غایة دے او حکم د غایة خو مخالف وی د مُغَیّا نه (یعنی کافرانو او مشرکانو روستو د راتللو د رسول نه خپل کفر کول پریخودلو) او حال دادے چه دا خو د واقعے نه هم خلاف ده ځکه چه هغوی ټولو کفر نه وو پریخودلے (بلکه بعض ئے په بل مخ)

يَتْلُوا صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ﴿٢﴾ فِيهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ﴿٣﴾

| لولی | صحیفے | پاکے | . | په هغے کښې کتابونه دی پوخ مضمون والا۔ |
|---|---|---|---|---|

او دا رنګ روستو سره منافات راځئ ځکه په هغے ایت کښې خو دَ دوی تفرق او اختلاف ذکر شویدے او دویم اشکال دادے چه منفکین مطلق دے دا سے ذکر نیشته چه دَکوم یو څیز نه انفکاک دے؟

جواب:۔ دَ دویم اشکال جواب واضح دے یعنی عن کفر هم په دے کښې محذوف دے او دَ اول اشکال جواب په درے طریقو سره دے اوله طریقه دا ده چه دا متفقه خبره نه ده چه حکم دَ غایة دے مخالف وی بلکه حکم دَ غایة مسکوت عنه وی۔ دویمه طریقه، زمخشری وئیلے دی چه دا حکایت دے دَ قول دَ کتابیانو او مشرکانو نه ګویا چه یقولون په ابتداء دَ سورت کښې پټ دے یعنی دوی به وئیل چه موږ خپل دین نه پریږدو تر دے پورے چه مونږ ته رسول راشی لیکن روستو دَ راتللو دَ رسول نه دوی دَ خپلے وعدے نه خلاف اوکړو او تفرق ئے اختیار کړو او دا جواب خازن هم غوره کړے دے۔

او دریمه طریقه دا ده چه حتی په معنیٰ دَ وَاِنْ (وصلیه) سره ده په معنیٰ دَ غایة نه دے خو په دے معنیٰ باندے خازن رد کړے دے۔ او هر کله چه مختلف معانے اوکړے شی نو بیا دا اشکال نه راځی۔

دا تفصیل په دے وجه سره اوشو چه واحدی په کتاب البسیط کښې وئیلے دی چه دا ایت په قرآن کریم کښې سخت ګران ایت دے په اعتبار دَ نظم او تفسیر سره لیکن په دے تفصیل سره هغه ګرانوالے زائله شو (رحمه الله تعالیٰ)۔

الْبَيِّنَةُ هغه دلیل دے چه په وضاحت کښې پشان دَ رڼا کوونکی صبا وی چه څومره باقی وی نو رڼا ئے ډیریږی او مصداق دَ دے رسول الله صلی الله علیه وسلم دے سره دَ قرآن کریم نه۔

۲-۳ دا تفسیر دَ بینة دے او په ترکیب کښې بدل دے دَ بینة نه ځکه دا لفظ دَ تذکیر دَ پاره هم استعمالیږی یا خبر دَ مبتداء محذوف دے۔

يَتْلُوا معلومه شوه چه افضل عبادت دَ قرآن لوستل او بیانول دی۔

وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ

(او نه دي وړلې وړلې شوي هغه کسان چه ورکړے شوي دي ورته کتاب (کتابيان)

اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ ۝۴

مګر روستو د دینه چه راغے دوی ته دلیل ښکاره ۔

صُحُفًا ذکر د محل او مراد ترینه حال دے یعنی هغه وحی چه په صحیفو کښ ده او نبی صلی الله علیه وسلم به هغه په یادو باندے لوستلو او مراد د دے نه صحف د ملائکو دی لکه په سورة عبس ۱۳ ۔ ۱۴ کښ تیر شوی یا صحف د مصحف شریف مراد دی په اعتبار د مایوؤل الیه سره یې وئیلے دی یعنی دا سے کتاب چه روستو به په صحیفوکښ په جمع سره لیکلے کیږی ۔ مُطَهَّرَةً پاکے دی د مضمون د شرک او کفر او نامناسبو خبرو نه او د غلط نه ۔ فِيْهَا كُتُبٌ مراد د دے نه احکام الٰهیه دی ۔ قَيِّمَةٌ په معنیٰ مستقیمة سره دے یا مراد د کتب نه سورتونه دی ځکه چه هر سورت د قرآن په منزله د کتاب دے د دے وجے یې د سورة یوسف او سورة رعد او سورة حجر وغیره په سر کښ تلك ایات الكتاب وئیلے دی ۔

۴ دا زجر دے په تفرق او په اختلاف سره روستو د اقامة د حجت نه او د اُوْتُوا الْكِتٰبَ تخصیص یې د دے وجے نه اوکړو چه منشأ د اختلاف اهل علم وی او عوام خلق د هغوی مقلدین وی ۔ تفرق دا دے چه بعضو ایمان راوړو او بعضو کفر اوکړو پکار دا وو چه ټولو ایمان راوړے وے او چا چه کفر اوکړو نو هغوی په مقتضیٰ د حدیث الفرق سره د یهودو یو اویا ډلے او د نصاریٰ دوه اویا ډلے جوړے شوے ۔

اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ د دے پشان په سورة شوریٰ ۱۴ کښ ذکر شوی دی ۔

فائده ۔ اختلاف او تفرق کښ فرق دا دے چه لفظ د اختلاف صرف په مخالفت کولو د یو بل نه دلالت کوی برابره خبره ده که د عقیدے او د عمل اختلاف وی او که نه وی ۔ او لفظ تفرق دلالت کوی په اختلاف د عقیدے او د اعمالو سره او اشاره وی ډیرو فرقو پیدا کیدلو ته ۔

وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ

او نه دے حکم کړے شوے دوی ته مګر د پاره د دے چه بندګی د کوی د الله تعالی خالص کوونکی

لَهُ الدِّيْنَ ۙ حُنَفَآءَ وَيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ

هغه لره بندګی ، کلک په توحید باندے او پابندی دِ دے کوی دَ مونځ

وَيُؤْتُوا الزَّكٰوةَ وَذٰلِكَ دِيْنُ الْقَيِّمَةِ ۝۵

او ورکوی دِ دے زکوٰة او دا دین دے دَ کلکو خلقو.

ـ۵ په دے کښ تاکید دَ زجرِ سابق دے یعنې دوی دَ دین اتفاقی اجماعی نه (چه دین قیّم دے) تفرق کړے دے. وَمَآ اُمِرُوْٓا مراد دَ دے نه امر کول دی په کتابونو مخکنو کښ یعنې دا دین دَ ټولو کتب الٰهیهٔ دین دے او دَ ټولو انبیاء علیهم السلام دین دے یا مراد دا دے چه دوی ته په دَ قران کښ امر دَ دے څیزونو شوید ے او حال دا چه دَ دوی په کتابونو کښ هم هغه څیزونه ووُ نو ولے انکار کوی. اِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ مراد دَ عبادت نه توحید دے لکه چه قرطبی او شربینی وئیلے دی. مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ دین په معنیٰ دَ عبادت سره دے، اخلاص کول دَ عمل دی دَ الله تعالی دَ پاره بغیر دَ ریاء او سمعت او نورو اغراضو دنیویو نه او محل دَ دے قلب (زړه) دے نو دا مرادف دے دَ نیت شرعیه سره نو دَ دے نه علماؤ استدلال کړے دے چه په هر عبادت کښ نیت شرط دے لکه چه په حدیث صحیح کښ راغلے دی "انما الاعمال بالنیات".
حُنَفَآءَ حنف میلان دے دَ ګمراهئ نه استقامت ته لکه چه امام راغب وئیلے دی. او ابن قیم وئیلے دی چه حنیف مقبل (متوجه) علی الله او معرض عمّا سواه ته وئیلے کیږی یعنې په دے کښ ازدواج دَ دوه معانیو دے اول دَ ګمراهئ نه ږج کیدل او دویم په دین توحید باندے پخیدل. او شربینی وئیلے دی چه حنیف هغه دے چه پنځو ملتونو دَ اصولو نه برئ وی. یهودیت، نصرانیت، صابئیت، مجوسیت او دَ شرک ټول اقسام.
سوال:۔ لفظ دَ مخلصین په توحید دلالت کوؤ نو لفظ حنفاء ئے ولے

إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ

یقینًا هغه کسان چه کفرئې کړیدے دَ کتاب والو نه

وَالْمُشْرِكِيْنَ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ

او مشرکان په اُور دَ جهنم کښې به وی همیشه به وی

فِيْهَا ؕ اُولٰٓئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ ؕ ﴿۶﴾

په هغې کښې - دغه کسان دوی بد تر دی دَ مخلوق نه -

ذکر کړو ؟

جواب:- په مخلصین کښې توحید دَ عقیدے مراد دے او حنفاء کښې توحید په طریقه (کیفیت) کښې مراد دے حاصل دا چه په عبادت کښې توحید وی او طریقه دَ انبیاء علیهم السلام وی - وَ يُقِيْمُوْا دا عطف دے په لیعبدوا باندے په حذف دَ لام سره او دا ذکر دَ اعمالو دے روستو دَ عقیدے نه وَذٰلِكَ دِيْنُ الْقَيِّمَةِ ذلك مجموعه درے واړو ته راجع دے او لفظ دَ ذٰلك په عظمت دَ مشار الیه باندے دلالت کوی. دِيْنُ الْقَيِّمَةِ دا اضافت دَ موصوف دے صفت ته او القیمة مؤنث دے ځکه چه دین په معنیٰ دَ ملت سره دے یعنی الملة المستقیمة یا مضاف محذوف دے یعنی دین الکتب القیمة. یا دین الملة القیمة او بغوی وئیلی دی چه مراد دا دے چه دا دین دَ هغه خلقو دے چه کلک دی په توحید باندے او هر کله چه ذٰلك اشاره دَه درے واړو ته نو اهل علمو دَ دے نه استدلال کړے دے چه اعمال داخل دی په ایمان کښې.

۶ په دے کښې تخویف اخروی دے منکریتو دَ پاره - وَالْمُشْرِكِيْنَ په حال دَ نصب کښې دے معطوف دے په الذین کفرو باندے یا په حال دَ جر کښې دے عطف دے په اهل الکتاب باندے -

شَرُّ الْبَرِيَّةِ دَ برء نه دے په معنیٰ دَ پیدا کولو سره نو بریة ټول مخلوق دی ملائک او جن پکښې هم داخل دی یا دَ بَرَیٰ نه دے (بغیر دَ همزه) نه خاورو نه وئیلے شی نو بریه صرف انسانانو ته وئیلے کیږی ځکه چه دوی دَ خاورو نه پیدا دی لیکن اول قول راجح په بل مخ)

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

یقیناً هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے او عملونه ئې کړیدی د سنت برابر

أُولَٰئِكَ هُمْ خَيْرُ الْبَرِيَّةِ ۝٧ جَزَاؤُهُمْ

دغه کسان دوی ډیر غوره دی د مخلوق نه . بدله د دوی

عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّاتُ عَدْنٍ تَجْرِي

په نیز د رب د دوی جنتونه د همیشوالی دی چه بهیږی به

مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا

لاندے د هغې نه ویالے (نهرونه) همیشه به وی په هغې کښې همیشه .

غوره دے په قرینه د سورة انفال ۲۲ ۵۵ سره . بیا د دے ایت په مصداق کښې د مفسرینو دوه قولونه دی اول قول دا دے چه دا عام دے ټولو زمانو نه او ټولو کافرانو کتابیانو او مشرکانو نه او دویم قول دا دے چه دا خاص دے په زمانه د نبی صلی الله علیه وسلم پورے لکه چه وَانِّی فضلتکم عَلَی العالمین خاص دے په زمانه د موسی علیه السلام پورے لیکن اول قول صحیح دے .

ف ۸ په دے کښې بشارت اخرویه دے مؤمنانو د پاره خَيْرُ الْبَرِيَّةِ په لفظ د بریه او لفظ د خیر کښې دوه قولونه دی چه په شرالبریة کښې ذکر شول بنا په اول قول باندے دا دلیل دے چه عام مؤمنان د عامو ملائکو نه غوره دی . عَدْنٍ اقامة ته وئیلے شی یعنی دوی به د هغې نه سفر کول نه غواړی او نه به تړینه ویستلے کیږی .

وَرَضُوا عَنْهُ په دے کښې اشاره ده چه د دوی ټولے تمنا گانے به پورة کیږی د دے وجے نه په رضا وی ، یا په ثواب د الله تعالی سره به رضا وی . ذَٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهُ د دے جملے په راوړلو کښې یو فائده دا ده چه ابتداء د ایت په باره د صحابه کرامو کښې نازل شویوؤ نو په دے جمله کښې ئې د روستو امت ذکر اوکړو بله فائده دا ده چه د ایمان او عمل صالح سره ئې خشیت شرط کړے دے ځکه چه

رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ۭ ذٰلِكَ

رضا دے اللہ تعالیٰ دَ دوی نه او دوی رضا دی دَ هغه نه . دا

لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهٗ ۝۸

هغه چا لره چه یره کوی دَ رب خپل نه .

خشیت کښ امتثال دَ ټولو اوامرو او اجتناب دَ ټولو منهیاتو نه داخل دے موافق دَ استطاعت سره او دا سے خشیت دَ صفاتو دَ انبیاؤ او دَ مؤمنانو نه دے لکه په سورة احزاب ۳۹ او سورة یٰس ۱۱ او ق ۳۳ کښ ذکر دی او نورهم ایاتونه شته دے او دا خشیت په طریقه دَ حصر سره مراد دے لکه په مائده ۴۴ کښ . او شربیني په تفسیر سراج المنیر کښ ډیرے مرتبے ذکر کړے دی اوله مرتبه خوف ، دویمه وَجَل ، دریمه رَهَب ، څلورمه هیبت ، پنځم خشیت او دَ دے فرق ئے ذکر کړے دے هغه هلته اوګورئے .

الحمد للّٰه ختم شو تفسیر دَ سورة البینة په فضل دَ اللّٰه تعالیٰ سره

| ایاتها ۸ / رکوعها ۱ | بسم الله الرحمن الرحيم | سُوْرَةُ الزِّلْزَالِ مَدَنِيَّةٌ |
|---|---|---|

إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ زِلْزَالَهَا ﴿١﴾ وَأَخْرَجَتِ

هر کله چه او خوزولے شي زمکه (ښوله) په خوزولو دَ هغې سره، او را اوباسي

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة الزلزال او دے ته سورة الزلزلة او سورة اذا زلزلت هم وئیلے کیدیشی۔

ربط دَ دے سورت دَ مخکښ سره په درے وجو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښ سورتونو کښ (دَ سورة الضحیٰ نه) درے اصول دَ ایمان ذکر شول، رسالت، توحید او قرآن نو په دے سورت کښ څلورم اصل ذکرکوی چه هغه اثبات دَ بعث بعد الموت دے۔ دویمه وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ زجر ووُ منکرینو ته نو په دے سورت کښ تخویف اخروی دے دَ پاره دَ منکرینو۔ دریمه وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ شر البریه او خیر البریه ذکر شول نو په دے سورت کښ دَ هغوی احوال ذکرکوی په ورځ دَ جزاء کښ۔

دعوی دَ دے سورت۔ اثبات دَ قیامت دے په ذکر دَ احوالو دَ هغې سره چه هغه پنځه دی او نوم دَ الله تعالیٰ یو (رب) ذکر دے۔

خلاصه دَ دے سورت۔ په دے کښ پنځه حالات دَ قیامت (چه هغه احوال دی) ذکر کوی۔ ۱ زلزال۔ ۲ اخراج الاثقال۔ ۳ تحدیث بالاخبار والاحوال۔ ۴ تشتیت الناس وصدورهم لِإِرَاءَةِ الْأَعْمَالِ۔ وملاقات کلّ انسان مع الاعمال۔ او په مینځ کښ حیرانتیا دَ انسان ذکر کړے ده۔

تفسیر ۱ دا اول حال دے او دَ دے زلزلے ذکر په سورة حج ۱ او سورة واقعه ۴ او سورة مزمل ۱۴ کښ هم تیر شویدے او په دے زلزله کښ دَ مفسرینو دوه قولونه دی اول دا چه دا یوځ

الْاَرْضُ اَثْقَالَهَا ۝ وَقَالَ الْاِنْسَانُ مَا لَهَا ۝

| زمکه | بوجونه خپل ، | او اوبه وائي | انسان | څه او شو دے لره - |
|---|---|---|---|---|

په وخت دَ فنا دَ دنیا کښې ـ مخکښې دَ ورځ دَ قیامت نه دَ علامانو دَ قیامت نه
په وی لکه چه دا اول قول وؤ په ایت دَ سورة حج کښې او دویم قول دا دے
چه دا په وخت دَ بعث بعد الموت کښې ده او دا قول مناسب دے دَ روستو
يَوْمَئِذٍ سره چه دوه کرته ذکر دے او هغه خو ورځ دَ قیامت ده -
زِلْزَالَهَا مفعول مطلق مضاف دے مفعول ته په دیکښې اشاره دَه چه دا زلزله
په ټوله زمکه باندے وی یو ځائے پورے به خاص نه وی -
۲ دا دویم حال دے او نسبت دَ اخراج زمکے ته مجازی دے فاعل
حقیقي خو الله تعالٰی دے او هرکله چه دَ زلزلے په باره کښې اول قول
واخستلے شي نو دَ اثقال نه مراد به خزانے دَ زمکے وی لکه چه په حدیث
دَ مسلم کښې وارد دی چه مخکښې دَ قیامت نه به زمکه دَ سرو او سپینو زرو
لوئے لوئے ټکړے را اوغورځوی پشان دَ ستنو لیکن خلق به دَ وجے دَ
هیبتونو نه یا دَ ډیرمالونو نه دَ هغے نه بے پرواه وی. او که چرے دویم قول
واخستلے شي نو مراد دَ اثقال نه مړی دی چه په ورځ دَ قیامت به دَ زمکے
نه دوباره راوبستلے شي. اَثْقَالَهَا کله چه بوج دَ پاسه وی نو علیها ویلے
کیږي او کله چه دننه وی نو په لَهَا او په اضافت سره استعمالیږی لکه
چه دلته دے -
۳ په دے کښې حیرانتیا او تعجب دَ انسان ذکر کوی اشارت ده چه دَ
زلزلے او دَ اثقال راوتولو به ډیر هیبت وی په انسان باندے -
الْاِنْسَانُ هرکله چه په زلزله کښې اول قول وی نو انسان عام دے
کافر او مؤمن دواړو ته شامل دے او که دویم قول وی نو مراد
دَ انسان نه صرف کافر دے ځکه چه دے کافر په دنیا کښې انکار
کړے وؤ دَ دے حالت نه -

يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا ④ بِأَنَّ رَبَّكَ

پداغه ورځ بیانوی به خبرونه خپل ، په دے وجه چه رب ستا

أَوْحَىٰ لَهَا ⑤ يَوْمَئِذٍ يَصْدُرُ النَّاسُ

حکم کړیدے هغې ته - په دغه ورځ به راادځي خلق (د قبرونو نه)

أَشْتَاتًا لِّيُرَوْا أَعْمَالَهُمْ ⑥ فَمَن يَعْمَلْ

مختلف ډلے، د دے دپاره چه اوخودلے شی دوی ته عملونه دَ دوی. نو چا چه عمل کړیدے

سک ۵ په دے کښ دریم حال ذکر کوی او مراد دَ یومئذٍ نه ورځ دَ قیامت ده او په حدیث دَ ترمذی کښ وارد دی چه مراد دَ دے نه شهادت ورکول دَ زمکے دی په هغه عملونو باندے چه انسان دَ دے په شا باندے کړے دی او دا پنا دے په اول قول باندے او دا صحیح دے او پنا په دویم قول باندے مراد دَ تحدیث الاخبار نه ښکاره کول دَ حالاتو دی لکه زلزله اوخزانے راوتل وغیره.

بِأَنَّ رَبَّكَ أَوْحَىٰ لَهَا په اول قول سره مراد دَ ایحاء نه توفیق دَ خبرو کولو دے یعنی الله تعالی به دا زمکه گویا کړی لکه په حم سجده سلا کښ دی او پنا په دویم قول سره مراد دَ ایحاء نه امر کول دی او إِلَيْهَا او لَهَا دواړه په دا سے ځائے کښ استعمالیدے شی.

سلا دا څلورم حال دے یومئذٍ نه مراد ورځ دَ قیامت ده او لفظ دَ إِذٍ کښ جدا جدا احوال مراد دی یعنی په اول اذ کښ زلزله او اخراج الاثقال ته اشاره ده او په دے إذ کښ تحدیث الاخبار مراد دے.

يَصْدُرُ النَّاسُ ، صدور روستو دَ ورود نه وی لکه چه گودر ته اوبو ته لاړ شی او بیا دَ هغې نه واپس راځي دلته هم دَ مفسرینو دوه اقوال دی اول دا چه ټول خلق به موقف دَ حساب ته راغلے وی نو دَ هغې نه به جنت یا جهنم طرف ته روان شی دویم دا چه دَ قبرونو نه او دَ زمکے نه به واپس شی یعنی ژوندی به کړے شی لیکن په دے قول سره په کلام کښ تقدیم او تاخیر لازمیږی او تکرار هم راځي ځکه چه مخکښ اخراج الاثقال سره هم دا مقصد وو۔ أَشْتَاتًا جمع

مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ ⑦ وَمَنْ يَّعْمَلْ

په مقدار دَ ذرّے نیکی او به وینی هغه. او چاچه عمل کړیدے

مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ ⑧

په مقدار دَ ذرّے بدی او به وینی هغه.

دَ شتّ یا دَ شتیت ده په دے جمع ذکرکولوکښ اشاره ده ډیرو ډلو ته یعنی په اهل جنت کښ به هم ډیرجماعتونه وی او اهل جهنم کښ هم لکه په سورة زمرکښ سره دے کښ.

لِيُرَوْا اَعْمَالَهُمْ مراد دَ دے نه نفس عملونه دی یا جزاء دَ عملونو ده یا کتابونه دَ اعمالو دَ دوی دی.

ف ـ دا پخعم حال دے او فآء یئے ذکرکړے دَ پاره دَ تفصیل دَ دے قول چه لیروا اعمالهم دے او په حدیث دَ صحیح بخاری کښ دے ته ایت فاذه جامعه وئیلے شویدے ( یعنی مستقل ایت دے چه ټول وجوه دَ خیر او شر پکښ راجمعه دی ).

په حدیث دَ مسند احمد کښ دی چه نبی صلی الله علیه وسلم دا ایت په صعصعه رضی الله عنه باندے اولوستلو نو هغه اوئیل چه دا ماله پوره دے پرواه نیشته که نوروا لوځم.

ذَرَّةٍ تری سور میږی ته وئیلے کیږی چه په نظر باندے په ډیر مشکله سره راځی او نورے معانے یئے هم شته دے. په دے لفظ کښ اشاره ده چه خیر او شر که لګ وی خو معمولی یئے ګنړل نه دی پکار او مراد دَ رؤیت دَ عمل نه نفس عمل لیدل دی یا جزا سزا دَ هغے.

سوال:- بعض انسان عمل دَ خیر اوکړی لیکن هغه په شرک یا بدعت سره برباد شی او دا رنګ بعض انسان عمل دَ شر کړے وی لیکن توبه اویاسی یا بغیر دَ توبے نه یئے الله تعالیٰ معاف کړی نو دا دواړه ایاتونه څه رنګ دلالت کوی په عموم باندے؟

جواب:- اول دا دے چه مراد تر دینه نفس عمل لیدل دی (پاتے په بل مخ)

نو که خیر ئې برباد شوے وی نو هغه به هم اوینې دَ پاره دَ زیات
حسرت کولو او که شر ئې معاف شوے وی نو هغه به هم اوینې دَ پاره
دَ زیاتے خوشحالئ - دویم جواب دا دے چه دا مطلق په سبب دَ نور
نصوصو سره مقید دے یعنې هغه خیر به اوینې چه حبط شوے نه
وی او هغه شر به اوینې چه معاف کړے شوے نه وی - دریم جواب
خازن دَ محمد بن کعب القرظي نه روایت نقل کړے دے چه کافر چه
دَ خیر عمل کړے وی نو دَ هغې ښه اثر به په دُنیا کښې په خپل نفس او
اهل و مال کښې اوینې او آخرت کښې به ئې اجر نه وی او مؤمن چه
دَ شر عمل کړے وی نو دَ هغې بد اثر به په دنیا کښې په خپل نفس
او اهل و مال کښې اوینې او معاف به شي نو آخرت کښې به دَ هغې سزا
نه وی - او دا آیت پشان دَ آیت دَ سورة آل عمران ۳۰ دے -

ختم شو تفسیر دَ سورة الزلزال په فضل دَ الله تعالیٰ سره

سُوْرَۃُ الْعٰدِیٰتِ مَکِّیَّۃٌ | بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | اٰیَاتُھَا ۱۱ رُکُوْعُھَا ۱

وَالْعٰدِیٰتِ ضَبْحًا ﴿۱﴾ فَالْمُوْرِیٰتِ قَدْحًا ﴿۲﴾

قسم دے په منډه وهونکو اسونو چه هیتریږی ، بیا اور راویستونکی دی په خپو وهلو سره ،

بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

## سورة العادیات

ربط دَ دے سورت دَ ماقبل سره په دوه وجو سره دے اوله وجه داده چه په هغه سورت کښ تخویف اخروی وو او په دے سورت کښ زجر دے منکرینو ته دویمه وجه دا ده چه دَ دے سورت په ۹ کښ تفسیر دَ سورة زلزال دَ ۲ دے او په ۱۰ کښ تفسیر دَ سورة زلزال دَ ۸ دے۔

دعوی دَ سورت ۔زجر دے په درے طریقو سره، سرهٔ دَ تخویف اخروی نه په درے طریقو سره او دوه اسماءدَ اللّٰه تعالٰی یٔ رب اوخبیر ذکرکړی دی

خلاصه دَ سورت ۔ پنځه حالات دَ اسونو په طور دَ قسم شهادت ذکرکوی تر ۵ پورے بیا دعوی دَ سورت ده په ۶ کښ او دَ هغه دعوے تاکید دے په ۷ ۸ کښ او دا ټول زجرونه دی او بیا تخویف اخروی دے په ۹ ۱۰ کښ او دَ هغے تاکید دے په ۱۱ کښ

فائده :۔ دَ دے سورت نه تر سورة ماعون پورے په اوؤ سورتونو کښ زجرونه دی دشمنانو دَ قران ته او دَ هغوی اقساموته اشاره کوی او دَ هغوی صفات او حالات ذکر کوی صرف سورة القارعه په مینځ کښ په طور دَ تخویف اخروی سره دے۔

تفسیر ۱ دا قسم دے په صفاتو او احوالو دَ اسونو باندے په روایت دَ ابن عباس رضی سره او احوال دَ اوښانو دے په روایت دَ علی رضی اللّٰه عنه سره او مقصود په دے کښ شهادت پیش کول دی په دعوی دَ سورت باندے ۔کافرانو په زمانه دَ جاهلیت کښ په

فَالْمُغِيْرٰتِ صُبْحًا ﴿۳﴾ فَاَثَرْنَ بِهٖ نَقْعًا ﴿۴﴾

بیا لوټ مار کوونکی په وخت دَ صبا کښې ، نو را اوچتے کړی په هغے سره دوړے ،

یو بل بانـدے دَ اسونو او اوښانو په ذریعے سره حملے کولے او لوټ مار یے کوو دَ پاره دَ ظلم او دَ غصب دَ مالونو ، او په اسلام کښې مجاهدین اسونه او اوښان استعمالوی دَ پاره دَ جهاد او غزوه کولو دَ کافرانو او دشمنانو دَ دین سره نو یو اله او سبب دے څوک تربنه غلطه فائده اخلی او څوک تربنه حقه فائده اخلی په دے بانـدے نور څیزونه هم قیاس دی لکه مال او اسلحه او علم او قوت دَ بدن وغیره څوک دا څیزونه دَ ښهٔ کار دَ پاره استعمالوی او څوک یے دَ بد کار دَ پاره نو ذکر دَ اسونو او اوښانو په طریقه دَ مثال سره دے - او په دے ایاتونو کښې پنځه حالات دَ اسونو او اوښانو په ترتیب سره ذکر کوی ، اول حال دا دے وَالْعٰدِيٰتِ ضَبْحًا عادیات دَ عدو نه ماخوذ دے په معنیٰ دَ منډے وهلو سره څکه چه په وخت دَ حمله کولو کښې منډے وهی ضَبْحًا آواز دَ سینے دَ آس دے په وخت دَ منډه وهلو او خاصکر په هغه حال کښې چه خُلے ته یے واگے اچولے شوی وی ۔ دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه صرف آس او سپے او لومبړ ضبح کوی بل څناور نه کوی او که اوښان مراد وی نو ضبح او کدول دَ ستونو دی په وخت دَ منډه وهلو کښې ۔ او ضَبْحًا مصدر مفعول مطلق دے دَ پاره دَ فعل پټ یعنی تضبح ضبحا یا حال په معنیٰ دَ اسم فاعل سره دے ۔

۲ دا دویم صفت (حال) دے اَلْمُوْرِيٰتِ دَ وری نه اخستلے شوی او هغه دَ یو څیز نه اور راویستل دی ۔ قَدْحًا منصوب دے په شان دَ ضبحا ، او قدح هم په اصل کښې راویستلو ته و ئیلے کیږی مراد دا دے چه آسونه په سخته منډه کښې سُوَے خپلے دَ کانړو سره جنګوی نو دَ هغے نه اور راوباسی په دے کښې اشاره ده تیزے منډے وهلو ته ۔

۳ دا دریم حال دے او دا مقصد دَ منډے وهلو دے یعنی په دشمن بانـدے حمله کوی او لوټ مار کوی ۔ صُبْحًا دا منصوب دے په ظرفیت سره یعنی وقت الصبح او دا تخصیص پنا په عادت دَ حمله کوونکو

فَوَسَطْنَ بِهٖ جَمْعًا ﴿۵﴾ اِنَّ الْاِنْسَانَ لِرَبِّهٖ

نو ورننوځي په هغې سره په ډله دَ دښمن کښې، یقیناً انسان خپل رب لره

لَكَنُوْدٌ ﴿۶﴾ وَاِنَّهٗ عَلٰى ذٰلِكَ لَشَهِيْدٌ ﴿۷﴾

ډیر ناشکره دے. او یقیناً هغه په دے باندے خامخا خبردار دے.

سره دے چه دَ شپې په وخت کښې آسونه او زغلوی نو دَ صبا په وخت کښې په دشمن باندے حمله اوکړی.

ٔ دا مخلورم حال دے په ضمیر راجع دے العدو (منہاه وهل) ته او باء سببیه ده یا ضمیر راجع دے مکان دَ حملے کولو ته او باء په معنیٰ دَ فيْ سره ده یا راجع دے فعل دَ اغارے ته نو بیا هم باء سببیه ده نَقْعًا په معنیٰ دَ غبار سره دے او په معنیٰ دَ چغې وهلو سره هم راځی.

فائده :- مخکښې اسمونه په معنیٰ دَ فعلونو سره دی ذَ دے وجے نه دا جمله ئي په صیغه دَ فعل سره په ماقبل باندے عطف کړیده او دا ئي په صیغه دَ فعل سره ذَ دے وجے نه ذکر کړے چه تیرشوے کارونه دَ آسونو همیشه او عادةً وی او دوړے پورته کول کله کله وی.

ۃ دا پنځم حال دے په ضمیر نقع یا عدْو یا مکان یا وقت ته راجع دے. جَمْعًا مفعول دے مراد ترینه ډله دَ دشمنانونه ده.

ٔ دا جواب قسم دے او اول زجر دے او دَ الْاِنْسَانَ نه مراد منکر انسان دے په قرینه دَ مابعد صفاتو سره. لَكَنُوْدٌ دَ دے لفظ لس معانے قرطبی ذکر کړے دی ۱ ناشکری کوونکے ۲ هغه کس چه مصیبتونه ذکر کوی او نعمتونه هیروی ۳ هغه کس چه یوا زے خوراک کوی او بخشش نه ورکوی او په خپل مریانو (خادمانو) باندے ظلم کوی ۴ گنهگار. ۵ بخل کوونکے ۶ منع کوونکے دَ حقوقو ۷ خرچ کوونکے نعمتونو دَ الله تعالیٰ لره په گناهونو کښې ۸ هغه کس چه نعمتونه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه نه گنړی ۹ حسد او کینه کوونکے ۱۰ هغه کس چه دَ خپل ځان قدر نه پیژنی. دا منکر انسان دَ دے ټولو معانو مصداق دے خو ه معنیٰ اوله او اوومه ده یعنی ناشکری په دا سے (رپاڅے په بل مخ)

وَإِنَّهٗ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيْدٌ ۞۸ اَفَلَا يَعْلَمُ

او يقيناً هغه (انسان) دَ وجې دَ مينې دَمال نه ډير سخت دے . آيا نه پوهيږي هغه

طريقه کوي چه نعمتونه دَ الله تعالىٰ په گناهونو کښې استعمالوي ځکه چه دا معنىٰ دَ قسم سره ډير مناسبت لري او مناسبت دَ قسم او جواب قسم دا دے چه اسونه او اوښان الله تعالىٰ دَ خير دَ پاره پيدا کړے دي ليکن ظالمان انسانان ئې دَ ظلم کولو دَ پاره مستعملوي او دا ناشکري ده نو دا رنګ هر انسان چه نعمتونه دَ الله تعالىٰ بے مصرفه او بے ځايه استعمالوي نو هغه کنود دے نو هر مشرک کنود دے، او اسراف کوونکے کنود دے، او ظالم چه خپل قوت بدني او مالي دَ ظلم دَ پاره استعمالوي نو کنود دے، او عالم چه علم بے ځايه استعمالوي (عمل نه کوي دعوت نه کوي) نو کنود دے. نو حاصل دَ دعوے دَ سورت دا دے چه څوک هغه اسباب او آلات چه الله تعالىٰ ورکړے دي په غير دَ رضا دَ الله تعالىٰ او په خلاف دَ سنت دَ نبي صلى الله عليه وسلم کښې استعمالوي نو هغه مستحق دَ دے زجر دے او هغه دَ دين او دَ قرآن دُشمن دے.

ــــ دا دويم زجر دے او ضمير دَ إِنَّهٗ دغه انسان ته راجع دے او ذٰلِكَ اشاره ده حال دَ کنود ته. او شَهِيْدٌ نه مراد شهادت په لسان حال سره دے يعني حال او اعمال دَ دے انسان گواهي ورکوي چه دَ کنود دے يا دا تخويف دے او ضمير راجع دے الله تعالىٰ ته يعني الله تعالىٰ دَ دهٔ په ناشکرئ باندے بنيهٔ عالم دے هغه به ورله سزا ورکوي.

ــــ دا دريم زجر دے او په دے آيت کښې دوه اقوال دي دَ مفسرينو اول قول دا دے چه شديد په معنىٰ دَ سخت او پوخ دے او لِحُبِّ الْخَيْرِ متعلق دے په شديد پورے يعني دا انسان په محبت دَ مال کښې ډير پوخ او سخت دے. دويم قول دا دے چه شديد په معنىٰ دَ بخيل دے حق دَ الله تعالىٰ او حقوق دَ بندګانو نه ادا کوي. او مال ته ئې خير ويلے دي اګرچه مال دَ ظالم او مشرک خو اکثر حرام وي دا په اعتبار دَ ګمان دَ هغه سره چه هغه ئې حلال يا فائده مند

إِذَا بُعْثِرَ مَا فِي الْقُبُورِ ﴿۹﴾ وَحُصِّلَ مَا فِي

کله چه راپورته به کړیشي هغه څوک چه په قبرونو کښ دی، او ښکاره به کړیشي هغه څه چه په

الصُّدُورِ ﴿۱۰﴾ إِنَّ رَبَّهُم بِهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّخَبِيرٌ ﴿۱۱﴾

سینو کښ دی، یقیناً رب د دوی په دوی باندے په دغه ورځ خامخا خبردار دے۔

ګنړی او کله کله خیر صرف حلال مال ته وئیلے شی لکه إن ترك خيرًا (سورة بقره ۱۸۰)۔

۹ تا پدے کښ تخویف اخروی دے او دا علاج هم دے د پاره زائل کولو د حب د دنیا۔ أَفَلَا همزه د استفهام د پاره د توجه ورکولو دے احوالو د اخرت ته۔ فَا د پاره د سببیت ده یعنی د نیوی محبت سبب دے د پاره د غفلت د اخرت نه۔ إِذَا دا ظرفیه دے عامل پدے کښ بعثر دے او یعلم د عمل کولو نه منقطع دے یا مفعول پټ دے یعنی ما یفعل بهم یا اذا شرطیه دے او جزا ئے محذوف ده فیعلم حال نفسه في ذلك الوقت. بُعْثِرَ چه پورته زیر لاندے باندے کړے شی هغے ته بعثر وئیلے شی. مَا فِي الْقُبُورِ هرکله چه په وخت د بعث کښ عقل او حیاة نیشته د دے وجے نه تعبیر ئے اوکړو په ما سره.
وَحُصِّلَ په اسانه طریقے سره ښکاره کول مَا فِي الصُّدُورِ "هغه چه سینو کښ دی یعنی خیرا او شر ارادے او نیتونه دا دلیل دے چه په اراده او نیت باندے حساب کیدے شی لکه په سورة بقره ۲۸۴ کښ دی او په دے کښ وسوسه داخل نه ده ځکه چه هغه اختیاری نه ده او په دے کښ اشاره ده چه د الله تعالی نه هیڅ عمل نشی پټیدلے روستو جمله پدے باندے دلیل دے او اعمال د جوارحو ئے ذکر نه کړل ځکه چه هغه تابع دی د اعمالو د قلوبو چه اراده نیت دے۔
۱۱ دا علت دے د بعثر او حصل د پاره او اشاره ده چه فاعل د دے دواړو الله تعالی دے يَوْمَئِذٍ (سوال) الله تعالی خو اوس هم خبر دے نو د ورځ د بعث تخصیص ئے ولے اوکړو؟ (جواب) دلته مراد جزاء ورکول دی صرف خبر او علم نه دے د دے وجے نه تخصیص اوکړے شو. لَخَبِيرٌ په باطن هم علم لري لکه چه په ظاهر باندے عالم دے (فائده) پدے سورت کښ ذکر د مرض دے په ۶ کښ او سبب مرض دے په ۸ کښ او علاج مرض دے په ۹ تا ۱۱ کښ. ختم شو تفسیر د سورة العادیات په فضل د الله تعالی سره۔

| سُوْرَۃُ الْقَارِعَۃِ مَکِّیَّۃٌ | بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | اٰیَاتُھَا ۱۱ رکوعُھا ۱ |
|---|---|---|

اَلْقَارِعَۃُ ﴿۱﴾ مَا الْقَارِعَۃُ ﴿۲﴾ وَمَآ اَدْرٰىکَ

آفت زړونه ټکوونکې، څه دے آفت زړونه ټکوونکې. او څه پوهه کړے یئ ته

بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

## سورۃ القارعۃ

ربط دَ دے سورت دَ مخکښ سورت سره اول دا دے چه په هغه سورت کښ بعث دَ اصحاب قبورو او ظهار دَ ما فی الصدور ذکر شو نو په دے سورت کښ دَ هغه وخت نوم ذکر کوی القارعۃ دَ او احوال ئے ذکر کوی.

دویم ربط دا دے چه په هغه سورت کښ بعث دَ خلقو ذکر شو نو په دے سورت کښ دَ هغوی تقسیم ذکر کوی دوه قسمونو ته.

دریم دا دے چه په هغه سورت کښ زجر ووَ منکرینو ته نو په دے سورت کښ هغوی ته تخویف اخروی دے.

دعوٰی دَ دے سورت. تخویف اخروی په ذکر دَ احوالو دَ قیامت چه قرع دہ او حال دَ انسان او دَ غرونو دے سرہ دَ تقسیم ته دوہ قسمونو ته.

خلاصه دَ سورت دا دہ چه حال دَ قیامت ذکر کوی په صفت دَ قرع سرہ بیا ذکر دَ پریشانے دَ انسانانو بیا ذکر دَ حال دَ فنا دَ غرونو بیا تقسیم دَ خلقو دے سرہ دَ بشارت او تخویف ته.

تفسیر ۱ ۲ ۳ دا اسے په سورۃ الحاقه کښ تیر شوی دی او قیامت ته قارعه وئیلے کیږی ځکه چه ټکوی زړونو دَ خلقو لره په هیبتونو سرہ او آسمانونو لره په تشقق او انفطار سرہ او زمکے او غرونو لره په تدکیک سرہ. او قارعه دَ قرع نه دہ په اصل کښ سخت آواز ته وئیلے شی او قارعه سخت عذاب ته هم وئیلے شی لکه

مَا الْقَارِعَةُ ﴿۳﴾ يَوْمَ يَكُونُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ

چه څه دی ډیره ټکوونکې. په هغه ورځ چه شي به خلق پیشان دَ پتنګانو

الْمَبْثُوثِ ﴿۴﴾ وَتَكُونُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوشِ ﴿۵﴾

خوارۀ واره ، او شي به غرونه پشان دَ وړې رنګینې د پنبه شوې

سورۃ رعد ۳۱ کښې اودلته داصفت دَ قیامت دے یا صفت دَ صیحة دے.
۴ په دے کښې ذکر دَ بعض احوالو دے، كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوثِ فراش پتنګان یا هغه چینچی وزرو والا چه په چراغ او په اوربانډے راجمع کیږی. تشبیه دَ دوی سره په ډیرو صفتونو کښې ده، ډیروالے، خوریدال دَ هرطرف ته، کمزوری او ذلت. الْمَبْثُوثِ یعنی یو طرف خاص ئے معلوم نه وی بلکه هرطرف ته الوځی. (سوال) په سورۃ قمر ۷ کښې خو تشبیه ورکړیده دَ جراد (ملخان) سره او هغه خو یو طرف ته روان وی؟ (جواب) دا دَ حالاتو فرق دے په دے سورت کښې وخت دَ فناء ئے ذکر کړے لکه روستو حال دَ غرونو په دے بانډے شاهد دے یعنی چه قیامت قائمیږی نو په هغه وخت کښې چه خوک ژوندی وی هغوی به داسے پریشان اوګرځی وړ شی لکه فراش چه الوځی هرطرف ته او دے حالت ته اشاره ده په سورۃ کهف ۹۹ کښې، او په سورۃ قمر کښې حال دَ بعث بعد الموت ذکر کړے دے په قرینه دَ يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ سره یعنی روستو دَ بعث نه به هم خواره واره وی ټول انسانان لیکن یو طرف ته به روان وی چه هغه طرف دَ شپیلئ وهونکی دے لکه چه دے ته اشاره په سورۃ طٰه ۱۰۸ کښې ده.
۵ دا بل هیبت ذکرکوی چه اثر دَ قارعه دے په غرونو بانډے، اشاره ده چه دَ قارعے اثر به په غټ او سخت مخلوق چه غرونه دی او په کمزوری مخلوق چه انسانان دی یوشان وی. كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوشِ دا یوحالت دے دَ حالاتو دَ غرونو نه تفصیل دَ هغے په تفسیر دَ سورۃ نبأ کښې تیر شوید ے. عِهْنِ رنګینې وړئے ته وئیلے شی او دَ دے تشبیه وجه داده چه غرونه هم رنګ په رنګ دی (پاتے په بل مخ)

فَأَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ ⑥ فَهُوَ فِي

نو هغه څوک چه درانه وی عملونه د تللو د هغوی ، نو هغه به په

عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ ⑦ وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ

ژوند خوشحاله کښې وی . او هغه څوک چه سپک وی عملونه

لکه چه سورة فاطر ۲۷ کښې دی نو هغه به ټول راخواره شی نو مختلف رنګونه په ښکاره کیږی . الْمَنْفُوشِ لکه وړے چه ډینډ ات کړے شی نو اجزائے د یو بل نه جدا شی نو دا سے حال به د غرونو هم شی .

ب۳ سک دا ذکر د تقسیم د انسانانو دے روستو د بعث بعد الموت نه او اول حال د مؤمنانو دے په طریقه د بشارت سره او فا د پاره تعقیب او وصل ده . مَوَازِينُهُ جمع د موزون ده یا جمع د میزان ده او اقوال د سلف صالحینو په دے کښې مختلف دی چه اعمال به پخپله تللے کیدیشی یا به مجسّم کړے شی یا صحیفے د اعمالو تللے کیدیشی او د ټولو انسانانو که مؤمن وی او که کافر وی د هغوی اعمال به تللے کیدیشی یا صرف د مؤمنانو . او هر چا خپلے مدعا د پاره تمسّك په دلیل باندے کړے دے لیکن غوره دا ده چه د چا به نفسِ عمل تللے شی او د چا هغه مجسم کړے شی او د چا به صحیفے تللے شی او د مؤمنانو کافرانو د ټولو د پاره به وزن کیدیشی او دا رنګ اختلاف دے چه میزان یو دے لیکن په اعتبار د اعمالو سره ئے ورته جمع وئیلے ده یا میزانونه ډیر دی (والله اعلم).

ثِقَلْ درنوالے په سبب د ډیروالی سره نه دے بلکه په سبب د اخلاص او د عقیدے د توحید او اتباع سنت سره دے اګرچه لږ عمل وی د دے وجے نه قرآن کریم کښې په ډیروالی تونوکښې أَحْسَنَ عملا ئے وئیلے دے أَكْثَرَ عملا ئے نه دے وئیلے . او دا رنګ سپک والے د عمل د کم والی د وجے نه نه دے بلکه د وجے د شرک او د بدعاتو او مخالفت د کتاب او سنت د وجے نه دے او دیته اشاره کړے ده خازن په خپل تفسیر کښې ثقل سره ئے اتباع حق او خفت سره ئے اتباع باطل ذکر کړے ده . عِيشَةٍ بقاعی وئیلے دی چه په ة راوړلو کښې اشاره ده

مَوَازِيْنُهٗ ۙ﴿۸﴾ فَاُمُّهٗ هَاوِيَةٌ ؕ﴿۹﴾ وَمَآ اَدْرٰىكَ

دَ تللو دَ هغوی ، نو ځائے دَ ورګرځیدو به هاویه وی . او څه پوهه کړے یے ته

مَاهِيَهْ ؕ﴿۱۰﴾ نَارٌ حَامِيَةٌ ﴿۱۱﴾ ع

چه هغه څه شے دے . اُور دے سخت ګرم .

چه دا ژوند دَ خوشحالے دَ دوی به همیشه دَ پاره وی دَ دنیا په شان به نه بدلیږی . رَاضِيَةٍ دا فاعل ذوکندا دے یعنی ذات رضا یا په معنیٰ دَ مفعول دے یعنی مرضیة یا اسناد مجازی دے .
ف ۹ دا حال دَ منکرینو دے او تخویف دے فَاُمُّهٗ اُمّ په اصل کښ مرجع او مجمع ته وئیلے شی یعنی هاویه به دَ دهٔ مرجع وی لکه چه دَ بچی مرجع ځائے دَ ورګرځیدلو) مور وی او بعضو وئیلے دی چه مراد دَ دے ته اُمّ الدماغ دہ یعنی کیږئے دَ سر به ئے په هاویه کښ او غورځولے شی . هَاوِيَةٌ دا نوم دے دَ یو طبقے دَ جهنم او دَ هوِیَ نه ماخوذ دے غورځیدلو ته وئیلے شی یعنی دوی به دَ هغے و ـ ځ ته غورځولے کیږی نو هَاوِيَةٌ په معنیٰ دَ مهواة دہ ځائے دَ غورځیدلو ته وئیلے شی . او په دے کښ اشاره دہ چه دَ دوی ژوند به خراب او برباد وی نو دا مقابل دَ عیشة راضیة دے په معنیٰ کښ .
ف ۱۱ په دیکښ عظمت شان دَ هاویه ذکر کوی هِيَهْ په اصل کښ هِیَ ضمیر دے چه راجع دے هاویه ته او ه دَ پاره دَ سکتے دہ په حال دَ وقف کښ او په حال دَ وصل کښ ساقطه وی . (سوال) مخکښ ما القارعة په اسم صریح سره ذکر کړو او دلته ماهیه ئے په ضمیر سره ذکر کړو ؟ (جواب) القارعة دَ محسوسا تو نه دہ تولو خلقو ته نو هغه محسوس صریح دہ نو په اسم صریح سره ذکر کړو او هاویه پټه طبقه دہ دَ اور صرف دَ هغے اهل به ئے وینی نو هغه ئے په ضمیر سره (چه دلالت کوی په پټ والی باندے) ذکر کړه . نَارٌ مبتدا محذوف دہ هی نار حامیة ، په حدیث صحیح کښ دَ هغه اور سخت ګرموالے ذکر کړیدے چه هغه دَ دنیا دَ اُور نه اویا چنده زیات ګرم دے (نعوذ بالله منها) .

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة القارعة په فضل دَ الله تعالیٰ سره .

| رکوعها ۱ / اٰیاتها ۸ | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | سُوۡرَةُ التَّكَاثُرِ مَكِّيَّةٌ |
|---|---|---|

اَلۡهٰكُمُ التَّكَاثُرُ ﴿۱﴾ حَتّٰى زُرۡتُمُ الۡمَقَابِرَ ﴿۲﴾

غافل کړي تاسو (حرص) د ډېرو مالونو ، تر دې پورې چه زیارت کوئې د قبرونو (د ډېرې دې)

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**سورة التكاثر** او دیته سورة الهٰکم هم وئیلې شی.

**ربط د دے سورت** د مخکښ سره په څو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه هلته کښ تخویف اخروی وو نو دلته کښ زجر ذکر کوی سره د تخویف نه پشان د سورة العادیات. دویمه وجه دا ده په هغه سورت کښ تذکیر د آخرت وو نو په دے سورت کښ تزهید فی الدنیا ذکر کوی چه دا دنیا سبب د غفلت دے د آخرت نه. دریمه وجه په هغه سورت کښ د جهنم نوم هاویه ذکر وو نو په دے سورت کښ د هغې بل نوم جحیم ذکر کوی. څلورمه وجه په هغه سورت کښ وزن د اعمالو ذکر شو نو په دے سورت کښ سوال د نعمتونو (په ورځ د قیامت) ذکر کوی.

**دعویٰ د دے سورت.** زجر دے په محبت د دنیا سره، او تخویف اخروی.

**خلاصه د دے سورت دا ده.** اول زجر دے په محبت د دنیا سره په ۱ ۲ کښ بیا تخویف دے په عذاب دنیوی او برزخی سره په ۳ ۴ کښ بیا زجر په ترک د یقین سره په ۵ کښ بیا تخویف اخروی دے په درے طریقو سره.

فائده:- په دے سورت کښ دویم قسم دشمنان د قرآن ذکر کوی چه هغه دنیا پرست خلق دی.

تفسیر ۱ دا زجر دے اَلۡهٰكُمُ لهو غفلت او اِعراض ته وئیلې شی او هغه په دوه قسمه دے یو قسم بغیر د قصد نه لکه چه په حدیث

کښې راځي اَلْهَتْنِی عَنْ صَلَاتِیْ، او دا اِلهاء په عذر سره ده نو معاف ده او دویم قسم اِلْهَاء په قصد سره ده او هغه مستلزم ده اعراض لره دَ حق نه او هغه ګناه ده دلته دا قسم مراد دے او کَد دے قسم نه نهي کړے شوې ده په سورة المنافقون ۹ کښې او دلته ئې مُلهیٰ عنه حذف کړو دَ پاره دَ تعمیم یعنی غافل ئې کړئ تا سو دَ القارعة دَ یادداشت نه او دَ ذِکر دَ الله تعالیٰ نه او دَ قرآن او دَ قبلولو دَ حق نه۔

التَّكَاثُرُ باب تفاعل دے یعنی دَ یو بل سره مقابله کول په ډیرولو دَ مال کښې او دا مستلزم دے حرص او تفاخر لره او متکاثر به ئې حذف کړے دے دَ پاره دَ تعمیم۔ ابن قیم و ئیلے دی چه تکاثر په مال کښې، جاه کښې، رِ است کښې، شخو کښې، تالیف او تصنیف کښې، تفریع دَ مسائلو کښې دا ټول تکاثر مذموم دے سیوا دَ نیت دَ تقرب الی الله تعالیٰ نه او دا رنګ حذف دَ متکاثر به اشاره ده چه مذموم په اصل کښې تکاثر دے مطلق او متکاثر مطلقًا مذموم نه دے نو په دے آیت کښې په دوه اعمالِ قبیحه باندے زجر دے یو تکاثر او دویم اِلْهَاء (غفلت)۔

۲ دا تاکید دَ تکاثر دے او غَایة دَ اِلهاء ده۔ او په دے کښې درے توجیهات دی اوله توجیه دا چه دا غَایة دَ اِلهاء ده او زُرْتُم په معنیٰ دَ مستقبل دے دَ تیقن دَ وجے نه ئې په صیغه دَ ماضي سره ذکر کړے دے او زیارت دَ قبورو کنایه ده دَ مړ کیدلو نه یعنی دَ مالونو وغیره په تکاثر کښې اخته ئې تر دے پورے چه مړهٔ به شئ او توبه نه او باسئ۔

سوال: دَ مرګ په ځائے زیارت قبور ئې ولے ذکر کړو؟

جواب: لفظ دَ زیارت کښې اشاره ده چه قبرونه دَ همیشه اوسیدلو ځائے نه دے بلکه هغے نه دَ ورتللو نه روستو بیا رجوع ده جنت ته یا جهنم ته۔ او دا فائده ابن کثیر دَ ابن ابی حاتم نه روایت کړیده۔ دویمه توجیه دا ده چه دا تاکید دَ تکاثر دے او زرتم فعل بخپله معنیٰ سره دے معنیٰ دا ده چه تا سو تکاثر په ژوندو اشخاصو سره کوئے تر دے پورے چه په مړو سره هم تکاثر کوئے (راځئ په بل مخ)

كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۳﴾ ثُمَّ كَلَّا

هیچرې داسې نه ده یکار نز ده چه پوهه به شئ تاسو ، بیا هیچرې داسې نه ده یکار

لکه چه دا طریقه دَ جاهلیت والو ده. دریمه توجیه دا ده چه ابوحیان
په البحر المحیط کښ ذکر کړیده حاصل ئې دا دے چه غافل کړئے تاسو
تکاثر نړ دے چه زیارت دَ قبرونو کوئے دَ تفاخر دَپاره او حال دا دے
چه زیارت دَ قبرونو خو جائز کړے شوے دے دَ وعظ اخستلو دَپاره
(نو دا رنګ څوک چه زیارت دَ قبر دَ مال دَ دنیا او طلب دَ جاه دَپاره کوی
یا دَ نورو حاجات دنیویه دَپاره کوی او هغوی په دے سبب سره دَ ذکر
او توحید دَ الله تعالیٰ نه غافل شویوی داسې خلقو ته هم دا آیت شامل
دے) او ابن عطیه په تفسیر المحرر الوجیز کښ وئیلی دی چه دا زمونږ
ده هغه چاته چه ډیر زیارتونه دَ قبرونو کوی تر دے پورے چه نور
عبادتونو او تعلّم دَ دین نه ځان نه اوزګاروی. بیا ئې وئیلی دی لکه خلق
چه نن داسې کوی چه زیارت دَ قبرونو ئې لازم ګڼړلے دے او په ګټو
او سنګِ مرمر سره ئې اوچته وی او پخوی او چتونه او آبادئے وربانده
جوړوی. بیا ابوحیان وروسته لیکلی دی چه ابن عطیه خو صرف دَ اندلس
قبرونه لیدلے وو او که چرے ده قبرونه دَ مصر والو اولیدل په
قرافه کبریٰ او قرافه صغریٰ او باب النصر کښ (دا دَ مقبرونو نومونه دی)
او هغه مالونه چه په هغے بانده بربادیږی نو زیارت تعجب به اوکړی
(بیا ئې دَ قبر پرستو صوفیاؤ ډیر قباحتونه ذکر کړے دی هغه
اوګورئے په تفسیر دَ دے سورت کښ).

۳ سے دا تخویف بعد التخویف دے ګلا په دواړه ځایونو کښ ردعیه
دے یعنی اول متوجه دے تکاثر ته او دویم متوجه دے اِلْهاءته
سوف تَعْلَمُوْنَ ئې مکرر راوړے نو په اول کښ اشاره ده وخت
دَ ځنکدن ته چه په هغه وخت به ئې یقین راشی په خپله غلطے
بانده او په دویم کښ اشاره ده عذاب قبر ته او دا قول ابن قیم په
بدائع التفسیر کښ دَ حسن او مقاتل او عطاء او ابن عباس رضی الله
عنهما نه روایت کړے دے او قرطبی هم دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه

سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿٤﴾ كَلَّا لَوْ تَعْلَمُوْنَ

زر دے پوهه به شئ تاسو ، يقيناً که چرے تاسو پوهه لرے

عِلْمَ الْيَقِيْنِ ﴿٥﴾ لَتَرَوُنَّ الْجَحِيْمَ ﴿٦﴾ ثُمَّ

پوهه دَ يقين - خامخا اوبه وينئ تاسو جهنم لره ، بيا

لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ الْيَقِيْنِ ﴿٧﴾ ثُمَّ لَتُسْـَٔلُنَّ

خامخا اوبه وينئ هغه په سترګو دَ يقين ، بيا خامخا تپوس به اوکړيشي ستاسو نه

روايت کړے دے. او ابن قيمؒ دے قول ته په پنځه وجو سره ترجيح ورکړے ده او حديث دَ ترمذی چه دَ علی رضی الله عنه نه ئے نقل کړے چه هغه وئيلے دی "چه مونږ په عذاب قبر کښ شک کوؤ تر دے پورے چه دا سورت نازل شو" هم په دے باندے دليل دے.

ے دا هم زجر دے او کَلَّا په معنیٰ دَ حقًا سره دے لَوْ تَعْلَمُوْنَ دَ دے مفعول په محذوف دے يعنی احوال البعث. عِلْمَ الْيَقِيْنِ دا مفعول مطلق دے. علم اليقين هغه علم دے چه صاحب دَ هغے او رسی ضروريا تو ته په داسے طريقے سره چه هيڅ شک په ثبوت دَ هغه ضروريا تو کښ پاتے نشی او دَ دے علم تعلق خالص دَ زړه سره دے چه هغه محل دَ يقين دے او دا قيد ئے دَ دے وجے نه اولګوؤ چه صرف علم دَ يو څيز په قباحت باندے دَ هغے دَ پريخودلو دَ پاره کافی نه وی تر څو پورے چه پوره يقين په زړه کښ دَ هغے دَ قباحت نه وی راغلے. او دَ لَوْ جزاء محذوف ده يعنی لما الهاکم التکاثر.

ے دا تخويف اخروی دے او لَتَرَوُنَّ مکرر دے نو اول نه مراد دَ لرے نه ليدل دی لکه په سورة فرقان ۱۲ کښ او دويم نه مراد ليدل دَ نزدے نه دی يا اول ليدل په قلب (زړه) سره دی او دويم ليدل په سترګو سره دی.

عَيْنَ الْيَقِيْنِ دے ته علم المشاهدة هم وئيلے کيږی يعنی غائب معقول پشان دَ محسوس مشاهد اوګرځی او دا دَ علم اليقين نه هم اوچته درجه ده او دا خطاب کافرانو ته دے يا عام دے مؤمنان ګنهګاروته شامل دے هغه چه معاف نه کړيشی يا عام دے په داسے طريقه باندے چه مؤمن به دَ جحيم دَ پاسه ورتيريږی او کافر به پکښ اوغورځيږی.

# يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ ﴿٨﴾ ع

پهٔ هغه ورځ په باره دَ نعمتونو کښې ۔

ـه دا هم تخویف اخروی کښې داخل دے او ظاهر دا ده چه دا خطاب هم عام دے۔ النَّعِیم دا هم عام دے ځکه چه نعیم جمع دَ نعمت ده په دے کښې داخل دے امن او صحت او فراغ غوږونه او سترګے، او عقل او خوراکونه او دَ څښکلو څیزونه، ښځے او بچی، سوری، کورونه. او دَ مجاهد نه روایت دے چه هر لذت دَ دنیا پکښې داخل دے او محمد بن کعب وئیلی دی چه بعثت دَ محمد صلی الله علیه وسلّم او نزول دَ قران پکښې هم داخل دی۔ او ابن قیمؒ وئیلی دی چه دَ نعمتونو مالیو په باره کښې دوه تپوسونه دی اول دا چه څه رنګه ئے ګټلی دی حلال دے یا حرام دویم دا چه کوم ځائے صرف کړی دے او دا رنګ په حدیث دَ ترمذی کښې دَ پنځه څیزونو تپوس ذکر دے۔ ۱ عمر ۲ ځوانی ۳ مال چه په کوم ځائے کښې ګټلے دے ۴ او کوم ځائے کښې خرچ کړے دے ۵ او علم چه په هغے باندے دے څه عمل کړی دے۔ او دَ عامو نعمتونو باره کښې تپوس دَ شکر دَ هغے دے او لوئے شکر توحید دے او لویه ناشکری شرك او کفر دے۔

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة التکاثر په فضل دَ الله تعالیٰ سره

| سُوْرَةُ الْعَصْرِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۳ | رُكُوْعُهَا ۱ |
|---|---|---|---|

وَالْعَصْرِ ۝۱ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِیْ خُسْرٍ ۝۲

قسم دے په زمانه ، چه یقینًا انسان خامخا په تاوان کښ دے ،

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة العصر

ربط دَ دے سورت دَ ماقبل سره په درے وجو سره دے اوله وجه دا چه په هغه سورت کښ زجرووُ په تکاثر او په غفلت باندے نو په دے سورت کښ زجر دے په نتیجه دَ هغے چه خسران دے. دویمه وجه دا چه په هغه سورت کښ سوال ذکر کړے شو نو په دے سورت کښ دَ سوال نه روستو دوه قسمه انسانان ذکر کوی خاسرین او فائزین. دریمه وجه داده چه په هغه سورت کښ سبب ذکر وو (غفلت او تکاثر او عذابونه) او په دے سورت کښ مسبب ذکر دے چه هغه خسران دے. څلورمه وجه داده چه په هغه سورت کښ تخویف ذکر شو نو په دے سورۃ کښ دَ نجات دَ پاره څلور امور ذکر کوی.

دعوٰی دَ سورت. ذکر دَ هغه امورو دے چه فرق پیدا کوی په مینځ دَ خاسرینو او فائزینو کښ.

خلاصه دَ سورت. قسم په طور دَ شاهد. زجر په خسران. او څلور امور دَ پاره دَ نجات ذکر کوی چه دوه دَ هغے نه کمال فی نفسه دَ پاره دی یو قوت علمیه (عقیده) دویم قوت عملیه. او دوه دَ هغے نه دَ تکمیل دَ غیر دَ پاره دی یو دعوت او تعلیم دَ حق، دویم ثبات او دوام په هغے باندے.

(فائده) دَ امام شافعی رحمه الله عنه نه روایت دے که چرے خلقو فکر اوکړو په دے سورت کښ نو دا به دوی لره پوره وی.

تفسیر: دا قسم دے او مقصد پکښ شهادت دے (پاتے په بل مخ)

په اثبات دَ خسران دَ انسانانو بانىدے. او په دے کښ دوه قولونه مشهور دی اول دا چه مراد دَ دے نه زمانه ده چه په هغې کښ مختلف حالات او واقعات دَ انبياء عليهم السّلام او دَ قومونو دَ هغوی او عذابونه په منکرينو او نجات دَ مؤمنانو واقع شويدی نو ذکر دَ ظرف او مراد ترينه مظروف دے. دويم قول دا دے چه مراد دَ دے نه وخت دَ مازيگر دے چه دَ ورځ اخری وخت دے او دغه وخت دَ تاجرانو او دَ مزدورانو دَ گټے او تاوان وخت دے او په حديث صحيح کښ هم دېته اشاره ده چه هغه څوک چه مونځ دَ مازيگر دَ هغهٔ نه پاتے شو نو گويا چه اهل او مال ئے تاوانی شو او بل حديث صحيح کښ اشاره ده چه دَ دے امت دَ ژوندُ مثال په شان دَ وخت دَ مازيگر دے تر مابنام پورے چه په عمل دَ دوی سره دوه قيراطونه اجر ملاويږی ابن قيم رح پدے کښ اول قول غوره کړے دے او ابن کثير هم وئيلی دی چه اول قول مشهور دے. دا جواب قَسَم دے، الْإِنسَانَ مراد دَ دے نه ټول انسانان دی په قرينه دَ استثناء سره او مرجع ئے مشرکانو او کافرانو او فاسقو فجارو ته ده چه دوی په خسران کښ دی. او خُسران نقصان او هلاکت او تاوان ته وئيلے کيږی او په دے کښ تشبيه ده دَ مال دَ تجارت سره چه کسب اوکړی ليکن گټه او نکړی بلکه رأس المال هم برباد کړی. دا رنگ انسان له الله تعالیٰ نعمتونه ورکړے دی (چه لَتُسْـَٔلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ) کښ ذکر شول او لوئے دَ نعمتونو نه عمر دے او مال دے او دے انسان دا ضائع کړل په عصيان دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله عليه وسلم کښ نو سرمايه ئے برباده کړه. او تنکير دَ خُسرٍ دَ پاره دَ تعظيم دے يا دَ پاره دَ تنويع دے يعنی هر انسان خاسر لره جدا جدا نوعه دَ خسران ده په اعتبار دَ مختلف مرتبو سره. او امام رازی وئيلی دی چه خاسر هغه څوک دے چه دا سے عمل کوی چه بدله ورته نه ملاويږی او بقاعی وئيلی دی چه هغه شخص چه مال ئے دَ گټے دَ پاره تيار او برابر وی ليکن دَ ناکاره تدبير دَ وجے نه دے په هغې کښ نقصان اوکړی.

فائده :- قرآن کريم کښ هغه آيا تونه چه اولوسلے شی چه په هغې کښ

إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا

مګر هغه کسان چه ایمان ئې راوړے دے او عملونه ئې کړيدي د سنت برابر او يو بل ته وينا ئې کړيده

بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ﴿۳﴾

يو بل ته د حق ـ او يو بل ته وينا ئې کړيده د صبر کولو.

ماده د خسران استعمال شويده نو د هغې نه به بنهٔ واضحه شي چه اسباب د خسران څهٔ څهٔ دي د سورۃ بقره په تفسير د مشکلاتو کښې موتږ ذکر کړے دي.

۳ په دے استثناء سره معلومه شوه چه د دے څلور خصلتونو نه څوک محروم وي نو هغه په کامل خسران کښې دے او څوک چه ایمان والا وي ليکن د باقي خصلتونو نه کلّاً يا بعضاً خالي وي نو هغه هم په يو نوعه د خسران کښې دے او دا خصلتونه د کامل مؤمن دي ځکه چه صلاحيت د انسان په دوه طريقو سره دے اول کمال د خپل نفس او دويم تکميل د نورو انسانانو، او د خپل نفس کمال په دوه څيزونو سره دے اول عقيده چه هغې ته علمي قوت وئيلے شي او دويم عمل صالح چه هغې ته عملي قوت وئيلے شي. ايمان نه مراد هغه شرعي ايمان دے چه په قران کښې په تفصيل سره ذکر شو يدے او عمل صالح هغه دے چه په موافقت د سنت د نبي صلى الله عليه وسلم سره وي يعني چه عمل د هر قسم بدعت او فسق نه پاک وي. او تکميل د غير هم په دوه څيزونو سره دے اول دعوت او تعليم او تزکيه چه هغې ته اشاره ده په تَوَاصَوْا بِالْحَقِّ سره دلته مراد د حق نه قران او طاعة د الله تعالى او د رسول صلى الله عليه وسلم او تزهيد في الدنيا او ترغيب الى الاخرة دے او دويم څيز تلقين د صبر دے چه هغې ته اشاره ده په تَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ سره او صبر دوه قسمه دے صبر على المقدور چه هغه مصائب دي او صبر على المشروع چه هغه په اوامرو باندے پوره عمل کول او د نواهي نه ځان بچ کول دي او دا رنګ صبر په مصيبتونو د دعوت او د تبليغ باندے پدے کښې داخل دے. او لفظ د تواصوا (چه باب تفاعل دے) دلالت کوي چه دا دواړه کارونه د هر مسلمان فريضه ده او په لفظ د وصية کښې اشاره ده چه ډير تاکيد به کوي او دا عمل به تر مرګه پورے جاري ساتي.

ختم شو تفسير د سورۃ العصر په فضل د الله تعالى سره والحمد لله

تباهي ده هر يو پشي شا بدرويونكي ځانځ طعنونه كوونكي لره، هغه چه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الهمزة

ربط دَ سورت دَ مخکښ سره په درے وجو سره دے اوله وجه دا ده چه په هغه سورت کښ ځلور صفتونه دَ فائزينو (غير خاسرين) ذکرشول نو په دے سورت کښ ځلور صفتونه دَ خاسرينو ذکر کوی. دويمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ زجر ووُ په خسران سره او په دے سورت کښ تخويف اخروی دے خسران والو دَپاره. دريمه وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ صفاتِ تحليه ذکرشول نو په دے سورت کښ صفات تخليه ذکر کوی.

دعوٰی دَ سورت زجر دے په اوصافِ قبيحه باندے سرهٔ دَ تخويف اخروی نه. او په دے سورت کښ نوم دَ اللّٰه تعالیٰ يو کرت ذکر دے.

خلاصه دَ سورت. اول زجر دے او ځلور اوصاف قبيحه ذکر کوی په ۱، ۲، ۳ کښ بيا تخويف اخروی دے په شپږ طريقو سره.

فائده:- په دے سورت کښ اشاره ده چه دَ قرآن دشمن هغه دنيا پرست دے چه دا ځلور اخلاق پکښ موجود وی.

تفسير: ۱ لفظ وَيْلٌ کښ دوه قولونه دی کلمهٔ دَ عذاب يا يو وادی ده په جهنم کښ لِكُلِّ دا لفظ دليل دے چه دا ايت عام دے هر هغه چا ته چه دا صفتونه پکښ موجود وی. هُمَزَةٍ لُّمَزَةٍ وزن دَ فعلة دلالت کوی په عادت نيولو باندے دَ دے په فرق کښ ډير اقوال دی مشهور قول دا دے چه هُمَزَةٍ هغه کس دے چه پشي شا په چا باندے عيبونه وائی په طريقه دَ غيبت يا بهتان سره او لُمَزَةٍ هغه دے چه ځانځ

جَمَعَ مَالًا وَّعَدَّدَهٗ ﴿۲﴾ يَحْسَبُ اَنَّ مَالَهٗۤ

جمع کوی مال او شماری هغه ، گمان کوی چه یقینًا مال دَ دهٔ به

اَخْلَدَهٗ ﴿۳﴾ كَلَّا لَيُنْۢبَذَنَّ فِي الْحُطَمَةِ ﴿۴﴾

همیشه اوساتی دهٔ لره ، هیچرې داسې نه ده خامخا به اوغورځولے شي په حطمه کښې .

عیبونه او طعنونه کوی - او مراد دَ دے نه هغه څوک دے چه مخالفت
دَ قران او توحید والو په دِے دواړه طریقو سره کوی.
۲ په دے کښې دریم وصف دے او دا پشان دَ علت دے دَ ما قبل
یعنی دَ وجے دَ محبت دَ مال نه همز او لمز کوی. جَمَعَ مَالًا نکره
اشاره ده سپک والی دَ مال دَ دُنیا ته او مراد دَ جمع نه بخل کول دی چه
نه په ځان باندے خرچ کوی او نه په لار دَ الله تعالی کښې.
وَعَدَّدَهٗ دَ عدد نه ماخوذ دے یعنی دَ محبت دَ وجے نه هر وخت شماری
دَ دے دَ پاره چه کم نشی یا دَ عدة نه ماخوذ دے یعنی دَ حوادثو دَ پاره
ئے تیار کړے دی هغه مال دفع کوونکے دَ مصائبو او دَ حوادثو کړی
او حال دا دے چه غضب دَ الله تعالی په صدقه ورکولو سره دفع
کیږی دا سے په حدیث کښې راغلی دی.
۳ دا څلورم وصف دے او په دے کښې دوه توجیه دی یو تبکارګاده
یعنی دَ مال په محبت کښې دومره مشغول دے گویا چه خیال کوی چه
زهٔ به دنیا کښې همیشه یم او آخرت نه یادوی. دویمه توجیه اشاره ده
چه خلود دَ نعمتونو (یعنی جنت) خو په ایمان او عمل صالح سره
حاصلیږی او دَ دوی خیال دا دے چه په مالدارئ سره به جنت
حاصل کړی ، نسفی په تفسیر مدارك کښې او شربینی په سراج المنیر
کښې دا توجیه ذکر کړے ده.
۴ ۔ دا تخویف اخروی دے. كَلَّا ردعیه دے یعنی دا گمان ئے
غلط دے. لَيُنْۢبَذَنَّ نبذ استعمالیږی په غورځولو ذکر په څیز کښې.
فِي الْحُطَمَةِ دا صیغه دَ مبالغې ده دَ حطم نه او ماتولو ته وئیلے کیږی.
یعنی دیر ماتوونکے نو دا نوم دَ جهنم دے یا دَ یو طبقے (پاتے په یل مخ)

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا الْحُطَمَةُ ﴿٥﴾ نَارُ اللّٰهِ الْمُوْقَدَةُ ﴿٦﴾

او څه پوهه درکړې ده ته چه څه شے دے حطمه - اُور د الله تعالیٰ دے چه بل کړے شوے دے۔

الَّتِيْ تَطَّلِعُ عَلَى الْاَفْـِٕدَةِ ﴿٧﴾ اِنَّهَا عَلَيْهِمْ

هغه چه ورختيږي په زړونو باندے - يقيناً دا اور په دوی باندے

مُّؤْصَدَةٌ ﴿٨﴾ فِيْ عَمَدٍ مُّمَدَّدَةٍ ﴿٩﴾

جوخت کړے شوے دے د هر طرف نه، په ستنو اوږدو کښ -

د جهنم دے هر کله چه همزه لمزه د حق پرستو عزتو نه مات رامات کړے دی نو دا رنګ دا حطمه به هم د دغه شخص هډوکی مات رامات کړی۔

وَمَآ اَدْرٰىكَ اه دا تعظيم شان د حطمة د پاره دے۔

۶ - ۷ دا تفسير د حطمه دے نَارُ اللّٰهِ په دے اضافت کښ هم اشاره د عظمت شان د اُور ته - الْمُوْقَدَةُ چه الله تعالیٰ بل کړے دے نو څوک د هغے د مړ کولو وس نه لري او په حديث د ترمذی کښ وارد دی چه اُور د جهنم زر کاله بل کړے شو نو سور شو بيا زر کاله بل کړے شو نو سپين شو بيا زر کاله بل کړے شو نو تک تور شو نو هميشه د پاره داسے به وی۔ الَّتِيْ تَطَّلِعُ اه يعنی ټول بدن به اوسيزی تر دے پورے چه زړه ته او رسيږی، او د زړه تخصيص ئے په دے وجے سره اوکړو چه هغه محل د فاسد وعقيدو او د محبت د مال وو۔

۸ - ۹ دا تاکيد د ماقبل عذاب دے۔ مُّؤْصَدَةٌ بند کړے شوے۔ راجوخت کړے شوے۔ چه په هغے کښ هيڅ سورے او دريچه د هوا او رڼا د پاره نه وی فِيْ عَمَدٍ دا اسم جمع يا جمع د عماد ده ستنے ته وئيلے کيږی يعنی کړ دے ستنے به وی پشان د پائپونو د بټئ د اور او اوږدے به وی او هغه به د هر طرف نه بند ے وی يا دا ستنے به پشان د ميخونو وی په دروازو د جهنم باندے به وهلے شوے وی بناء په اوله توجيه باندے فِيْ بمعنی سره دے او بناء په دويمه باندے فِيْ په معنی د باء سره دے۔

الحمدلله ختم شو تفسير د سورة همزه په فضل د الله تعالیٰ سره

سُوْرَةُ الْفِيْلِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۵ رُكُوْعُهَا ۱

اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصْحٰبِ الْفِيْلِ ۝۱

ایا نه گورے ته چه څنګ کار اوکړو رب ستا د ښاتیانو والو سره۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الفيل

ربط د دے سورت د مخکښ سره په څلور و وجوسره دے اوله وجه داده چه په هغه سورت کښ زجراو تخویف اخروی وو مخالفینو د پاره نو په دے سورت کښ تخویف دنیوی دے د پاره د هغوی۔ دویمه وجه داده چه په هغه سورت کښ مخالفت د حق نه په سبب د دُنیا پرستئ سره ذکر شو نو په دے سورت کښ مخالفت د حق نه په وجه د اقتدار دنیوی سره ذکر کوی۔ دریمه وجه داده چه په هغه سورت کښ دشمنی د حق والو سره ذکر شوه نو په دے سورت کښ دشمنی د مرکز د حق سره ذکر کوی۔ څلورمه وجه داده چه په هغه سورت کښ سبب ذکر شو (چه ناکاره اخلاق دی) نو په دے سورت کښ مسبب ذکر کوی چه اراده د هدم (ورانولو) د بیت الله ده۔

دعوی د سورت داده چه په دیکښ تخویف دنیوی دے مخالفت کوونکو د حق ته په سبب د اقتدار دنیوی سره۔ او نوم د الله تعالیٰ ئے (رب) ذکر کړے دے او څلور صفات فعلیه ئے ذکر کړے دی۔

خلاصه د سورت اول عظمت شان د عذاب د اصحاب فیل دے په ۱ کښ او د هغوی د مکر بربادی په ۲ کښ ذکر کوی او تفصیل د عذاب د هغوی په ۳، ۴، ۵ کښ دے۔

فائده:۔ ذکر د اصحاب فیل (چه د بیت الله د هدم اراده ئے کړے وه او په هغوی باندے عذاب الٰهی راغے) په طریقه د مثال او د عبرت سره دے یعنی هر هغه څوک چه د بیت الله په (پاتے په بل مخ)

پاره کښې دا سې اراده لري یا بله کعبه (قبله) جوړوي یا دَ دیني مرکز سره دشمني کوي او دَ هغې دَ خرابولو کوشش کوي نو عاقبت دَ هغوي هم عذاب دے خصوصًا هغه اقتدار والا چه دَ خپل باطل حکومت دَ بچاؤ او ترقۍ دَ پاره دَ دین حق دَ نړولو یا دَ قرآن دَ مقابلے کولو کوشش کوي۔

تفسیر:- قصه دَ اصحاب الفیل مفسرینو په تفصیل سره لیکلې ده۔ مختصره داسې ده چه ابرهه بن الصباح ابو یکسوم چه په الاشرم سره مشهور وؤ (په یو جنګ کښې دَ هغه پوزه اوخوله او مخ شلیدلے وؤ دَ دے وجې نه ورته اشرم وئیلے کیدلو) دَ یمن والي وؤ او نصراني وؤ دَ حبشه دَ بادشاه دَ خوشحاله کولو دَ پاره (چه هغه هم نصراني وؤ) په صنعاء یمن کښې یو ډیره ښکلې جوړه کړه او هغه کنیسه وه دَ دوي او خلقو به هغې ته القلیس وئیلو ځکه دَ ډیر ښکلا والي دَ وجې نه چه چا به دَ هغې سر ته کتل نو ټوپۍ به ئې دَ سر نه غورځیدله او ابرهه اعلان اوکړو چه اینده دَ پاره دے ځائے ته حج له راځئ او کعبې له مه ځئ۔ (دا دَ نصاراؤ (انګریزانو) زوړ عداوت دے دَ اسلام سره چه زمونږ دَ مسلمانانو قبله (کعبه) نه منې او دَ حج نه هم انکار کوي)۔ یو روایت کښې راغلي دي چه دَ عربو یو شخص لاړو دَ غصې دَ وجې نه او په هغه کنیسه کښې ئې اودس ماتے اوکړه او بل روایت کښې راغلي دي چه دَ عربو بعض تاجران هغه وطن ته تجارت دَ پاره تلي وؤ نو دَ هغې کنیسې په خوا کښې ئې اور بل کړو دَ پاره دَ پخلي کولو نو سیلۍ راوالوتله او هغه اور هغه کنیسې ته اورسیدلو نو هغه ئې او سیزله نو ابرهه په دے کار باندے سخت غصّه شو او قسم ئې اوکړو چه زهٔ به کعبه نړووم پدے اراده سره ئې هاتیان راروان کړل او ډیر لښکر هم ورسره وؤ لیکن هر کله چه دَ مزدلفې او منیٰ په مینځ کښې وادي محسر ته نزدے شول نو الله تعالیٰ په دوي باندے خطاطیف او بلسان مارغان (چه هغوي ته تو تکري وئیلے کیدیشي) رااولیږل چه دَ هغوي په پنجو او مخوکو کښې کاڼي وؤ او دوي ئې په هغې باندے اوویشتل نو هغوي داسې هلاک شول چه بدنونه ئې ذرے ذرے او بد بوئیه شول۔ او اکثر روایتونو

# أَلَمْ يَجْعَلْ كَيْدَهُمْ فِي تَضْلِيلٍ ﴿٢﴾

| آيا او نه ګرځوو يې | چل ول دَ هغوی | بې کاره |
|---|---|---|

کښې راغلې دی چه دا دَ نبي صلی الله عليه وسلم دَ پيدائش نه پنځوس ورځې وړاندې واقعه وه نو دا دَ نبي صلی الله عليه وسلم دَ نبوت دَ پاره ارهاص وو (هغه خرق عادت کار چه دَ نبي دَ پاره مخکښې دَ نبوت دَ هغه نه ښکاره شي).

أَلَمْ تَرَ دا لفظ رويت دَ سترګو يعني په سترګو سره ليدل او رويت علمي دواړو ته شامل دے او خطاب نبي صلی الله عليه وسلم ته په اعتبار دَ رويت علمي سره دے او نورو مخاطبينو (قريشو) ته په اعتبار دَ رويت بصري دے چه هغوی دا واقعه په سترګو باندے ليدلے وه. ابن کثير رحمه الله ليکلي دی چه په دے کښې اشاره ده چه دا حفاظت دَ بيت الله دَ اصحاب فيل نه دَ قريشو دَ غوره والی دَ وجے نه نه دے بلکه دَ دے دَ پاره دے چه په دے کښې محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم مبعوث کيږي او دَ هغه دَ رسالت دَ پاره به دا مرکز وي. او په حديث دَ حديبيه کښې راغلې دی چه هرکله اوښه دَ نبي صلی الله عليه وسلم کيناستله او مکے طرف ته نه تلله نو نبي صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه دا کيناستل دَ دے عادت نه دے لکِنْ حَبَسَهَا حَابِسُ الْفِيْلِ (منع کړے ده دے لره هغه ذات چه هاتيان يې دَ کعبے نه منع کړے وو) په دے جمله کښې دے واقعے ته اشاره وه. کَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ کيف کښې اشاره ده دليلونو ته په کمالِ قدرت او علم دَ الله تعالیٰ سره او په شرافت دَ بيت الله دَ دے وجے نه اول يې دا فعل اجمالي ذکر کړو.

بِأَصْحَابِ الْفِيلِ الفيل اسم جنس دے يو هاتي وو يا ډير هاتيان ښا په اختلاف دَ رواياتو سره.

۲ په دے کښې تفصيل دَ فعل دے، أَلَمْ يَجْعَلْ استفهام دَ تقرير او تاکيد دَ پاره دے. کَيْدَهُمْ مکر او تدبير دَ پاره دَ نړولو دَ کعبے او دَ ذليل کولو دَ اهل مکه په هاتيانو راوستلو او ډير لښکر راجمع کولو سره. فِي تَضْلِيلٍ دا په معنیٰ دَ ابطال او دَ برباد ولو سره دے لکه ضَلَّ سَعْيُهُمْ او معانے دَ ضلال په تفسير دَ سورة فاتحه کښې په تفسير دَ ضلال کښې تير شويدي

وَّاَرْسَلَ عَلَيْهِمْ طَيْرًا اَبَابِيْلَ ۝۳

او را اولیږل ئې په هغوی باندې مارغان ډلې ډلې ،

تَرْمِيْهِمْ بِحِجَارَةٍ مِّنْ سِجِّيْلٍ ۝۴

ویشتل ئې هغوی لره په کانړو د پاخه کړو شوؤ نه په اور کښې ،

فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ مَّاْكُوْلٍ ۝۵

نو او کرځول ئې هغوی پشان ته د بوسو خوړلې شوؤ -

۳. دا عطف په طریقه دَ تفسیر دَ تضلیل دے. وَاَرْسَلَ دا لفظ دلالت کوی په ډیر والی باندے. عَلَيْهِمْ دلالت کوی چه دا عذاب دَ بره طرف نه وؤ او په دوی باندے محیط وؤ. طَيْرًا نکره کښې اشاره ده چه نا اشنا قسم مارغان وؤ او دا رنګ اشاره ده کثرت دَ هغوی ته. اَبَابِيْلَ فراء وئیلی دی چه دَ دے مفرد مستعمل نه دے او بعضو وئیلی دی چه مفرد ئې اباله دے او بعضو وئیلی دی چه مفرد ئې ابول دے او بعضو ابیل وئیلی دے او معنیٰ دَ دے جماعات، ډیر، پرله پسے ده.

۴. بِحِجَارَةٍ دا تنکیر هم کثرت او نا اشنا والی ته اشاره ده. مِنْ سِجِّيْلٍ کټے دَ هغه خټو نه چه پخه شوے وی په اور کښې یا سجیل په معنیٰ دَ هغه کتاب دے چه په هغې کښې دَ دوی عذاب لیکلے شوے وؤ مشتق دے دَ سجل نه لیکلو ته وئیلے کیږی.

۵. كَعَصْفٍ عصف هغه پاڼړے دَ فصل چه څاروی ئې خوری یا بوس. مَّاْكُوْلٍ هغه کیا چه او خوړلے شی. (سوال) چه او خوړلے شی نو هغه خو په معده کښې غائب وی نو هغې سره خو تشبیه فائده نه لری؟
(جواب) مراد دا دے چه روستو دَ خوراک نه غوشیانو او خاشتړو په شکل کښې را اوځی نو هغه بد بوئیه او دَ یو بل نه ئې اجزاء جدا جدا وی لیکن په دے باندے تصریح کول په کلام فصیح او بلیغ کښې مناسب نه وؤ دَ دے وجے نه ذکر نه شول. نو دا رنګ دَ دوی بدنونه ټکړے ټکړے شول او بد بوئیه مردار شول.

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورة الفیل په فضل دَ الله تعالیٰ سره

سُورَةُ قُرَيْشٍ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۴ رُكُوْعُهَا ۱

لِاِيْلٰفِ قُرَيْشٍ ۝۱ اٰلٰفِهِمْ رِحْلَةَ الشِّتَآءِ

تعجب پکار دے په مینه د قریشو (د دُنیا سره)، مینه د هغوی د سفر د ژمی سره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة قریش

ربط دَ دے سورت دَ مخکښ سورت سره په درے وجو سره دے اوله وجه دا ده چه په هغه سورت کښ تخویف دنیوی وو دشمنانو دَ بیت الله ته نو په دے سورت کښ دعوت دَ توحید دے دَ پاره دا دَشکر مجاورینو دَ بیت الله ته دویمه وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ تخویف دنیوی وو نو په دے سورت کښ زجر دے. دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ یو نعمت ذکر شو چه حفاظت دَ بیت الله دے نو په دے سورت کښ نور دوه نعمتونه ذکر کوی چه اطعام او امن دے.

دعوٰی دَ سورت زجر دے په محبت دَ دنیا او دعوت دے توحید ته او نوم دَ الله تعالیٰ (رب) ذکر دے او دوه صفتونه فعلیه ذکر دی.

خلاصه دَ سورت دا ده. اول زجر دے په محبت دَ دنیا سره عمومًا په ۱ کښ بیا په محبت دَ سفرونو دَ دُنیا دَ پاره خصوصًا په ۲ کښ بیا دعوت دے توحید فی العبادة ته په ۳ کښ بیا ذکر دَ دوه نعمتونو دے په طریقه دَ دلیل دَ توحید سره په ۴ کښ.

تفسیر ۱ په دے کښ زجر دے قریشو ته په الفت کولو دَ دُنیا سره مفعول ئے حذف کړیدے (الدنیا) او اضافت دَ مصدر دے فاعل ته. په دے لام کښ دَ مفسرینو درے اقوال دی اول دا چه متعلق دے په فجعلهم کعصف ماکول پورے، دویم قول دا چه متعلق دے په فلیعبدوا (روستنی) پورے او په دے دواړه توجیهاتو سره ایلاف یو نعمت دے چه هغه تجارت کول دی دَ پاره دَ حصول رباتے په بل مخ)

وَالصَّيْفِ ۝۲ فَلْيَعْبُدُوْا رَبَّ هٰذَا

او دَ اوړی سره . نو بندګی دې خاص کړی رب دَ دے .

دَ رزق او دریم قول دا دے چه لام دَ تعجب دے یعنی تعجب اوکړئ په مینه کولو دَ قریشو باندے او ابن جریر وئیلی دی چه دا قول حق او صحیح دے، او بیا په دے قول سره دا زجرد ے قریشو ته په محبت دَ مال دَ دنیا باندے. قریش دا قبیله اولاد دَ نضر بن کنانه بن خزیمه بن مدرکه بن الیاس بن نضر وو. نو څوک چه اولاد دَ نضر ته دی نو هغه قریشی دے او په حدیث دَ امام بخاری کښ وارد دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه یقیناً الله تعالی غوره کړے وه کنانه دَ اولاد دَ اسماعیل علیه السلام نه اوغوره کړے دے قریشو لره دَ اولاد دَ کنانه نه او غوره کړے دی بنی هاشم دَ قریش نه اوغوره کړے دے ما لره دَ بنی هاشم نه نو معلومه شوه چه قریش نسب دَ دُنیا دَ ټولو نسبونو نه اشرف او افضل دے (په شرط دَ ایمان سره) او دَ قریش په وجه تسمیه کښ ډیر اقوال دی اول قول دا دے چه تقرّش جمع کیدلو ته وئیلے شی نو قریش هم اول په مختلفو علاقو کښ متفرق وو نو بیا حرم مکه ته راجمع شول دویم قول دا دے چه تقرّش کسب کول او تجارت کولو ته وئیلے کیږی او قریش هم تاجران وو. او دریم قول دا دے چه قرش نوم دَ یو دا په دے په سمندر کښ چه غالبه ده په ټولو دَ اوبو (ځناورو) دَ بحر باندے نو دا رنګ قبیله دَ قریشو اوچته ده په ټولو قبیلو او نسبونو باندے او نور وجوه هم شته دے.

سے دا تخصیص بعد التعمیم دے. امام مالک رحمه الله علیه نه نقل دی چه کال په دوه حصّو باندے تقسیم دے ژمے او اوړے او ربیع او خریف پکښ عارضی دی هغے ته اعتبار نیشته. رِحْلَةَ الشِّتَآءِ دوی به په موسم دَ ژمی (سړ ژمے) کښ یمن ته سفر کوؤ چه هغه ګرم وطن وو. وَالصَّيْفِ په موسم دَ اوړی کښ ئے شام ته سفر کولو چه هغه یخ وطن وو او په دے سفرونو کښ یو غرض دا وو چه خلقو به دَ دوی احترام او اکرام کوؤ دَ دے وجے نه چه دَ الله تعالی دَ کور مجاورین دی او لوئے

الْبَيْتِ ﴿٣﴾ الَّذِيْٓ اَطْعَمَهُمْ مِّنْ جُوْعٍ ۙ

| کور | لره | ۰ | هغه ذات چه | خوراک ئې ورکړو دوی ته (چه يځ شي) دَ لوږې نه |
|---|---|---|---|---|

نسب والا دی نو د پرې هدایا او نذرانې په ئې ورکولې او دویم غرض تجارت کول وؤ او دریم غرض دَ گرمې او دَ یخنې نه بچ کیدال او په دنیوی ژوندا کښ لذتونه او مزې اخستل وؤ او دا دریے واړه غرضونه اګر چه مباح دی لیکن دَ الله تعالیٰ دَ کور په نوم هدایا او نذرونه حاصلول او دَ الله تعالیٰ توحید ته منل او تجارتونه او دَ دُنیا مزې حاصلول او دَ الله تعالیٰ دَ توحید ته مخ اړول دا قبیح کار دے او دا سبب دَ زجر دے گویا چه دلته عبارت پټ دے (وتركوا عبادة الله تعالیٰ) او حقیقت هم دَ دے شاهد دے چه په هغه وخت قریشو شرک اوکفر او ظلم کوؤ.

۳ـ دا دعوت دے توحید فی العبادات او ترک دَ شرک کولو ته فَاءِ کښ اشاره ده چه دَ دنیا دَ گټلو سره (چه مباح کار دے) توحید او ایمان یوځائے کړئے. فَلْيَعْبُدُوْا ظاهری عبادتونه په مشرکین عرب کښ وؤ موځ، روژه دَ عاشوراء، حج، عمره، طوافونه، په مال کښ دَ الله تعالیٰ دَ نوم حصه مقررکول، صدقے کول، دیّت، قسامة، قصاص، او نور امور شرعیه چه په دے باندے دَ قرآن او حدیث نصوص او تاریخ دَ عرب شاهد دے لیکن ایمان او توحید پکښ نه وؤ نو مراد دَ عبادت نه توحید دے او فراء بغوی دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت راوړے دے چه هرعبادت (ماموربها) په قرآن کښ په معنیٰ دَ توحید سره دے نو دلته هم مراد دعوت دے توحید فی العبادات ته. رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ لفظ دَ رب کښ اشاره ده چه په دوی کښ توحید دَ ربوبیت (خالق او مدبر گڼل) وؤ او اضافت ئې بیت ته خاص اوکړو یو دَ دے وجے نه چه نعمت ته (چه سورة فیل کښ ذکرشو) اشاره ده چه دا بیت الله تعالیٰ بچ ساتلے دے ستاسو دَ اصنامو (بتانو) پکښ هیڅ دخل نیشته. دویم کله کله په دوی دَ رب اطلاق په خپلو معبودانو باطلو باندے هم کوؤ (په معنیٰ دَ معبود سره) لیکن دَ بیت الله رب ئې صرف الله تعالیٰ گڼړلو، نو دَ دے وهم دَ دفع کولو دَ پاره ئې دا اضافت ذکر کړو.

# وَّ اٰمَنَهُمْ مِّنْ خَوْفٍ ﴿۴﴾

او امن ئې ورکړو دوی ته د ویرې نه.

دا ذکر د دوه نعمتونو حاصلو دے په طریقه د دلیلونو د توحید سره او دا نعمتونه د دوی په محنت سره نه وو حاصل شوی بلکه په دُعاء د ابراهیم علیه السلام سره د طرف د الله تعالیٰ نه وو هغه دُعا ذکر په سورة بقره ۱۲۶ کښې او د دے نعمتونو ذکر په سورة قصص ۵۷ او سورة عنکبوت ۶۷ کښې شوی دے. او په دے کښې په طریقه د تعریض سره اشاره ده چه دعوت د توحید د نه منلو په وجه سره الله تعالیٰ ستاسو نه دا نعمتونه اخلی لکه چه په سورة نحل ۱۱۲ کښې ذکر دی او قحط وربانده راغے په خیرو کولو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره او جنګونه وربانده شروع شول. اَطْعَمَهُمْ اشبعهم ئې نه دے ویلے یو وجه خو دا ده چه دوی ته خوراک په مړه خیټه سره نه وو ملاؤ شوے لکه چه اوس زمانه کښې دے. دویمه وجه دا ده چه انسان د حرص د وجې نه نه مړیږی لکه چه حدیث کښې راغلی دی چه د انسان خیټه صرف په خاوره (د قبر) باندے مړیږی. مِنْ جُوْعٍ (سوال) د اطعام په صله کښې مِن نه راځی؛ (جواب) دا په طریقه د تضمین د بل فعل سره دے یعنی وحفظهم من جوع یا مِنْ په معنیٰ د بعد سره دے. مِنْ خَوْفٍ د ویرے د دشمنانو نه او دارنګ د ویرے د مرض د جذام او د دخول د دجّال نه.

فائده:- ذکر د قریش په دے سورت کښې په طور د یو نمونے سره دے او داخل دی په دے کښې هغه اصحاب اقتدار او علماء او پیران چه هغوی ذمه داران د دین ګرځولے شوی دی او نعمتونه د خوراک او امن او عزت د دین د وجے نه هغوی ته ورکړے شوی دے او بیا ئې هم د دُنیا پرستیٔ او اقتدار دنیوی په حرص سره حق ته او خصوصًا توحید وسنت ته شا کړے ده او حق پښتونکی دی که دوی توبه او نکړی نو په دنیا کښې به عذاب د قحط او غلبے د دُشمن او په آخرت کښې به په عذاب الهی کښې اخته شی (اللهم اغفرلنا واعف عنا)

الحمد لله ختم شو تفسیر د سورة قریش په فضل د الله تعالیٰ سره

| سُوْرَةُ الْمَاعُوْن مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۷ | رُكُوْعُهَا ۱ |
| --- | --- | --- | --- |

أَرَءَيْتَ الَّذِي يُكَذِّبُ بِالدِّينِ ① فَذَٰلِكَ

| ايا خبر يې په هغه کس | چه دروغژن گڼړى | دين لره - | نو دا خو |
| --- | --- | --- | --- |

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة الماعون او نور نومونه يې سورة ارءيت او سورة الدين او سورة التكذيب هم دي۔

ربط دَ دے سورت دَ مخکښ سره په درے وجو سره دے اوله وجه داده چه په مخکښ سورت کښ دعوت دَ عبادت ذکر کړے شو نو په دے سورت کښ جواب دَ وهم دَ مشرکانو دے هغه دادے چه مونږ عبادت کوو- (مونځ کوو، خيرات ورکوو) جواب دادے چه دَ تکذيب دَ دين دَ وجے نه دَ دوى دغه عبادات برباد دى- دويمه وجه داده چه په مخکښ سورت کښ زجر وو په محبت دَ دُنيا سره نو په دے سورت کښ زجر دے په هغه صفاتِ قبيحه باندے چه دَ محبت دَ دُنيا نه پيدا کيږى. دريمه وجه داده چه مخکښ زجر وو خاص صفت والا دُشمنانو دَ دين ته نو په دے سورت کښ عوامو مکذبينو دشمنانو ته زجر دے۔

دعوى دَ سورت. زجر دے په صفاتِ قبيحه دَ مکذبينو سره۔

خلاصه دَ سورت دا ده۔ اول زجر دے په تکذيب بالدين سره په ۱ کښ بيا تعريف دَ هغه دے په دوه صفتونو قبيحو سره په ۲، ۳ کښ بيا جواب دَ وهم دے چه دا مکذب خو مونځ کوى په ۴ کښ بيا جواب دے دَ بل وهم چه دِ دے خو صدقات کوى په ۵، ۶ کښ، نو کل صفاتِ قبيحه شپږ دى۔

تفسير ۱ أَرَءَيْتَ استفهام دے او مراد په دے سره مبالغه ده په تعجب کولو کښ دَ حال دَ مکذب بالدين چه سره دَ ښکاره دليلونو دَ دين نه تکذيب کول خو ډيره عجيبه ده معنىٰ دا ده تعجب دَ ر پاتے په يل مخ )

الَّذِي يَدُعُّ الْيَتِيمَ ﴿٢﴾ وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ

هغه دے چه دیکے (ټیلے) ورکوی یتیم لره ، او نه ورکوی تیزی په خوراک

الْمِسْكِينِ ﴿٣﴾ فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ ﴿٤﴾ الَّذِينَ

دَ مسکین باندے ۔ نو تباهی ده مونځ والو لره ، هغه کسان چه

هغه شخص په حال باندے چه تکذیب دَ دین کوی "یا ارءیت په معنیٰ دَ هل عرفت دے (لکه چه خازن وئیلے دی) یعنی مکذب بالدین تلبیس کوی او وائی چه زهٔ خو دین منم لیکن تاسو (اے مؤمنانو) دین نه منئے (دَ اباؤ دَ طریقے خلاف یئ) نو دَ دے تلبیس دَ زائله کولو دَ پاره او ئیلے شو چه ایا مکذب پیژنئے ۔ نو که نه ئے پیژنے نو راشه واوره ۔ بالدِّيْنِ دا عام دے دین اسلام او جزاء او حساب ټولو ته شامل دے او ارءیت خطاب عام دے هر هغه چا ته چه دا اوری ۔

سڅ فَا جزاء دَ شرط محذوف ده یعنی فان لم تعرفه ۔ فَذٰلِكَ الَّذِي يَدُعُّ ، دَعّ په زور سره دفع کول دی او مراد دَ دے نه منع کول دَ حق دَ یتیم لره دَ هغه مالونه خوړل په باطله طریقے سره په هغه باندے ظلم کول ، هغه له میراث کښ حصه نه ورکول او دا ټول عادات دَ جاهلیت وو او دا سبب دَ لوئے عذاب دے لکه چه په سورة نساء سنا کښ دی ۔ او دَ دے صفت حاصل دا چه دے ظالم دے ۔

سٓ وَلَا يَحُضُّ مفعول ئے محذوف دے دَ پاره دَ تعمیم یعنی تیزی نه ورکوی ځان له او بل چا لره بلکه بخیله هم ۔ بخل کوی او نورو ته هم په بخل سره حکم کوی او دا سے په سورة الحاقه ۳۴ او الفجر ۱۸ کښ هم ذکر شوے دی ۔ طَعَامِ الْمِسْكِينِ مشرکان طعام ورکوی منجورانو دَ خپل معبودانو ته او هغه لوئے ثواب گنړی او دَ الله تعالیٰ په نوم باندے مسکین ته طعام نه ورکوی بلکه بهانه کوی هغه چه په سورة یٰس ۴۷ کښ ذکر ده او دَ دے صفت حاصل دا چه دا بخیل دے ۔

سٔ دا جواب دَ سوال مقدر (پټ) دے چه دوی خو مونځونه کوی نو ولے دوی ته مکذب بالدین وئیلے شی ؟ جواب دا چه دَ دهٔ مونځ

هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ ﴿۵﴾ الَّذِينَ

دوی د مونځونو خپلو (د مقصد) نه ناخبره دی، هغه کسان

هُمْ يُرَاءُونَ ﴿۶﴾ وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ ﴿۷﴾

دی چه ځان خودنه کوی (په خپل عملونو سره). او منع کوی د فائدے څیز لره.

سبب د ویل دے او دا مونځ سبب د مدح نه دے د دے وجے مقیمین ئے ورسره نه دے ذکر کړے او دا دلیل دے چه مشرکینو مکه کښ هم مونځ کوو لکه په سوره انفال ۳۵ کښ ذکر دی.

۵ دا سبب د ویل ذکر کوی. سَاهُونَ غافل دی او د هغے مختلف طریقے دی بالکل پریخودل. د اول وخت نه روستو کول او د مستحب وخت نه همیشه روستو کول او د هغے د ارکانو او شرطونو نه غافل کیدل او دا رنګ د هغے د حقیقت نه غفلت او جهل کول لکه چه ایاك نعبد و ایاك نستعین په قراءت د مونځ کښ لولی او بهر د مونځ نه غیر الله له بندګی کوی او مراد ترینه غواړی یعنی صرف په ژبه ئے لولی او عمل پرے نه کوی.

ابن کثیر وئیلے دی چه دا لفظ ټولوته شامل دے او هر هغه څوک چه موصوف وی په یو فعل سره د دے نه نو هغه لره د دے ایت نه حصه ده او څوک چه په دے ټولو اعمالو باندے متصف شی نو ایت ورته پوره شامل دے نو حاصل د دے صفت دا چه جاهل او بیلمازه دے او د عطاء نه روایت دے چه الحمد لله چه عن صلوتهم ئے وئیلے دے او فی صلوتهم ئے نه دے وئیلے. ځکه په مونځ کښ سهو خو نبی صلی الله علیه وسلم ته هم عارض کیدله او محدثینو او فقهاؤ خو باب السهو فی الصلوٰة ذکر کړے دے.

۶ دا هم سبب د ویل دے. يُرَاءُونَ مراد د دے نه ریاء د مونځ ده چه د خلقو په مخکښ کوی او چه غائب شی نو نه کوی یا د خلقو په مخکښ اوګدمونځ کوی او چه غائب وی نو زر زر کوی یا مراد د دے نه ریاء ده په صدقاتو ورکولوکښ او دا صفت د منافقینو هم ذکر کړے شوے دے په سورة نساء ۳۸ کښ او ریاء ته (پاتے په بل مخ)

په حدیث کښې شرك خفي وئیلې شوې دے. او حاصل دَ دے صفت دا چه ریا کار دے.
هآں فرض اداکول په عذر دَ ریا سره پرېخودل جائز نه دی بلکه دَ خپل نیت اصلاح دِے اوکړی او فرض دِے اداکړی او دا رنګ که یو شخص عمل خالص دَ الله تعالیٰ دَ پاره کوی لیکن چه خلق وریاندے خبرشی نو دِے په هغے باندے خوشحاله شی نو دا ریاء نه ده دارنګ حدیث ابن کثیر دَ ابو لیلیٰ په روایت سره نقل کړے دے.
ڪ دا دلیل دے دَ دوی په ریاءکارئے باندے یعنی هرکله چه دوی ماعون منع کوی نو صدقه دَ الله تعالیٰ په نوم باندے څنګه اوکړی بلکه دَ ریاء دَ پاره صدقه کوی او دا بل صفت قبیحه دے او دَ دے حاصل دا دے چه دا انسان بے مروّت او حرصناك دے.
الْمَاعُوْنَ قرطبی دَ دے دولس معانے ذکر کړے دی لیکن دا لفظ هغه ټولو ته شامل دے ځکه چه ماعون دَ معن نه دے لګ څیز ته وئیلې شی یا دَ عون نه دے اسیا بو دَ مدد ته وئیلې شی. نو په دے کښې اوړه او به، تبر، مالګه، یوقه، ګلاس دَ او بو څښکلو دَ پاره، مطلق نیکی کول، زکوٰة، دعوت دَ حق، بیا ټول دَ قرآن دا ټول داخل دی. حاصل دَ دے صفاتو دا دے چه هغه انسان چه ظالم او بخیل او بیلمانځه او ریاکار او بے مروّته دے نو هغه مکذب دَ دین او دَ جزاء دے که چرے دهٔ دین توحید او اسلام منلے او ورځ دَ جزاءئے منلے نو دا صفتونه به پکښې کلاً یا بعضاً نه وے.
ختم شو تفسیر دَ سورة ماعون په فضل دَ الله تعالیٰ سره

| سُورَةُ الْكَوْثَرِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰياتها ۳ | ركوعها ۱ |
|---|---|---|---|

إِنَّآ أَعْطَيْنٰكَ الْكَوْثَرَ ① فَصَلِّ لِرَبِّكَ

يقيناً درکړې مونږ تاته ډير د فائدے خيز . نو مونځ کوه خاص خپل رب له

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة الکوثر او د دے بل نوم سورة النحر دے

ربط د دے سورت د مخکښ سورت سره په درے وجو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښ سورت کښ په کومو اوصافو باندے زجر وؤ نو په دے سورت کښ د هغے په ضد او صافو باندے امر ورکوی . دویمه وجه په هغه سورت کښ مکذب بالدین ذکر شو او هغه دُشمن د نبي صلی الله علیه وسلم دے نو په دے سورت کښ د هغه د ابتر کولو د پاره امور ذکر کوی . دریمه وجه هر کله چه مخکښ سورتونو کښ د قران مخالفت کوؤنکی ذکر شول نو اوس تیزی ورکوی په دعوت باندے قران کریم ته د پاره د کامیابے د اهلِ قران او د پاره د مغلوبیت د دُشمن .

دعوٰی د سورت درے امور د پاره د مغلوبیت د دُشمن دی . او د الله تعالیٰ یو نوم (رب) او یو صفتِ فعلیه ذکر شوے دے .

خلاصه د سورت . اولاً نعمت د کوثر ذکر دے چه هغه قران دے په دنیا کښ او د هغے په سبب سره د حوض کوثر نه څښکل حاصلیږی په اخرت کښ ، او په دے کښ ضمناً امر دے په بیا نولو د قران سره) بیا دوه اداب دی د پاره د دعوت کوؤنکی او په هغے کښ رد د شرک په عبادت بدنیه او مالیه کښ ذکر دے او بیا نتیجه د دے ذکر کوی په مغلوبیت د دُشمن سره چه دا بل نعمت دے .

فائده :- د دے نه تر سورة الناس پورے خطابات دی اهلِ قران ته او هغوی ته اداب ذکر کوی .

تفسیر :- په دیکښ په ظاهر کښ ذکر د نعمت دے ریا تے په بل مخ )

وَانْحَرْ ﴿۲﴾ اِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الْاَبْتَرُ ﴿۳﴾

| او قربانی کوه - | یقیناً | دښمن ستا | خاص هغه دے بے خیره (لنډ یے). |
|---|---|---|---|

په نبی صلی الله علیه وسلم باندے او ضمناً حکم دے په دعوت الی القران باندے یعنی انا اعطیناك الکوثر فبینه للناس (نو بیان کړه دا خلقو ته) او ابن قیم په بدائع التفسیر کښې وئیلی دی چه په دے جمله کښې انّ نه تاکیدات دی. اَعْطَیْنَاكَ دَ عطیه نه ماخوذ دے یعنی بخشش بغیر دَ هیڅ عوض نه. الکَوْثَرُ وزن دَ فوعل دے دَ کثرت نه په معنیٰ دَ خیر کثیر. او کوم څیز چه عدد یا قدر ئے ډیر وی نو عرب هغې ته کوثر وائی.
امام بخاریؒ په تفسیر دَ دے سورت کښې دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت راوړے دے چه کوثر هغه خیر دے چه الله تعالیٰ نبی صلی الله علیه وسلم ته ورکړے دے او هغه نهر چه په جنت کښې دے هغه هم دَ دے خیر نه دے. او قرطبی په دے کښې شپاړس اقوال نقل کړے دی او دَ حسن بصری او عکرمه نه روایت دے چه کوثر قران او نبوت دے او بعض احادیث صحیحه دَ بخاری کښې نقل دی چه دا حوض دے په جنت کښې او ډیر احادیث صحیحه (چه بعض صحیح مسلم کښې شته) دلالت کوی چه دا حوض په موقف دَ حساب (میدان حشر) کښې دے نو حاصل دادے چه په دنیا کښې کوثر قران او نبوت دے او په آخرت کښې کوثر حوض یا نهر دے چا چه په دُنیا کښې دَ قران نه خیر او هدایت حاصل کړو نو په آخرت کښې دَ هغهٔ کوثر نه به سیرابی حاصلوی. قاضی عیاضؒ فرمائیلی دی چه احادیث دَ حوض صحیح دی او ایمان په دے باندے فرض دے او دا په نیز دَ اهل السنة والجماعة په ظاهر باندے حمل دے تاویل پکښې نشی کیدلے.
سے دا ادب دے دَ پاره دَ اهلِ قران او فاء سببیه ده یعنی اعطاء دَ کوثر سبب دے دَ مابعد دَ پاره چه عبادت بدنیه او مالیه دَ رب دَ پاره خاص کړه په طریقه دَ ادایو دَ دعوت الی القران سره او په طریقه دَ شکر دَ دغه نعمت سره. فَصَلِّ په دے کښې صلوٰة خمسه او صلوٰة عید او صلوٰة مزدلفه او ټول صلوات نفلیه داخل دی. لِرَبِّكَ په دیکښې تعریض دے

په مشرکانو باندے چه هغوی صلوٰة کوی یا اجزاء دَ صلوٰة (قیام رکوع سجده) کوی دَ پاره دَ معبودانو یا طلو یعنې بتان، قبرونه، نمر سپوږمئ وغیره نو ته دَ هغوی خلاف کوه - وَانْحَرْ نحر دَ اوښانو، که په منئ کښې وی اوکه په نورو اوقاتو او مکانونو کښې وی او په دے کښې هم دَ عطف دَ وجے نه لِرَبِّکَ مراد دے دَ پاره دَ رد په مشرکینو باندے چه هغوی هم نحر او ذبح او نذر دَ غیرالله دَ پاره کوی او ذکر دَ نحر دَ اوښانو او مراد دَ دے نه ټول عباداتِ مالیه دی په دلیل دَ سورة انعام ۱۶۲ سره. او په تفسیر دَ وانحر کښې دَ علی رضی الله عنه روایت کړے شوے دے چه په مونځ کښې لاسونه دَ نحر دَ لاندے کیده. ابن کثیر وئیلی دی دا روایت صحیح نه دے او بل روایت دَ علی رضی الله عنه مرفوعًا نقل کړے شوے دے چه مراد دَ دینه لاس پورته کول دی سینے ته په اول تکبیر کښې بیا چه رکوع له ځی بیا چه دَ رکوع نه راوچت شی او چه سجده کوی او په هغې کښې دی چه دا زینت دَ مونځ دے. او ابن کثیر وئیلی دی چه دا حدیث منکر جدًا دے. او ابن جوزی په موضوعات کښې راوړے دے. او په دے ایت کښې هم ابن قیم په بدائع التفسیر کښې اته تاکیدات ذکر کړے دی. او دا خطیب شربینی هم په تفسیر کښې ذکر کړے دی.

۳ دا نتیجه ده دَ پاره دَ ماقبل دَ دے وجے نه حرف عطف ئے نه دے راوړے یعنې دَ کوثر (دَ عمل او دعوت) په وجه او په اخلاص دَ عباداتِ بدنیه او مالیه په سبب ستا دشمن به ابتر شی. شَانِئَکَ شنأن بُغض او کینے ته وئیلی شی او نوم دَ هغه ئے نه دے ذکر کړے دے دَ پاره چه دا حکم هر هغه چا ته شامل شی چه دا صفت پکښې موجود وی. او مراد دَ دے نه بغض کوونکے دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ ذات سره یا بُغض کوونکے دَ هغه دَ هدایت سره دے چه قران او سنت دے بلکه دَ هغه ذات سره په اصل کښې هیڅ بغض نه دے کړے لیکن دَ هغه دَ دین سره ئے بغض کړے دے.

هُوَ الْاَبْتَرُ - هو ضمیر فصل او خبر معرفه دلالت کوی په حصر باندے نو په دے کښې اشاره ده چه ابتریت خاص دے په ژبا ئے په بل مخ)

بغض کوونکی دَ حق پورے او نبی صلی اللّٰه علیه وسلّم او اهل قرآن
ابتر نه دی ځکه دَ دوی تابعدار او دَ دوی شاگردان تر قرب قیامت پورې
به جاری وی او دَ دوی ذکرِ خیر به کوی ۔الْاَبْتَرُ بتر په لغت کښی پریکولو
ته وئیلے شی ابتر په انسانانو کښی لا ولد ته وائی او په څاروو کښی بے لکی
ته وائی او په نورو کارونو کښی بے خیره ته وائی لیکن په الف لام سره
معرفه راوړلو کښی اشاره ده کمال بتر دے او آلوسی په روح المعانی کښی
ذکر کړے دی نقل دَ شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمة اللّٰه نه کړے دے چه
دے به ابتر وی دَ هر خیر نه۔ دَ اهل او مال نه به ابتر وی (هغوی ورته
هیڅ فائده نشی ورکولے) او ژوند به ئے ابتر وی په هغے کښی توښه
دَ آخرت دَ پاره نشی جمع کولے۔ زړه به ئے ابتر وی په هغے کښی خیر او
ایمان نه ټینګیږی۔ اعمال به ئے ابتر وی ده نه به هیڅ ثواب ملاویږی.
او ابتر به وی دَ انصارو نه ځوك به دَ ده سره مدد نشی کولے، ابتر
به وی دَ ټولو عباداتو نه دَ هغے لذت او حلاوت به نه مومی اگرچه په
ظاهر کښی عبادتونه ادا کوی، او دا سزا ده دَ هر هغه چا چه بغض کوی
دَ هغے سره چه رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلّم راوړے دی لکه ځوك چه
په آیاتونو دَ صفاتو کښی تاویلونه کوی او دا رنګ کوم سلفی چه قرآن او
په احادیثو سره استدلال کوی نو دے ترینه نفرت کوی او دا رنګ
صوفیا چه غِنا گانے اوری او رقص کوی او دَ قرآن دَ اوریدلو نه نه
ټینګیږی او دا رنګ ځوک چه خبرے دَ خلقو او نورو علمو نو لړ په
قرآن او حدیث باندے غوره والے او فوقیت ورکوی۔ (نو دا ټول
په ابتر کښی داخل دی)۔
الحمد للّٰه ختم شو تفسیر دَ سورة الکوثر په فضل دَ اللّٰه تعالیٰ سره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**سورة الكافرون** او دينه سورة مقشقشه (براءة كوؤنكے دَ شرك نه) او سورة العبادة او سورة اخلاص هم وئيلے كيږي.

**ربط دَ دے سورت** دَما قبل سره په څو وجو سره دے اوله وجه دا ده په هغه سورت كښې دَ شانئ (دشمن) حال ئے ذكركړو نو دلته دَ هغه نه براءة ذكركوي دويمه وجه دا ده چه هلته په فصلّ لربّك وانحر سره توحيد ذكر شو نو په دے سورت كښې براءة دَ شرك نه ذكر كوي دَ پاره دَ تكميل دَ توحيد دريمه وجه دادہ هلته ئے دَ دشمن ابتريت ذكركړو دلته دَ دشمنئ دَ اظهار طريقه ذكركوي.

**دعوٰى دَ سورت.** اظهار دَ براءة دَ ټولو كافرانو نه.

**خلاصه دَ سورت** امر په اظهار دَ براءة او دَ جدائے دَ كافرانو نه په اعتبار دَ معبود او په اعتبار دَ طريقے دَ عبادت سره او اظهار دَ جدائے دَ دينونو.

**تفسير: قُلْ** په دے امر كښې دليل دے چه دا براءت فريضه ده دَ نبي صلى الله عليه وسلم او دَ هغه دَ تابعدارانو. يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ په اسم فاعل ئے ذكركړے دے اشاره ده چه براءت هميشه دَ هغه چا سره دے چه هميشه كافروي او الْكٰفِرُوْنَ عام دے ټولو قسمو دَ كافرانو ته - يهوديان، نصارىٰ، مجوس، مشركان، منكرين دَ خاتم النبين، منكرين دَ قيامت. منكرين دَ اتباع رسول صلى الله عليه وسلم، منكرين دَ قرآن وغيره. او المشركون ئے اونه وئيل اول خو دا دے دَ تعميم دَ پاره په لفظ كافرون سره او دويم مشركين عرب په لفظ ربا تے په بل مخ)

مَا تَعْبُدُوْنَ ۝۲ وَلَآ اَنْتُمْ عٰبِدُوْنَ مَآ اَعْبُدُ ۝۳

د هغه چا چه تاسو ئې بندګي کوئ، او نه تاسو بندګي کوونکي يئ د هغه چا چه زه ئې بندګي کووم.

وَلَآ اَنَا عَابِدٌ مَّا عَبَدْتُّمْ ۝۴ وَلَآ اَنْتُمْ عٰبِدُوْنَ

او نه زه يم بندګي کوونکے په هغه طريقه چه تاسو بندګي کوئ، او نه تاسو بندګي کوونکي يئ

د کافرون سره غصه کيدل او لفظ د مشرکون سره ئې پرواه نه کوله.

۲ نفي ئې په لا سره راوړه نه په لَنْ سره ځکه نفي په لا سره په دوام او په عموم د زمانو باندے دلالت کوی او نفي په لَنْ په زمانه د مستقبل پورے خاص دے. اَعْبُدُ مراد دے نه ټول اقسام د عبادت دی قلبي، بدني او مالي. مَا تَعْبُدُوْنَ شعراني د سيبويه نه نقل کړے دی چه حرف د ما مشترك دے په مينځ د ذوی العقول او غير ذوی العقولو کښې په لفظ د مَنْ سره ئې تعبير او نه کړو ځکه چه معبودان باطله د مشرکانو ډير دی اکثر غير ذوی العقول دی او بعض ذوی العقول دی نو مشترك لفظ ئې ذکر کړو او په نيز د جمهور و نحويانو تغليب ئې ورکړے دے غير ذوی العقول لره په ذوی العقولو باندے.

۳ دا نفي ده د جانب د کافرانو نه او دلته ئې تعبير او کړو د ذات د الله تعالیٰ نه په حرف د مَا سره اشاره ده چه هغوی د ذات د الله تعالیٰ نه انکار نه کوؤ ليکن د وصف د معبوديت د هغه نه په خصوصيت سره انکار کوونکي وو.

(سوال) مشرکان خو بعض عبادتونه د الله تعالیٰ کوی لکه چه مخکښې ذکر شويدي نو دلته څه رنګه نفي د مطلق عبادت ئې د هغوی نه او کړه؟

(جواب) مراد د عبادت نه عبادتِ شرعيه دے چه هغه بنا دے په توحيد باندے او په هغوی کښې عبادت په طريقه د توحيد سره نيشته نو عبادت د دوی الله تعالیٰ لره کالعدم شو.

۴ دا په دويم کرت براءت دے د جانب د نبي صلی الله عليه وسلم او د ټولو مؤحدينو د طرف نه په صيغه د اسم فاعل سره.

مَآ اَعْبُدُ ﴿۵﴾ لَكُمْ دِيْنُكُمْ وَلِيَ دِيْنِ ﴿۶﴾ ع

په هغه طریقه چه زۀ بندګي کوم. ستاسو دپاره ستاسو دین دے او زما دپاره زما دین دے.

ـــث دا نفي ده دَ طرف دَ مشرکینو نه او په دے دواړه جملوکښ ماوصفیه دپاره دَ بیان دَ کیفیت دَ عبادت دے چه کیفیت دَ توحید او دَ شرك او دَ سنت او دَ بدعت ـــځ دا نتیجه دَ ماقبل ده لکه چه تقسیم اوکړیشي دَ یو څیز په مینځ دَ دوه کسانو او بیا اوئیلے شي چه دا ستا حصه شوه او دا یه زما حصه.

رسوال) طریقے دَ مشرکانو ته ئے ولے دین اوئیل؟

رجواب) دا په اعتبار دَ زعم او عقیدے دَ هغوی سره یا دین په معنیٰ دَ جزاء دَ اعمالو سره دے.

فوائد: په سورت کښ اوله فائده، نفي دَ عبادت دَپاره دَ دواړه طرفونو دوه دوه جملے راوړے دي نو فراء او طیبي وئیلي دي چه دا دَ تاکید دَپاره دے یعني دریمه جمله تاکید دَپاره دَ اولے جملے دے او څلورمه جمله تاکید دَپاره دَ دویمے جملے دے او زمخشري وئیلي دي چه اوله او دویمه جمله دَپاره دَ نفي ده په زمانه مستقبل کښ او دریمه او څلورمه دَپاره دَ نفي ده په تیره شوے زمانه کښ او ابوحیان وئیلي دي چه اول دواړه دَپاره دَ نفي دَ استقبال دي او روستني دَپاره دَ نفي دَ حال دي. او زجاج نه نقل دے په عکس سره یعني اول دواړه دَپاره دَ حال او روستو دواړه دَپاره دَ استقبال. او دَ شیخ الاسلام ابن تیمیة نه نقل دے چه په اول دواړو جملوکښ نفي دَ فعل (دَ عبادت) ده او په روستنوکښ نفي دَ قبولیت ده بالکلیه او ابومسلم اصفهاني وئیلي دي چه په اول دواړه جملوکښ ما په معنیٰ دَ ذات سره دے نو نفي دَ معبودیت مراد ده او په روستنو دواړوکښ ما مصدریه وصفیه دے نو نفي دَ کیفیت دَ عبادت مراد ده او حاصل دَ دے قول دا دے چه تمیز دَ دواړه ډلو (مؤمنان او مشرکان) اول په اعتبار دَ معبود سره دے چه معبود دَ مؤحدینو صرف الله تعالیٰ دے او معبود دَ مشرکانو غیرالله دي او دویم په اعتبار دَ کیفیت او طریقے دَ عبادت سره دے یعني طریقه دَ عبادت دَ مؤحدینو شرعي ده بند ده په وحي باندے او طریقه دَ عبادت (ریا نے په بل مخ)

دَ مشرکانو بِنا دہ پہ اتباع دَ هوی او ظن او اتباع الآباء باندے او دا قول دَ بڼولو نہ غورہ قول دے۔
دوېمہ فائدہ، هر کلہ چہ اخبار دے دَ خپل نفس نہ (دَ نبی صلی اللہ علیہ وسلم نہ) نو پہ صیغو دَ مستقبل سرہ دے او هر کلہ چہ اخبار دَ مشرکانو نہ دے نو اول پہ مستقبل سرہ او بیا پہ فعل ماضی سرہ دے دَ دے وجہ دا دہ چہ کافران خو خپل معبودان بدلوی کلہ یو معبود گنړی او کلہ بل، او معبود دَ مؤحدینو خو یو او پہ یو حال دے۔
دریمہ فائدہ، پہ حق دَ مشرکانو کښں نفی صرف پہ اسم فاعل سرہ راوړے دہ او پہ حق دَ مؤحدینو کښں اولہ نفی پہ فعل سرہ او دوېمہ نفی پہ اسم فاعل سرہ ذکر دہ پہ دے کښں حکمت دا دے چہ پہ جانب دَ مؤحدینو کښں نفی دَ عبادت دَ غیر اللہ هم پہ طریقہ دَ فعل او عمل سرہ دہ او هم پہ طریقہ دَ وصفیت سرہ دہ یعنی نہ عبادت دَ غیر اللہ کووم او نہ مِ دا صفت دَے او دَ مشرکانو نہ نفی دَ وصفیت او شوہ چہ هغہ مستلزم دہ نفی دَ فعل سرہ۔
څلورمہ فائدہ، چہ توحید خو عبارت دے دَ اثبات او دَ نفی نہ او پہ دے سورت کښں صرف پہ نفی باندے اکتفاء کړے دہ دَ دے وجہ دا دہ چہ دا سورت دَ براءت دے او مقصود پہ براءت کښں نفی وی او بلہ وجہ دا دہ چہ اثبات هم پہ یکښں تبعًا راوړے دے پہ لفظ دَ مَا أَعْبُدُ سرہ دوہ کرتہ نو اول نفی او شوہ چہ هغہ دلتہ مقصود دہ او بیا اثبات او شو۔
پنځمہ فائدہ، بعضِ مفسرینو وئیلے دی چہ لکم دینکم وَلِیَ دِینِ منسوخ دَے پہ ایاتونو دَ قتال سرہ ابن قیمؒ وئیلے دی چہ دا قول غلط دے ځکہ چہ پہ دے ایت کښں دا مراد نہ دے چہ مشرکان دِے پہ خپل دین باندے باقی او ثابت پاتے شی بلکہ مراد دا دے چہ زہ ستاسو دَ دین سرہ هیڅ موافقت نہ کووم نو هغہ دین پہ تاسو پورے خاص دَے لکہ چہ زموږ دین پہ موږ پورے خاص دَے او تاسو موږ سرہ موافقت نہ کوئے او دا دَ براءت طریقہ دہ۔ او ابن قیمؒ وئیلے دی چہ دا سے کلمات دَ براءت پہ مینځ دَ تابعدارو دَ سنت دَ نبی صلی اللہ علیہ وسلم او پہ مینځ دَ بدعتیانو کښں هم وئیلے کید یشی اگرچہ اقرار دَ بدعت دَ هغوی مراد نہ دے۔
الحمد للہ ختم شو تفسیر دَ سورۃ الکافرون پہ فضل دَ اللہ تعالی سرہ۔

| سُوْرَةُ النَّصْرِ مَدَنِيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۳ | ۱ رُكُوْعُهَا |
|---|---|---|---|

إِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ ﴿۱﴾ وَرَاَيْتَ النَّاسَ

کله چه راشي مدد دَ الله تعالیٰ او کتح ، او وینې ته خلقو لره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة النصر او دیته سورة التودیع او سورة اذا جاء هم وئیلے کیږی.
ربط دَ دے سورت دَ مخکښ سره په درے وجوهو سره دے
اوله وجه دا ده چه په مخکښ سورت کښ امر دَ براءت دَ مشرکینو نه ذکر
شو نو په دے سورت کښ دغه براءت کوؤنکو ته بشارت ذکر کوی.
دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ حکم وؤ په طریقه دَ نفی سره
او په دے سورت کښ حکم دے په صیغه دَ امر بِالتَّسْبِيْحِ وَالْحَمْدُ
وَالْاِسْتِغْفَار سره۔ دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ حکم دَ براءت
وؤ نو په دے سورت کښ دَ هغے علت ذکر کوی چه هغه مغلوبیت دَ دین
دَ مشرکانو او غلبه دَ دین دَ مؤحدینو ده۔
دعوٰی دَ سورت بشارت دنیویه دے او دوه نومونه دَ الله تعالیٰ په
کښ ذکر دی (الله ، رب) او دعوٰی دَ توحید په ۳ کښ ده۔
خلاصه دَ سورت دا ده چه اول بشارت په نصرت او فتح سره دے
په ۱ کښ بیا بشارت دے په ډیروالی دَ ملګرو سره په ۲ کښ بیا امر
دے په تسبیح سره دَ حمد او په استغفار سره په طور دَ شکر دَ نعمتونو
په ۳ کښ۔
تفسیر ۱ په دے ایت کښ بشارت دے په دوه خیزونو سره إِذَا دا
مستعملیږی دَ پاره دَ زمانه مستقبل نو جَآءَ په معنیٰ دَ یجئ سره دے
او دا بشارت دے مخکښ دَ راتللو دَ نصرت او دَ فتح نه او آلوسی دَ
ما تریدی نه نقل کړے دے چه إِذَا په معنیٰ دَ اذ دے دَ ماضی دَ پاره
دے نو جَآءَ په خپله معنیٰ باندے دے او قرطبی رپاتے په بل مخ)

يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اَفْوَاجًا ﴿۲﴾ فَسَبِّحْ

| چه داخلیږی | په | دین | دَ الله تعالیٰ کښ ډلے ډلے ، | نو پاکی وایه |
|---|---|---|---|---|

يو قول نقل کړيدے چه إِذَا په معنیٰ دَ قد سره دے۔ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ په دواړو کښ فرق دا دے چه نصر نه مراد اسباب تيارول دي چه مکان وی او ملګری وی او اسلحه وی او نور ضروری سامان وی دَ ژوند تيرولو اودَ جهاد کولو دَپاره، او فَتْحُ غلبه ده په دشمن باندے او دَ دعوت اودَ جهاد دَپاره بندے دروازے کولاویدل دی. دَ مفسرينو يو قول دا دے چه مراد دَ دے نه فتح دَ مکے ده نو سوال دا دے چه دا سورت خو دَ فتح مکه نه روستو نازل شويدے په صحيح قول دَ ابن عباس رضي الله عنهما چه په صحيح مسلم کښ راغلے دے؟ نو جواب دا دے چه بيا په دے باندے إِذَا په معنیٰ دَ اذ يا په معنیٰ دَ قد سره دے او صحيح قول دا دے چه مراد دَ نصر نه مطلق نصرت دَ الله تعالیٰ دے او مراد دَ فتح نه جنس فتح دَ بلادو ده نو إِذَا په خپله معنیٰ سره دے او جَآءَ په معنیٰ دَ مستقبل سره دے۔

۲ په دے کښ دريم بشارت ذکر دے يعنی په اول وخت کښ خلق په اسلام کښ لګ لګ داخليدل ليکن روستو دَ نصرت او فتح نه په ډلے ډلے داخليږی او دَ فتح مکه نه روستو هم دغه شان او شول. وَرَاَيْتَ خطاب دے نبی صلی الله عليه وسلم ته او ټولو ليدونکو ته او مراد دَ رويت نه عام دے که رؤيتِ بصری وی او که قلبی وی (په معنیٰ دَ علم سره). (فائده) جواب دَ إِذَا پټ دے يعنی فَذَاكَ اَجَلُكَ او دا بيا دے په حديث دَ ابن عباس رضی الله عنهما چه امام بخاری روايت کړيدے چه دَ نورو صحابو نه عمر رضی الله عنه دَ دے سورت په باره کښ تپوس اوکړو نو بعضو اوئيل چه په دے کښ مونږ ته امر دے دَ تسبيح او استغفار روستو دَ نصرت او فتح نه او بعض چپ شول او ابن عباس رض جواب ورکړو چه په دے سورت کښ اخبار دَ اجل دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم دے نو عمر رض اوئيل چه زما په علم کښ هم دا خبره وه۔ او په دے وجه دے سورت ته سورة التوديع وئيلے شويدے يعنی رخصت کيدل دَ رسول الله صلی الله عليه وسلم۔

بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ ؕ اِنَّهٗ كَانَ تَوَّابًا ﴿۳﴾

سره دَ ستا ئینے دَ رب ستائنه او بخنه غواړه دَ هغه نه- يقيناً هغه ډير قبلوؤنکے دے۔

۳ په نيز دَ عامو مفسرينو دا جواب دَ اِذَا دے يعنی دَ دغه نعمتونو په شکر کولو کښی تسبيح او استغفار کوه يا دا معطوف دے په جواب دَ اِذَا باندے چه پټ دے يعنی هر کله چه ستا اجل نزدے دے نو ځان مشغول کړه په تسبيح او حمد او استغفار باندے۔ او دا هم په حقيقت کښی درے حکمونه دی په مقابله دَ درے انعاماتو کښی (تسبيح او حمد او استغفار)۔ تسبيح تنزيه (پاکی) دَ الله تعالیٰ ده په هر هغه لفظ سره چه دلالت کوی په تنزيه باندے دَ هر قسم صفاتو دَ عيب او دَ نقصان نه په عقيده کښی، او په ژبه باندے وئيل او نورو خلقوته دَ هغے دعوت ورکول لفظ دَ فَسَبِّحْ دِے ټولوته شامل دے او په دے کښی اشاره ده صفاتِ سلبيه دَ الله تعالیٰ ته چه هغه په قرآن کريم کښی په اعتبار دَ شمار کولو زما سره تقريبًا پنځلس دی مثلًا شريك، مماثل، مشابه، ولد، والد، ښځه، بنت، عجز، جهل، غفلت، خوب، ستړے والے، بخل، فنا، مرض وغيره دَ دے نقصاناتو نه الله تعالیٰ پاك کنټرل دیته تسبيح وئيلے کيږی۔ بِحَمْدِ رَبِّكَ دَ حمد نه صفاتِ ثبوتيه دَ الوهيت مراد دی چه هغه اسماءِ حسنیٰ او صفاتِ فعليه دَ الله تعالیٰ په قرآن کريم کښی ډير ذکر دی هغه صفتونه الله تعالیٰ لره په هغه طريقه سره ثابتول څه رنګ چه په قرآن او په سنت کښی راغلے دی بغير دَ تشبيه او تمثيل او تاويل او تحريف نه۔ او دا مجموعه کامل توحيد دَ الله تعالیٰ دے۔ بِحَمْدِ بآء دَ پاره دَ ملابست ده يعنی دَ تسبيح سره حمد ملګرے دے او په دے کښی ډيرے فائدے دی عـ يو دا چه رد دے په معتزله او جهميه وغيره باندے يعنی هغه خلق چه دَ الله تعالیٰ دَ پاره صفتونه دَ کمال نه ثابته وی او تنزيه ورله ثابته وی عـ۲ دويمه دا چه صرف تنزيه دَ نقصاناتو نه الوهيت نه دے ترڅو پورے چه صفاتِ ثبوتيه ورسره نه وی عـ۳ دريمه دا چه په انسان باندے دوه حالتونه راځی يو دَ مرض او دَ کمزورئے او نور دَ نقصان حالات نو په هغه وخت کښی تسبيح پکار ده او دويم حالت دَ نعمت او دَ ترقئ (پاتے په بل مخ)

او دَ غلبے وغیره نو په دغه وخت کښې حمد وئیل ضروری دی نو هرکله چه انسان دَ دے دواړه حالتونو نه نه خالی کیږی او بے پرواه کیږی نو په دے وجے دَ هغه ژبه هم هر وخت په تسبیح او په حمد سره مشغول پکار ده چه دَ بے پرواهئ نه بچ شی۔
وَاسْتَغْفِرْهُ (سوال) دا خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او هغه خو دَ هر قسم گناهونو نه پاك وو نو دَ امر دَ استغفار فائده څه ده؟
(جواب په څو طریقو سره دے) اوله طریقه دا چه نبی صلی الله علیه وسلم هر وخت په ترقئ دَ عبادا تو او دَ درجاتو کښې وو نو هره لاندینے درجه سبب دَ استغفار دے۔
دَویمه طریقه دا دَ تعلیم دَ امت دَ پاره دے۔
دَریمه طریقه چه هغه غوره بلکه صحیح ده استغفار مستلزم دَ ارتکاب دَ گناه نه دے بلکه دَ قصور دَ حق دے نو نبی صلی الله علیه وسلم سره دَ علو دَ شان او سره دَ عصمت دَ گناهونو نه حق دَ بندگے او دَ ثناء دَ الله تعالی نشو ادا کولے ځکه چه الله تعالی خو ډیر اعلی او اکبر او اجل دے لکه چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیل لا احصی ثناءً علیك انت كما اثنیت علی نفسك ، نو په قصور باندے دَ اعتراف دَ پاره استغفار وئیلے کیدیشی۔
فائده۔ په صحیح حدیث کښې وارد دی چه نبی صلی الله علیه وسلم روستو دَ نزول دَ دے سورت نه به په رکوع او سجده کښې لوستل سبحانك اللهم ربنا وبحمدك اللهم اغفرلی۔ نو مونږ دَ پاره هم پکار دی چه په رکوع او سجده کښې دا کلمات ډیر لولو۔
بل روایت کښې دی چه نبی صلی الله علیه وسلم روستو دَ نزول دَ دے سورت نه هر وخت او په کیناستلو او او دریدلو کښې سبحانك الله وبحمدك لوستل۔
إِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا كان دَ دوام او دَ اثبات دَ پاره دے یعنی دَ الله دا اسم صفتی او دارنگ ټول اسماء حسنیٰ ازلی ابدی دی۔
(سوال) دَ استغفره سره مناسب وو چه انه كان غفارًا وئیلے شوے؟

اوّل جواب ،، اشاره ده چه استغفار هله فرض ده وړکوی چه توبه ورسره وی کړ دے وجے په کلماتو دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښې دَ استغفرالله سره واتوب الیه را غلی دے دا رنګ په سورۃ هود ۳ او ۵۲ کښې دواړه ذکرکړے دی.

دویم جواب دا دے چه په ثواب کښې اشاره ده انعام دَ استغفار ته یعنی په مغفرت غوختلو سره خو مغفرت کیږی ( په مشیت دَ الله تعالیٰ سره ) لیکن رحمتونه بار بار کول نو په هغې سره هم زیات انعام حاصلیږی.

الحمد لله ختم شو تفسیر دَ سورۃ النصر په فضل دَ الله تعالیٰ سره

| اٰيَاتُهَا ۵ رُكُوْعُهَا ۱ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | سُوْرَةُ اللَّهَبِ مَكِّيَّةٌ |
|---|---|---|

تَبَّتْ يَدَآ اَبِيْ لَهَبٍ وَّ تَبَّ ۝۱ مَآ اَغْنٰى

هلاک شول دواړه لاسونه د ابی لهب او هلاک شو فائده ورنکړه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة اللهب او دیته سورة مسد او سورة تبّت هم ویلے شی.

ربط د دے سورت د ما قبل سره په درے وجو سره دے اوله وجه داده چه مخکښ سورت کښ بشارتونه ذکر شول نو سوال راغے چه په مقابله کښ سخت دشمن شته چه هغه د دین نه منع کول کوی نو دغه بشارتونه پوره فائده نه ورکوی نو په دے سورت کښ بشارت دے په هلاکولو د داسے دشمن سره د پاره د دے چه رکاوټ د مخے نه زائیل شی نو خلق به د الله تعالیٰ په دین کښ هله داخلیږی. دویمه وجه دا تخویف دے روستو د بشارت نه لکه چه قران کریم کښ اکثر بشارت او تخویف یو بل پسے ذکر کیدیږی. دریمه وجه مخکښ سورت کښ د تسبیح سره یے د حمد او استغفار امر اوکړو نو په دے سورت کښ د هغے نتیجه ذکرکوی چه په دے سره به دشمن هلاک شی.

دعوی د سورت تخویف دنیوی او اخروی دے په ذکر د ابولهب په طور د مثال سره.

خلاصه د سورت. اول تخویف دنیوی دے په ۱ کښ بیا ذکر د دے خبرے چه مال او اولاد سره دفعه د عذاب نه کیږی په ۲ کښ بیا تخویف اخروی سره او ښځے ته په ۳ کښ بیا ذکر د ناکاره اعمالو او حالاتو د هغه ښځے په ۴ کښ.

تفسیر ۱ تَبَّتْ د تباب نه ماخوذ دے په معنیٰ د قطع او هلاک او د همیش والی د خسران سره. نو تَبَّتْ دلته په معنیٰ د هلاکت او د هر خیر نه خالی کیدل دی. او دا لفظ دعاءِ (شر) ده. يَدَآ د دے ذکر

په دے وجه سره دے چه هغه په دغه لاسونو سره په نبي صلی الله علیه وسلم باندے دګټو ګذاروند کړے وو لکه چه په روایت دَ طارق المحاربي کښې دی چه روح المعاني او تفسیر قرطبي کښې ذکر کړے شوید او قاعده دَ قرآن او حدیث او عربیت کښې دا وه چه ګناه دَ کوم اندام نه صادر شویوی نو هغې ته یې نسبت کیږي اودَ دے ډیر مثالونه دی. او تعبیر یې په تبت سره دَ دے وجه نه اوکړو چه ابولهب هم نبي صلی الله علیه وسلم ته داسے خطاب کړے وو تَبًّا لَكَ سَائِرَ الْيَوْمِ أَلِهٰذَا جَمَعْتَنَا (هلاکت دې وی تالره همیشه ایا دَ دے دَ پاره تا مونږ راجمع کړے وو) او روایت تفصیلي بخاري مسلم او امام احمد په خپلو کتابونو کښې ذکر کړے دے

او تفصیل دَ روایت دَ طارق المحاربي دا دے چه هغه وئیلي دی چه زهٔ په بازار دَ ذوالمجاز کښې وَم نو یو سړے وو نوے عمر والا وئیل یې چه اے خلقو لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ اُوایئ نو کامیاب به شئ او دَ هغه شاته بل سړے راروان وو او دِ دے یې په کاڼو باندے ویشتلو دَ هغه پنړئ او پوندے یې په وینو باندے ککړے کړے وے او وئیل یې اے خلقو داکذاب دے دَ دهٔ خبره مه منئ نو (طارق وائي) ما تپوس اوکړو دا څوک دی نو خلقو راته اُوئیل دا محمد صلی الله علیه وسلم دے او بل یې تره دے ابولهب، هغه وائي چه داکذاب دے.

او تفصیل دَ روایت دَ صحیحین او دَ مسند احمد او ترمذی دا دے چه دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه هرکله ایت وَاَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ نازل شو نو نبي صلی الله علیه وسلم صفا (غر) ته اوختلو اوازونه یې کول اے بنی فهر اے بني عدی (خاندانونه دَ قریشو) تردے پورے چه هغوی راجمع شول او که څوک په خپله نشو راتللے نو خپل قاصد یې رااولیږو چه اوګوري چه څه چل دے او ابولهب او نور قریش راغلل نو نبي صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل فکر اوکړئ که چرے زهٔ تاسو ته خبر درکړم چه سوارهٔ فوجیان دَ دشمن راروان دی په دے وادئ کښې او په تاسو باندے حمله کوی ایا تاسو به زما خبره او منئ نو ټولو اُوئیل (ایا تے یه یل مخ)

هاؤ، نه دی کړی مونږ تجربې په تا بانډې مګر دَ رښتيا خبرو نو هغه او فرمائيل زهٔ تاسو له ويره درکوم (په بيان دَ توحيد سره) مخکښې دَ راتللو دَ سخت عذاب ته نو ابولهب ورته اوئيل تبالك سآ يرّ اليوم الهذا جمعتنا. اَبِیْ لَهَبٍ دا اسم کنيت دے او اصلی نوم ئے عبد العزّیٰ بن عبد المطلب وؤ دَ رسول الله صلی الله عليه وسلّم خپل تره وؤ. دَ اسم کنيت ذکر کولو ډيرے وجې دی اول دا چه دے په دے نوم سره زيات مشهور وؤ.
دويمه دا چه دَ دهٔ مخ سور وؤ دَ لمبے دَ اور پشان. دريمه دا چه الله تعالیٰ نه غواړی چه دَ شرك نوم (عبد العزیٰ) دِ په قرآن کريم کښې ذکر شی.
څلورمه دا چه لفظ دَ ابو په لزوم دَ څيز بانډے دلالت کوی نو په دے لفظ کښې دَ کنايې په طور سره اشاره ده چه دا شخص جهنمی دے.
سوال. دَ نبی صلی الله عليه وسلّم په ژوند کښې خو نور هم ډير دُشمنان وؤ نو دَ ابولهب ذکر ئے دَ څه وجې نه خاص اوکړو؟
اول جواب دا دے چه سخت دشمن هغه وی چه دَ سړی په کار کښې رُکاوټ اچوی نو ابولهب به دَ نبی صلی الله عليه وسلّم په دعوت کښې په هرځائے کښې رُکاوټ پيدا کوؤ لکه چه مخکښې ذکر شول. دويم جواب دا دے چه دَ دهٔ په تخصيص کښې خاص صفتونو ته اشاره ده چه هغه په دغه وخت کښې په نورو دشمنانو کښې موجود نه وؤ يعنی قريشی، هاشمی ښائسته شکل والا، مالدار، ځامن او ښځه دَ دهٔ تابعدار) نو اشاره ده چه اګرچه دا سے صفتونه په يو انسان کښې وی او دَ دنيا والو په نيز بانډے ډير عزت مند او اشرف وی ليکن هرکله چه دَ نبی صلی الله عليه وسلّم نه مخالفت کوی نو دَ هغه عاقبت دَ دنيا او آخرت تباهی ده.
وَتَبَّ اول دَ لاسونو هلاکت ذکر شو نو په دے لفظ سره دَ هغه دَ ټول بدن هلاکت ذکر شو او فراء وئيلی دی چه اوله دُعا وه او دا خبر دے او هرکله چه خبر شی نو يا خو نازل شويدے روستو دَ هلاکت دَ ابولهب نه لکه دا قول ظاهر دے او يا تعبير په فعل ماضی سره دَ پاره دَ يقينی کيدلو کړے شوے دے. او قصّه دَ هلاکت دَ هغه قرطبی ذکر کړے ده دَ ابو رافع نه چه غلام وؤ دَ عباس رضی الله عنه

عَنْهُ مَالُهٗ وَمَا كَسَبَ ﴿۲﴾ سَيَصْلٰى نَارًا

دهٔ ته مال دٔ دهٔ او هغه څیز چه دهٔ ګټلے وو۔ ژر دے چه ورننوځي به اور

هغه وئیلے دی چه دَ بدرِ دَ واقعے نه روستو (اووه شپے) په ابو لهب باندے (عدسه) بیماری راغله چه هغے ته چیچك او ننګے وئیلے شی نو په هغے سره مړ شو او درے ورځے پروت وو ځامنو هم نه دفن کوؤ نو چه بدبوئی ئے اوکړه. نو بیا ئے لرے اوویشتلو دَ دے ویرے نه چه عدسه بیماری مونږ ته متعدی نشی او دَ مکے بره طرف ته (دَ یانړچیا نو په واسطه) ئے یوړلو او یو دیوال ته ئے اودرلو او په کا نړو کښ ئے پټ کړو (العیاذ بالله تعالیٰ)۔

سلے مَآ نافیه دے یا استفهامیه دے۔ آغْنٰی عَنْهُ اغناء په معنیٰ دَ دفع کولو دَ عذاب دے په قرینه دَ عن سره۔ مَالُهٗ اشاره ده چه دے مالدار وو او اغناء دَ مال دوه قسمه وی یو دا چه دَ مالدار ئے (دَ صفت) دَ وجے دَ هغه لحاظ اوکړے شی دویم دا چه مال په فدیه کښ ورکړی او دَ عذاب نه بچ شی دا دواړه قسمونه دلته نفی دی۔ وَمَا كَسَبَ ظاهر دا ده چه دا معطوف دے په ماله باندے او مَا موصوله یا مصدریه دے او احتمال شته چه وماکسب معطوف شی په ما اغنیٰ باندے نو مَا به نافیه یا استفهامیه شی۔ او كَسَبَ عام دے اولاد ته شامل دے ځکه چه په حدیث دَ ابو داؤد کښ راغلے دی چه ولد هم کسب دَ انسان دے او دا رنګ دَ دهٔ مرتبه وجاهت او تابعداران اوکیدونه په مخالفت دَ نبی صلی الله علیه وسلم او هغه مال چه دهٔ په تجارت وغیره سره ګټلے دے یا هغه عملونه چه دهٔ ګمان کوؤ چه دا خائسته عملونه دی لکه چه منقول ده چه دهٔ دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ ولادت په زیری کښ خپله وینزه آزاده کړے وه دا لفظ (کسب) دے ټولو ته شامل دے او دا عدم اغنا دَ مال او دَ کسب دا دَ ټولو کافرانو په باره کښ حکم دے هرچه عدم اغناء فقط دَ کسب ده نو هغه ذکر ده په سورة حجر ۸۴ او سورة زمر ۵۰ او سورة غافر ۸۲ سورة جاثیه ۱۰ کښ او عدم اغناء دَ مال او اولاد ذکر ده په سورة آل عمران ۱۰ او ۱۱۶ او سورة مجادله ۱۷ او سورة اللیل ۱۱ کښ۔

ذَاتَ لَهَبٍ ﴿۳﴾ وَّامْرَاَتُهٗ ؕ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ ﴿۴﴾

لمبو والا ته . او ښځه دَ دهٔ ، چه دا اوچتوونکې دَ خشاک ده .

سـ۳ دا تخويف اخروي دے سَيَصْلٰى سين دَپاره دَ استقبال قريب دے ځکه عذاب دَ آخرت نزدے دے يا دَپاره دَ تاکيد دے . نَارًا نکره دَپاره دَ تعظيم ده لوئے اور (چه دَ جهنم اور دے) . ذَاتَ لَهَبٍ لفظ دَ ذات دلالت کوی په مصاحبت پاندے يعنی شغلے دَ اور به هر وخت دَ اور سره وی نه به دا اور سړيږی او نه به مړ کيږی .
سـ۴ په دے کښ قباحت دَ حال دَ ښځے دَ ابولهب دے دَپاره دَ تکميل دَ شناعت دَ ابولهب يعنی خاوند او ښځه دواړه په خيانت کښ يو شان وُو نو عذاب کښ به هم يو شان وی . وَّامْرَاَتُهٗ دا عطف دے په ضمير مستتر په سيصلى کښ چه ضمير فاعل دے او په تعبير دَ امرءة کښ توهين دَ ابولهب مقصد دے گويا چه زوجه نه وه بلکه صرف ښځه وه . نوم دَ هغے مفسرينو ام جميل بنت حرب ليکلے دے او ابوحيان وئيلے دی چه په يو سترگه پاندے ړنده هم وه . حَمَّالَةَ الْحَطَبِ دا منصوب دے بنا په ذم باندے يعنی اخص بالذم حمالة الحطب يا بنا دے په حاليت باندے .
حَمَّالَةَ مبالغة ده دَ حمل نه او الحطب په حقيقت کښ خشاک او لرگو ته وئيلے کيږی . دلته مفسرينو ډير اقوال نقل کړے دی حاصل ئے دا دے چه معنیٰ حقيقی مراد ده يا معنیٰ مجازی . چه معنیٰ حقيقی مراد شی نو په هغے کښ دوه قولونه دی اول قول چه ابن زيد نه نقل دے چه دے ښځے به ازغی دار لرگی راوړل او دَ شپے به ئے دَ نبی صلی الله عليه وسلم او دَ صحابو په لارو کښ اچول دَپاره دَ دے چه دوی مسجد حرام ته نه راځی او که راځی چه تکليف ورته او رسيږی او دا هم په دشمنئ کښ خسيس عمل دے . دويم قول دا دے اگر چه مالداره وه ليکن دومره بخيله وه چه دَ غرونو نه به ئے لرگی او خشاک دَ کور دَپاره په خپل سر او سټ باندے راوړلو نو دا دَ دے نهايت بخل او خساست ته اشاره ده . او چه معنیٰ مجازی مراد شی نو په هغے کښ هم دوه اقوال دی اول قول دا دے چه دَ خلقو په ميلځ کښ عموماً او دَ نبی صلی الله عليه وسلم

فِيْ جِيْدِهَا حَبْلٌ مِّنْ مَّسَدٍ ﴿۵﴾

| په | ستو | د هغې کښې | رسئ | ده | د | پوستکي | د | کجورو . |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او صحابو په مینځ کښې خصوصًا چغلي به یې کوله ځکه چه د دوی په ماېین کښې فساد او تفرق پیدا شي او دا هم د ذیلي نوع عمل دے په حدیث صحیح کښې ثابت دي چه چغلخور به جنت ته نه داخلیږي. دویم قول دا دے چه حطب کنایه ده د ګناهونو نه یعني دے به ډیر قسمونه ګناهونه کول کفر او شرك چغلي او د نبي صلی الله علیه وسلم هجو (بدلے وئیل) به یې کوله او د محمد په ځائے یاندے به یې مُذَمَّمٌ وئیلو نو نبي صلی الله علیه وسلم اُوئیل چه الله تعالی زما د دوی د بدئے وئیلو نه بچ کړے یم دوی د مذمم بدی وائي او زه خو محمد (صلی الله علیه وسلم) یم .

ف دا هم د هغه ښځې ناکاره حال دے یا په دنیا کښې یا په آخرت کښې. هرچه په دُنیا کښې دے نو په دے کښې درے قولونه دي اول دا چه دا صورت د خشاك کیدلو راوړلو دے یعني خشاك به یې داسے راوړلو چه رسئ به یې د مزدورانو پشان خپلے غاړے ته اچولے وه او کیدلے به یې شانه راوړلے وُ. دویم قول دا دے هر کله چه یو ورځ د ازغو کیدلو راوړل نو یو وخت د دے مرئے ته رسئ د کیدلو ارمه شوه نو دا په هغې سره پانسي شوه او مړه شوه. دریم قول دا دے چه د هغې په غاړه یاندے د مرو او کنجکو امیل وُ لکه چه په دے وخت کښې اکثر بدې عنیانو او ملنګانو خپلو غاړو ته اچولے وي. او هرچه په آخرت کښې دے نو مسد کنایه ده د زنځیر د جهنم نه چه د دے سټ ته به پروت وي نو دا تخویف اخروي دے .

جِيْدِهَا غاړے د زنانه ته وئیلے شي او بعض اهل لغت ورسره وئیلے دي چه هغه غاړه چه خائسته وي.

سوال. عُنُقِهَا یې ولے نه وئیلو؟ جواب. دا په طریقه د تمسخر او تهکم سره دے یعني د هغې غاړه خائسته نه وه په طور د مسخرے سره ورته جید وئیلے دے، مَسَدٍ په لغت کښې هغه رسئ ده چه د پتو د کجورو نه کلکه او دلے شویوی شلیدلے یې کړان وي او په هغې سره مرئے هم پانسي کیدے شي (ختم شو تفسیر د سورة مسد په فضل د الله تعالی سره)

| سُوْرَةُ اِخْلَاص مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰیاتها ۴ رکوعها ۱ |
|---|---|---|

قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ﴿۱﴾ اَللّٰهُ الصَّمَدُ ﴿۲﴾ لَمْ يَلِدْ ۙ

ته اووایه هغه الله تعالیٰ یک یو دے ۔ الله تعالیٰ بے حاجته دے ۔ نه دے ولد والا دے

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة اخلاص او خطیب شربینی او مفسر الوسی دَ دے سورت دوویشت ۲۲ نومونه لیکلی دی،

۱ سورة التفرید، ۲ سورة التجرید، ۳ سورة التوحید، ۴ سورة الاخلاص ۵ سورة النجات، ۶ سورة الولایة، ۷ سورة النسبة، ۸ سورة المعرفة، ۹ سورة الجمال، ۱۰ سورة المقشقشة، ۱۱ سورة المعوذة، ۱۲ سورة الصمد، ۱۳ سورة الاساس، ۱۴ سورة المانعه، ۱۵ سورة المحتضر، ۱۶ سورة المغفرة ۱۷ سورة البراءة، ۱۸ سورة المذکرة، ۱۹ سورة النور، ۲۰ سورة الانسان، ۲۱ سورة الایمان ۲۲ سورة قل هوالله احد. او دَ هریو وجه تسمیه هم هغوی لیکلی ده.

ربط دَ دے سورت دَ ما قبل سره په څلورو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه مخکښ سورت کښ عذاب دنیوی او اخروی ذکر کړے شو نو په دے سورت کښ دَ هغے نه دَ بچ کیدلو دَ پاره سبب ذکر کوی چه توحید خالص دے. دویمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ لوئے انعام په مؤمنانو باندے ذکر کړے شو چه هغه اهلاک دَ لوئے دشمن وو او زائل کول دَ رکاوټ وو نو په دے سورت کښ دَ هغه انعام شکریه ذکر کوی چه هغه دعوت ورکول دی توحید خالص ته دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښ هلاکت دَ ابولهب او دَ هغه دَ ښځے ذکر شو نو په دے سورت کښ اشاره ده سبب دَ هلاکت ته چه انکار دے دَ توحید نه. څلورمه وجه دا ده چه په مخکښ ټولو سورتونو کښ بے شماره علوم او احکام الٰهیه ذکر شوی دی نو په دے سورت کښ

دَ هغه ټولو خلاصه او بنیاد ذکر کوی چه هغه توحید خالص دے نو اشاره ده چه دا دَ قرآن کریم دَ نزول لوئے مقصد دے لکه چه په سورة هود ۲ او سورة ابراهیم ۵۲ او نورو سورتونو کښ هم تیر شویدی.

**دعوی دَ سورت.** اثبات دَ توحید دَ ذات او دَ صفاتو دے سره دَ تنزیه دَ الله تعالیٰ دَ عیبونو او نقصانا نو نه.

**خلاصه دَ سورت.** په اول ایت کښ توحید دَ ذات او خالقیت دے او په دویم کښ توحید دَ صفاتِ ثبوتیه دے او په دریم او څلورم ایت کښ توحید دَ صفاتِ سلبیه دے. او دا کافی دے دَ پاره دَ معرفت دَ الله تعالیٰ دَ دے وجې نه دے ته سورة المعرفة و ئیلے شوے دے؛

**تفسیر ۱** په مسند احمد کښ حدیث دَ ابی بن کعب رضی الله عنه نه روایت دے چه مشرکانو دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس کړے وو چه مونږ ته دَ خپل رب نسب بیان کړه او بل روایت کښ دی چه دَ خپل رب صفات مونږ ته ذکر کړه نو دا سورت دَ هغوی په جواب کښ نازل شو. او دَ دے سورت فضائل ابن کثیر په ډیر تفصیل سره ذکر کړے دی.

**قُلْ** دا کلمه دلیل دے چه دَ دے سورت بیانول په نبی صلی الله علیه وسلم باندے فرض وو نو چا چه ایزده کړو نو په هغه باندے دَ دے دعوت کول فرض دی په سبب دَ حدیث صحیح چه بلّغوا عنّی ولو ایةً (او رسوئے زما نه اگرچه یو ایت وی) او په قل راوړلو کښ بله دا فائده ابن قیم ذکر کړے ده چه دا اخبار دَ الله تعالیٰ دے دَ خپل توحید نه یعنی الله تعالیٰ فرمائی چه زما توحید په دے طریقے سره بیان کړئ.

**هُوَ** اکثر مفسرینو ذکر کړے دی چه دا ضمیر شان دے دا مخکښ مرجع نه غواړی مرجع ئے روستو ذکر وی لیکن دَ لوئے والی دَ مابعد مضمون دَ پاره ذکر کیږی او بله فائده پکښ دا ده چه اول مبهم ذکر شی نو مخاطب دَ هغے دَ تفصیل په انتظار کښ شی نو روستو خبره نبهٔ په غور سره واوری. او بل قول دا دے چه هر کله دا سورت نازل شویدے په جواب دَ مشرکانو کښ لکه چه مخکښ ذکر کړے شوه نو ضمیر دَ هُوَ هغه ذات ته راجع دے چه (رپاتے په بل مخ)

دوی دَ هغه په باره کښې تپوس کړے وؤ او بیا په دے قول باندے هُوَ مبتدا دہ او اللہ خبرِ اول دے او اَحَدٌ دویم خبر دے۔ اللہؐ داعلَم دے دَ پاره دَ ذات دَ اللہ تعالیٰ او دَ دے نه سیوا نور نومونه دَ اللہ تعالیٰ چه ثابت دی په شرع کښې نو هغه صفتی نومونه دی اګرچه هغه هم خاص دی په اللہ تعالیٰ پورے لیکن دَ علم خصوصیت په ذات پورے ضروری او ډیر ښکاره وی او په مقام دَ تعریف دَ ذات کښې دَ عَلَم ذکر کول ضروری دی دَ دے وجے دلته ئے په دے لفظ باندے تصریح اوکړه۔ اَحَدٌ دَ دے لفظ استعمال په قرآن کریم کښې په دوه طریقو سره شویدے اوله طریقه استعمال دے په مقام دَ نفی کښې لکه په سورة الحاقه ۴۷ او سورة الجن ۱۸ او سورة احزاب ۳۲ کښې نو هلته نفی دَ استغراق دَ جنس مراد دہ یعنی نفی دَ یو دوه درے ترغیر نهایت پورے او نفی په مذکر او مؤنث او نفی په طریقه دَ جمع او تفریق سره، او دویمه طریقه استعمال دَ دے په اثبات کښې دے او هغه په درے وجو سره دے اوله وجه هغه چه پیوست وی دَ عشراتو سره لکه احد عشر او احد وعشرون۔ او دویمه وجه استعمال په طریقه دَ مضاف یا مضاف الیه لکه امّا احدکما فیسقی ربّه خمرا۔ او یوم الاحد یا بیا اضافة حکمیه وی لکه وان احد من المشرکین۔ او دریمه وجه استعمال دَ دے مطلق په طریقه دَ وصفیت سره دے او دا استعمال خاص دے په اللہ تعالیٰ پورے لکه په دے مقام کښې۔ او فرق په مینځ دَ احد او واحد کښې په ډیرو طریقو سره دے۔ اوله طریقه دا دہ چه په احد باندے عدد ابتدا ئی نه بنا کیږی په خلاف دَ واحد نه نو دا سے نشی وئیلے چه احد، اثنان، ثلثه بلکه دا سے وئیلے شی واحد، اثنان۔ او دویمه طریقه دا دہ چه احد په وخت دَ وصفیت مطلقه کښې په اللہ تعالیٰ پورے خاص دے په خلاف دَ لفظ دَ واحد سره نو دا سے نشی وئیلے کیدا ے چه رجلٌ احدٌ او دا سے وئیلے کیږی رجل واحد۔ دَدریمه طریقه دا دہ چه احد په مقام دَ نفی کښې دے او صریح دے په عموم کښې په خلاف دَ واحد نه چه هغه احتمال دَ عموم او خصوص دواړو لری۔ څلورمه طریقه دا دہ چه احدیت احتمال

دَ جزئیت او دَ عدد نه لری په خلاف دَ واحد نه او واحد هغه فرد دَپاره استعمالیږی چه په هغه کښ تعداد او جزئیت وی. پنځمه وجه خطّابی ذکر کړے ده چه احدیت دَپاره دَ تفرد دَ ذات دے او واحدیت دَپاره دَ تفرد دَ صفاتو دے. او دَ دے وجے نه الواحد هم په صفاتو دَ الله تعالیٰ کښ شته دے نو معلومه شوه چه لفظ دَ اَحَدٌ کښ کمالِ یووالے دے نو په لفظ دَ احد کښ اشاره ده نفی دَ شریک ته په ذات کښ او خالقیت کښ او ربوبیت کښ او الوهیت کښ او په صفاتو کښ او دا رنګ اشاره ده نفی دَ صفاتو دَ مخلوق ته دَ الله تعالیٰ نه دَ دے وجے نه وئیلے شوید ی چه روستو ایاتونه دَ اَحَدٌ دَپاره تفسیر دے.

فائده:- په دے ایت کښ اثبات دَ توحید دَ خالقیت دے او رد دے په ټولو اقسامو دَ دهریانو باندے په احسن ترتیب سره هغه دا دے چه بعض دَ فرقو ګمراهانو نه وائی چه دَ دے عالَم دَپاره سبب دَ ایجاد نیشته او دا ټول څیزونه په خپله پیدا شویدی او پیدا کیږی او دے ډلے ته په مخکنے فلسفه کښ اصحاب طفرة وئیلے کیږی نو په لفظ دَ هُوَ کښ دَ دے نظریئے تردید دے ځکه چه یو سبب دَ ایجاد دَ څیزونو او دَ کارونو په ټولو ذهنونو او زړونو کښ شته دے څوک ئے طوعًا منی او څوک ئے کرْهًا منی لکه په سورة العمران ۸۳ او سورة رعد ۱۵ کښ دے ته اشاره ده بلکه دهری او مشرک هم په وخت دَ مجبوری کښ هغه ذات یادوی نو په لفظ دَ هُوَ سره دغه ذات ته اشاره ده چه هغه وجود ورکوونکے دے ټولو موجوداتو ته. او په کلمه دَ اللّٰهُ کښ تردید دے دَ هغه چا چه مؤجد منی لیکن هغوی سبب دَ ایجاد او دَ خلق ماده ګڼړی یا طبیعت یا هیولیٰ ګڼړی یا دهر ته یا حرکت دَ فلک ته نسبت کوی. یعنی هغه ذات چه هغه خالق او موجد دے نو دَ هغه نوم الله تعالیٰ دے. او په لفظ دَ اَحَدٌ کښ رد دے په هغه ډلو او نظریو باندے چه دَ الله تعالیٰ سره په خلق او ایجاد کښ بل څوک شریک ګڼړی لکه چه بعض حکماؤ (په حقیقت کښ بے عقله دی) وئیلی دی چه الله تعالیٰ خو صرف عقلِ اول پیدا کړے دے ځکه (یا ئے په بل مخ)

چه هغه یو دے او دَ یو نه یو کار صادر یدلے شی او دوی وائی چه عقلِ اول دویم عقل او فلکِ اول پیدا کړو ترد ے پورے چه عقل فعّال ټول څیزونه پیدا کوونکے دے او دا اوهام باطله کفریه دی. او دَ مجوسو عقیده ده چه دَ خیر او دَ نُور پیدا کوونکے یزدان (الله) دے او دَ شر او ظلماتو پیدا کوونکے آهرمن (شیطان) دے او دَ بعضِ معتزلو نظریه ده چه الله تعالیٰ خو خالق دَ خپلو کارونو دے او خالق دے دَ بنده دَ هغهٔ کارونو چه دَ بنده په اختیار کښ نه وی او بنده خو خالق دے دَ خپلو اختیاری کارونو نو دَ دے ټولو عقیده و تردید دے په کلمه دَ اَحَدٌ سره.

۲ـ په دے کښ اثبات دَ توحید دَ صفاتِ ثبوتیه دَ الله تعالیٰ دے. او تردید دے دَ هغه چا چه عقیده لری چه الله تعالیٰ خو خالق دَ هر څیز دے لیکن ټول حاجتونه نشی پوره کولے یا په دے صفت دَ خَلق کښ معاون او ملګری ته محتاج دے نو دَ دے وهم ازاله ئے اوکړه په دے جمله سره چه اَللّٰهُ الصَّمَدُ تصریح ئے په لفظ الله سره کړے ده دَ پاره دَ تاکید دَ حصر او الصمد ئے معرفه راوړے دے دَ پاره دَ فائده کولو دَ حصر. او عطف ئے په ما قبل باندے نه دے کړے ځکه چه دا جمله من وجه نتیجه ده دَ پاره دَ ما قبل یعنی احدیت دَ الله تعالیٰ مستلزم دے صمدیت دَ هغهٔ لره او من وجه علت دے دَ پاره دَ ما قبل. او په معنیٰ دَ الصمد کښ دَ مفسرینو ډیر اقوال دی اول ابن الانباریؒ وئیلے دی چه خلاف نیشته چه صمد هغه سیّد ته وئیلے شی چه دَ هغه نه اوچت بل څوک نه وی او هغه ته خلق په خپلو حاجتونو او کارونو کښ قصد کوی. دویم قول دَ زجاج دے چه صمد هغه دے چه هغه ته دَ سردارئ انتها وی او دَ هر څیز قصد هغه ته کیدلے شی. دریم قول عکرمه دَ ابن عباسؓ نه نقل کړے دے چه صمد هغه دے چه مخلوق هغه ته په خپلو حاجتونو او سوالونو کښ قصد کوی. څلورم قول ابن ابی طلحة دَ ابن عباسؓ نه روایت کوی چه صمد هغه سید دے چه په سردارئ کښ کامل وی او هغه شریف دے چه په

شرافت کښې کامل وی او هغه عظیم دے چه په عظمت کښې کامل وی او هغه حلیم دے چه په حلم کښې کامل وی او هغه علیم دے چه په علم کښې کامل وی او هغه حکیم دے چه په حکمت کښې کامل وی۔
پنځم قول دَ ابوهریرهؓ نه روایت دَے چه هغه مستغنی دے هر چا نه او هغه ته هر څیز محتاج دے۔
شپږم قول دَ ابن جبیر نه نقل دے چه په ټولو صفتونو او کارونو کښې کامل وی۔ اُووم دَ ربیع نه نقل دے چه هغه ته هیڅ آفات نه عارض کیږی۔ اَتم دَ مقاتل نه نقل دے چه هیڅ عیب پکښې نه وی۔ نَهم دَ قتادہ نه روایت دے چه باقی وی هیڅ فناوربانده نه راځی۔ لسم دَ مرّۃ همدانی نه نقل دے چه نه زړیږی او نه فنا کیږی۔ یوولسم دَ حسن نه نقل دے چه هغه الحی القیوم دے چه زوال ئے نیشته۔ دولسم دَ عکرمه نه نقل دے چه دَ هغه نه هیڅ څیز نه اوځی او نه خوراک ته محتاج وی۔ دیارلسم دَ مجاهد نه نقل دے چه صمد هغه دے چه جوف ئے نه وی۔ څوارلسم دَ مجاهد نه نقل دے چه خوراک او څښاک نه کوی۔ پنځلسم دَ کعب او ربیع نه روایت دے چه صمد لم یلد او لم یولد ته وئیلے شی یعنی مابعد ئے تفسیر دے ابن کثیر دَ طبرانی نه نقل کړے دے چه دا اقوال ټول صحیح دی او دَ رب العالمین صفتونه دی او بیهقی هم داسے وئیلے دی۔ دا اقوال بعض دَ بعضو سره په مقصد کښې نزدے دی او دا ټول اقوال دوه صفتونو ته راجع دی یو دا چه غنی مطلق دے یعنی بے حاجته دے او دویم دا چه هر څیز په خپلو حاجتونو کښې هغه ته قصد کوی او قصد عام دے که قصد طبعی وی او که اختیاری وی۔
فائده:۔ دا صفت ( په سبب دَ دغه معانیو چه مخکښې ذکر شول ) ټولو صفاتِ ثبوتیه بلکه صفات سلبیه دَ الله تعالیٰ ته شامل دے ځکه چه هر کله چه دَ ټولو حاجتونو پوره کوونکے دے نو معلومه شوه چه په هر څه بانده قادر مطلق دے او په هر څه بانده عالم دے ځکه چه په غیر دَ قدرت او علم نه حاجت نشی پوره کولے نو ټولو صفتونو دَ تصرف او قدرت او دَ علم ته اشاره او شوه ( رپائے په بل مخ )

وَلَمْ يُوْلَدْ ﴿٣﴾ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ ﴿٤﴾

او نه دے پیدا کړے شوے . او نیشته دهٔ لره همصفت هیڅوک

او هر کله چه هغه غنی مطلق (بے حاجته) دے نو حاجت خو عیب دے نو معلومه شوه چه دَ ټولو عیبونو نه پاک دے نو صفاتِ سلبیه ته اشاره اوشوه نو قرآن کریم کښ چه ترد ے سورت پورے کوم اسماء او صفات دَ الله تعالیٰ ثبوتیه یا سلبیه ذکر شویدی نو لفظ الصَّمَدُ دَ هغه ټولو مرجع او خلاصه ده .

۳ـ په دے کښ توحید دَ صفاتِ سلبیه ذکر کوی یعنی دَ ټولو عیبونو نه پاک دے ځکه چه هغه عیبونه چه دَ الوهیت سره منافی دی یو حاجت دویم تبعیض او تجزی ده دریم تشبیه او تمثیل دے نو په دے راتلونکو جملو کښ دَ دے ټولو نفی ده . او په دے ایت کښ تردید دے دَ هغه مشرکانو چه الله تعالیٰ لره دَ لونړو یا دَ ځامنو عقیده لری که کتابیان دی او که غیر کتابیان دی او رد دے په هغه چا چه وائی چه دا صحیح ده چه الله تعالیٰ ټول حاجتونه پوره کوونکے دے او بے حاجته دے لیکن دَ هغه نائبان شته او دَ هغه دَ صفتونو مظهر شته دے هغوی ته ئے دَ بعض کارونو حاجت روائی سپارلے ده نو مونږ ځکه هغوی ته خپل خپل بعض حاجتونه پیش کوؤ نو دَ دغسے خلقو په جواب کښ او ئیلے شو چه لَمْ يَلِدْ . (سوال) دیرا یا تونوکښ ئے لم یتخذ ولدا فرما ئیلے دی او دلته ئے لم یلد و ئیلے دے ؟ (جواب) دا دَ چه په لم یتخذ کښ نفی دَ ولد حکمی ظاهرًا ده او لم یلد عام دے نفی دَ ولد حقیقی او ولد حکمی دواړو ته شامل دے . او په یکښ نفی دَ ولد حقیقی ده لکه دا چه عقیده دَ عوامو یهودیانو او نصارٰی او بعض مشرکانو ده او وجه دَ نفی دا ده چه ولادت دَ بچی مستلزم دے انفصال دَ ما دے دَ هغه دَ والد نه او دا مستلزم دے ترکیب لره په والد کښ او ترکیب مستلزم دے اجزاؤ لره نو مستلزم شو احتیاج لره او احتیاج منافی دے دَ احدیت او صمدیت (الوهیة) سره او بله وجه دا ده چه ولد خو طلب کیدے شی دَ پاره دَ اعانت او دَ پاره دَ نیابت دَ پسلا او الله تعالیٰ خو همیشه

باقي دے محتاج نه دے شیخ څیز ته .او دا رنګ په دے کښې نفي دَ ولد حکمي ده لکه چه دا عقیده چه بعضو دَ یهودیانو او نصاراؤ او دَ منافقانو دَ دے امت ده لکه چه په تفسیر دَ سورة توبه کښې تفصیل ذکرشویدے۔ولدحکمي نه مراد ذکر دَ ملزوم مراد ترینه لازم یعني نائب دے یعني مشرکان دا عقیده لري چه الله تعالی بعض تصرفات دَ الوهیت (چه حاجت روائي مشکل کشائي ده) بعض مقربین بندګانو ته اوسپارلي او هغوي سره په دغه تصرفاتو کښې نائبان اوګرځوي اومشرکان خلق هغوي ته محبوب مطلق اوضامن او نازولي وائي لکه چه امام ولی الله دهلوي په حجة الله البالغه کتاب کښې دا تفصیل ذکر کړے دے. دا رنګ ولد حکمي دا دے چه دَ مقتضی دَ اثار الاباء تظهر في الابناء په وجه دَ پلار بعض صفتونه په اولاد کښې موجود وي نو دا رنګ یهود عقیده لري چه عزیر علیه السلام دَ الله تعالی دَ تولو علمونو مظهر دے دَ دے وجه نه سل کاله روستو ئے تورات په یاد ویاندے لوستلو او دَ نصاراؤ عقیده دا ده چه عیسی علیه السلام دَ الله تعالی دَ صفاتو دَ تصرف مظهر دے لکه چه امور خارقه للعادة دَ هغه په دے یاندے دلالت کوي نو دوي مظهر دَ صفاتو دَ الله تعالی دي او دا رنګ منافقان دَ دے امت هم عقیده لري چه فلانے ولي الله کښې الله تعالی خپل صفت دَ فریاد رسئ او دَ مشکل کشائي ښکاره کړے دے یا نبي صلی الله علیه وسلم ئے دَ علم غیب مظهر ګرځولے دے په طریقه دَ عطا سره نو دے ته هم عقیده دَ ابنیت او ولدیت وئیلے شي.

سوال: لم یلد ئے ولے مخکښې راوړو دَ لم یولد نه او حال دا چه مولودیت مخکښې وي دَ ولدیت نه؟

اول جواب دا دے چه په ولدیت دَ الله تعالی یاندے دَ یهودو او نصارٰی او بعض مشرکین عقیده وه نو دَ هغوي تردید اول پکار وؤ او دَ مولودیت دَ هغه څوک قائل نه دي.

دویم جواب دا دے چه ولدیت کښې معنٰی دَ علتیت ده او مولودیت کښې معنٰی دَ معلولیت ده او علت خو بالذات مقدم وي (رپاتے په بل مخ)

په معلول باندے نو وصف دَ علتیت هم مقدم کړے شو په وصف دَ معلولیت باندے.
سوال:- لم یلد اطلاق خو په شنړ باندے هم کیږي ځکه دَ هغه هم اولاد نه وي؟
جواب:- مراد دَ نفي دَ ولد نه صرف نفي دَ وجود نه ده بلکه معنیٰ دا ده چه نه دے دَ شان دَ هغه نه ولدیت یعني نفي دَ امکان مراد ده. وَلَمْ يُوْلَدْ
سوال:- هیڅوک دَ الله تعالیٰ دَ مولودیت قائل نیشته زمونږ په علم کښ نو دَ دے نفي کولو څه فائده ده؟
اول جواب کیدیشي چه په عالَم کښ داسے عقیده دَ چا وي چه الله تعالیٰ مولود دے دَ وجے دَ قیاس کولو نه په خپلو معبودانو باندے چه هغه مولود یا مجعول او مصنوع دي (اګرچه زمونږ په علم کښ نه وي) نو دَ دے قیاس تردید کول ضروري دي.
دویم جواب په باب دَ اثبات دَ توحید کښ دَ ټولو احتمالاتو شرکیو نفي ضروري ده برابره خبره ده که څوک دَ هغے قائل وي او که نه وي او احتمالات درے دي نفي دَ ادنیٰ شریک چه ولد دے نفي دَ اعلیٰ شریک چه والد دے نفي دَ برابر چه کفو دے نو دا ټول یَے نفي کړل.
دریم جواب دا په منزله دَ دلیل دے دَ پاره دَ لم یلد یعني ولدیت منتفي دے ځکه چه مولودیت منتفي دے (لیکن دا جواب په ظاهر کښ ضعیف دے).
څلورم جواب لکه ځنګه چه ولد په دوه قسمه سره نفي شو حقیقي او حکمي نو دارنګ والد هم دوه قسمه دے حقیقي هغه منتفي دے او حکمي هغه هم منتفي دے مراد دَ والد حکمي نه هغه څوک دے چه هغه زور اور وي په الله تعالیٰ باندے او الله تعالیٰ هغه ته محتاج وي لکه چه دَ مشرکانو عقیده دَ شفاعت قهریه (بلا اذن) دے عقیدے لره مستلزم ده او په دے معنیٰ سره نفي دَ ولي یَے په سورة اسراء ۱۱۱ کښ کړے ده. بلکه دَ بعض جاهلانو بریلیانو قول دے چه شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله ته دستګیر دَ دے وجے نه وئیلے شي چه

هغه دَ الله تعالیٰ سره امداد کړے دے دَ خوئیدلو نه ئے بچ کړیدے (العیاذ بالله تعالیٰ).
لَّکَ دا ئے معطوف کړے دے په ماقبل باندے ځکه دا دوه جملے مشترکے دی په دے لحاظ سره چه تفسیر دے دَ صمد دَ پاره.
کُفُوًا دا لفظ عام دے مشابه، مساوی، مماثل، مجانس، معادل، نظیر دا دَ ټولو په معنیٰ باندے راځی دَ دے وجه نه دا لفظ ئے ذکر کړو دَ پاره دَ دے چه دَ دے ټولو نفی اوکړی شی یعنی په جنس نوع او فصل او په هیڅ صفت او صورة و شکل کښی کفاءة نیشته.
اَحَدٌ نکره ئے په مقام دَ نفی کښی راوړه دَ پاره دَ تعمیم. او اهل لغتو وئیلی دی چه احد لفظ په ذوی الروح او ذوی العقولو کښی استعمالیږی یعنی هیڅ نبی او ولی او ملك او جنی او بشر دَ الله تعالیٰ دَ پاره کفو نشی کیدے نو بُتان او غیر ذوی الروح خو په اولے طریقے سره کفو نشی کیدے.
سوال:- لَّهٗ ظرف متعلق دے په کُفُوًا پورے او هغه خو خبر دے چه دَ هغے تقدیم په اسم باندے جائز دے لیکن دَ هغے متعلق تقدیم خو سیبویه په الکتاب کښی منع وئیلی دے؟
اول جواب دلته مقصد نفی دَ کفاءة ده دَ ذات دَ الله تعالیٰ نه نو لفظ دَ لَّهٗ ئے دَ اهمیت دَ وجے نه مخکښی کړے دے یعنی دا تقدیم دَ دے فائدے دَ وجه نه جائز دے.
دویم جواب لفظ دَ لَّهٗ سره تقدیر دَ سوال دے یعنی هرکله چه اووئیلے شو چه کفو نیشته نو تپوس اوکړے شو چه دَ چا کفو نیشته نو جواب اوشو چه لَّهٗ.
ختم شو تفسیر دَ سورة اخلاص په فضل دَ الله تعالیٰ سره

سُوْرَةُ الْفَلَقِ مَكِّيَّةٌ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰيَاتُهَا ۵ رُكُوْعُهَا ۱

قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ① مِنْ شَرِّ

تۀ اوایه پناه غواړم په رب دَ بِشکاره کولو سحر، دَ شر دَ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**سورة الفلق** دے ته سره دَ روستو سورت نه المعوذتين او المقشقشتين هم وئيلے شي۔

**ربط دَ دے سورت** دَ ما قبل سره په دوه وجو سره دے اوله وجه دا ده چه هر کله قرآن کریم اخر ته رسيدو نجے دے او په دے کښې پوره هدايت دے خصوصًا توحيد دے او دَ هغے دشمنان ډير دي چه دَ توحيد او قرآن نشر و اشاعت نه غواړي او دا رنګ دَ دے دَ پاره رکاوټونه دي چه هغه مانع ګرځي دَ قرآن نه نو په دے دواړه سورتونو کښې دَ هغے دَ حفاظت دَ پاره طريقه ذکر کړے ده۔ دويمه وجه دا ده چه په سورة اخلاص کښې شان دَ الله تعالیٰ ذکر شو نو په دے سورتونو کښې اشاره کوي چه دغه ذات الٰهي دَ هر شر او تکليف نه دَ پناه ورکولو دَ پاره کافي دے بل هيڅوک دَ هر مصيبت نه پناه نشي ورکولے۔

**دعوٰی دَ دے سورت۔** امر دے په تعوذ سره دَ شرورونه عمومًا او خصوصًا۔

**خلاصه دَ دے سورت** دا ده چه اول امر دے په تعوذ سره سره دَ مستعاذ به ذکر کولو نه په ۱ کښې بيا ذکر دَ مستعاذ منه دے په طريقه دَ عموم سره په ۲ کښې بيا ذکر دَ درے خاص اقسامو دَ شر دے په درے اياتونو کښې۔

**تفسير ۱** قُلْ امر دے دَ پاره دَ انشاء دَ استعاذه کولو په الله تعالیٰ سره او مقصود په دے کښې اخبار دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه نه دے لکه چه اخبار مقصود وو په قل هو الله احد کښې۔ او په لفظ قُلْ کښې

اول خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او امت خوتا بع دے نو
اشاره شوه چه نبی صلی الله علیه وسلم هم په حفاظت او تعوذ کښې
الله تعالیٰ ته محتاج دے . أَعُوْذُ دا لفظ صریح دے په استعاذه کښې
دَ لفظ دَ استعین نه ځکه چه په استعین کښې اخبار دے په طلب کولو سره
چه سین دَ باب استفعال په هغې باندے دلالت کوی او په لفظ دَ اعوذ
کښې خو عمل کول دی په امر دَ استعاذے باندے .
اَعوذ او عیاذ په لغت کښې یل چا ته التجاء کول دی دَ پاره دَ ځان بچ کولو.
او ابن قیم وئیلے دی (په بدائع التفسیر کښې) چه معنیٰ دَ عوذ تختیدل دَ
هغه څیز نه چه ته دَ هغې نه ویره کوے هغه چا ته چه تا لره بچ کړی
او بیا ئې وئیلے دی چه په دے کښې معنیٰ دَ ستر او دَ مجاورة هم شته
دے او دا مستلزم دے معنیٰ دَ حفاظت لره او چه په مستعین کښې هم دا
صفتونه راجمع شی . بِرَبِّ الْفَلَقِ په را وړلو دَ لفظ دَ رب کښې اشاره ده
چه تعوذ او حفاظت کول هم تربیت دے نو دَ دے تعلق دَ صفت دَ
رب سره دے . اَلْفَلَقِ په اصل کښې سیرے کول شلول او راویستل
او ښکاره کولو ته وئیلے کیږی لکه چینے دَ غرونو نه راویستل او بارانونه
دَ وریځو نه او بوټی دَ زمکے نه او بچی دَ ارحامو دَ مائینو نه او رڼا دَ صبا
دَ تیارو دَ شپے نه او تیغونه دَ دانو او دَ هډوکو نه په دے معنیٰ سره فلق
ټولو موجوداتو ته شامل دے دَ دے وجے نه ابن جریر دَ ابن عباس
رضی الله عنهما نه روایت راوړے دے چه فلق خَلْق ته وئیلے کیږی
او قرآن کریم کښې ئې په دوه څیزونو باندے اطلاق کړے شوے دے
یو په تیغونو چه دَ دانو او هډوکو نه را او باسی لکه په سورة انعام ۹۵
کښې او دویم په رڼا دَ صبا چه دَ تیارو دَ شپے نه را او باسی سورة انعام ۹۶
او دَ دے نه علاوه مفسرینو نورے معانے لیکلے دی (کوهے دے په
جهنم کښې . جیل دے په هغې کښې . وادی ده په هغې کښې) لیکن آلوسی
وئیلے دی چه دا روایات ضعیف دی اطمینان ورباندے نه حاصلیږی .
بیا فَلَق په معنیٰ مصدری سره (راویستل ، پیدا کول) یا مصدر بمعنیٰ
للمفعول دے (راویستلے شوے پیدا کړے شوے) (باقی په بل مخ)

نو معنیٰ دَ رب الفلق دادہ رب دَ راویستلو او ښکارہ کولو دَ څیزونو او رب دَ رڼا دَ صبا او رب دَ تیغونو او بوټو او دَ ونو راټوکولو۔
سوال: دَ فلق په ځائے خَلَق یا الصبح یا النبات وَلے نه وئیل ؟
جواب اول: مقصد په دے کښ تعمیم دے او هغه په لفظ الصبح والنبات سره نه حاصلیدلو دویم داچه دَ څیزونو ښکارہ کول (فلق) دوه قسمونه دی یو ښکارہ کول ظاهری دے هغه مخکښ ذکر شول دویم ښکارہ کول معنوی دی نو اشارہ ده قرآن نازلولو ته یعنی الله تعالیٰ قرآن نازل کړے دے او په هغے سره ئے په عالم کښ رڼا پیدا کړله او دَ دینِ توحید بوټی او باغونه ئے پیدا کړل او دَ دے ځنے ته ډیر شرور حائل کیږی نو دَ دے دَ حفاظت دَپارہ په الله تعالیٰ سره تعوذ ضروری دے۔
فائده:- تعوذ او استعاذه کښ څلور څیزونه ضروری وی اول مستعید هغه ئے ذکر کړو په قل او په صیغه دَ متکلم سره یعنی نبی صلی الله علیه وسلم مستعید دے نو ټول امتیان ئے مستعید دی۔ دویم مستعاذ به هغه ئے ذکر کړو په برب الفلق سره۔ دریم مستعاذ منه هغه ئے ذکر کړے دی په روستو ایاتونو کښ۔ څلورم مستعاذله او هغه حذف دے چه توحید دے او قرآن دے ربط دَ دے سورت دَ سورة اخلاص سره په هغے باندے دلالت کوی لکه چه نیشاپوری هغے ته اشارہ کړے ده۔ (تحقیق) هر کله چه معلومه شوه چه مستعاذ به الله تعالیٰ دے نو دَ دے سره متعلق ده مسئله دَ رقیاتو او تعویذونو دَ هغے په بارہ کښ مختصر ذکر کیدے شی۔ اول بحث په بارہ دَ دمونه کښ دے چه هغے ته رُقیٰ وئیلے کیږی۔
دَمونه دوه قسمه دی اول هغه چه په کلماتِ قرآنیه او نور الفاظ شرعیه سره وی نو هغه په نیز دَ اهلِ سنت والجماعة جائز دی او په دیکښ ډیر احادیث صحیحه وارد دی دم په هغه چاچه دَ نظره شوے وی، دم په هغه چاچه لړم چیچلے وی، دم په هغه چاچه مار چیچلے وی، دم کول دَ نکئ او دَ زخم، دم کول دَ درد مندانه اندام، دم کول دَ هر مرض، په دے بارہ کښ ابن قیم رحمة الله په زاد المعاد کښ دَ صفحه ۱۶۲ ج۳ نه

تر ع ۱۸۸ پورے احادیث راجمع کړے دی او په هغے کښې قرانی ایاتو نه او نور الفاظ شرعیه هم شته. دویم قسم د مونه هغه دی چه په کښې کلمات شرکیه وی یا عجمی الفاظ وی یا مهمل الفاظ نو هغه د مونه منع دی لکه چه ملا علی قاری په مرقات شرح مشکوٰة ص کښې وئیلی دی او دغه مراد دی په هغه حدیث کښې چه انّ الرّقٰی والتمائم والتولة شِرْکٌ یعنی مراد غیر شرعی د مونه کول دی. او نیشاپوری هم وئیلی دی چه مراد ددے نه هغه دمونه دی چه معنٰی ئے معلومه نه وی.

سوال:- په حدیث دَ مسلم کښې راغلی دی چه رخّص النبی صلی الله علیه وسلّم فی الرقیة مِنَ الحُمَة وَالعَیْنِ وَالنَّمْلَةِ راجازت ورکړے دے رسول الله علیه وسلّم په دم اچولو کښې دَ لَشے او دَ نظر او دَ میګتون مرض نه) او بل روایت کښې لَا رُقْیَةَ اِلَّا اه راغلی دے نو معلومه شوه چه دمونه په دے درے خیزونو پورے خاص دی؟

جواب دادے! هرکله چه دَ نورو مرضونو په باره کښې دَ دم کولو صحیح احادیث ثابت دی نو علماؤ دَ دے حدیث تاویل کړے دے چه کامل او ضروری دم دَ دے درے خیزونو دے. دویم بحث دَ کتابت دے او هغه په دوه قسمه دے یو قسم لیکل دی دَ پاره دَ سمَلو په دے کښې شرط دادے چه کلمات دَ قرآن یا نور کلمات شرعیه وی نو بعض اهلِ علمو دیته جائز وئیلی دی کنز العمال ص ۶/۱۰ کښې حدیث دَ ابن عباسؓ په روایت دَ ابن سنی سره ذکر دے او دا روایت ابن قیم په زاد المعاد ص ۳۵۷ کښې هم نقل کړے دے دَ اثبات دَ جواز دَ کتابت دَ پاره او دا رنګ قرطبی په تفسیر ص ۲۸/۱ کښې عمل دَ سلفو ذکر کړے دے او په ص ۳۱/۱ کښې په روایت دَ مجاهد او دَ ابوجعفر سره جواز نقل کړے دے او آلوسی په تفسیر روح المعانی ص ۱۴۵/۱۵ کښې دَ بعض علماؤ نه جواز نقل کړے دے او دَ حسن نخعی او مجاهد نه ئے منع نقل کړے. نو حاصل دادے چه عمل دَ سلفو دَ دے جواز دَ پاره دلیل کیدے شی لیکن سره دَ اختلاف نه او دَ نبی صلی الله علیه وسلّم نه په دے باره کښې هیڅ نقل ثابت نه دے. دویم قسم لیکل دی دَ پاره دَ اویزان (پاتے په بل مخ)

کولوځاړے ته یا منتوته په دے باره کښې هم تفصیل دا دے چه په هغې (تعویذ) کښې اسماء دَ غیر الله لیکلے وی یا کلمات شرکیه یا عجمیه او مهمله او هندسے نو دا بالاتفاق حرام دی او چا چه دَ دے جواز قول کړے دے هغوی سره هیڅ دلیل نیشته او دَ هغوی قول او عمل ته هم اعتبار نیشته او هغه دَ دے عام حدیث دَ لاندے داخل دی ان الرقی والتمائم والتولة شرك (احمد او ابوداؤد روایت کړے دے) او دا حدیث چه مَنْ تَعَلَّقَ شَيْئًا وُكِّلَ إِلَيْهِ (احمد او ترمذی روایت کړے دے) او هر کله چه ایاتِ قرانیه دی یا نور کلمات شرعیه نو په هغې کښې شیخ محمد بن عبد الوهاب په کتاب التوحید کښې اختلاف دَ سلفو ذکر کړے دے چه بعضو په دے کښې رخصت ورکړے دے او بعضو رخصت نه دے ورکړے او عبد الله ابن مسعود هم منع کړے ده او چا چه اجازت ورکړے دے دَ هغوی مشهور دلیل حدیث دَ عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده دے چه ابوداؤد او ترمذی روایت کړے دے تنقیح الرواة شرح مشکوٰة ص ۱۰۴/۲ کښې وئیلے دی چه ترمذی دے حدیث ته حسن وئیلے دے او حاکم په مستدرك کښې ورته صحیح الاسناد وئیلے دے او دَ حدیث په شرح کښې صاحب دَ تنقیح لیکلے دی چه دا حدیث دلالت کوی په جواز دَ اویزانولو دَ تمائمو مشروعو مگر دا فعل دَ صحابی دے.

او نور روایات ئے په کنز العمال ص ۶۹/۴ ص ۸۲/۴ ص ۱۰۶/۱ کښې راوړے دی او ابن قیم هم په زاد المعاد کښې ډیر روایات ذکر کړے دی چه په هغې کښې دَ لیکلو ذکر شته لیکن دَ تعلیق ذکر پکښې نیشته او دا رنګ په هغې کښې حدیث مرفوع نیشته. لیکن اصح دا ده چه دا هم مکروهه دی صاحب دَ قرة عیون الموحدین په ص ۸۲ کښې لیکلی دی چه دَ دے دَ نهی دَ پاره درے وجے دی اوله دا چه احادیث دَ نهی عام او صحیح مرفوع دی دویمه دا چه خلق دَ دے دَ جواز دَ وجے نه بیا غیر جائز تعویذونه هم اویزانوی دریمه وجه دا ده چه په دے سره دَ قران کریم توهین راځی چه سړے دَ دغے تعویذ بیت الخلاء ته ور داخلیږی او په حال

مَا خَلَقَ ﴿۲﴾ وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ ﴿۳﴾

هغه څیز نه چه پیدا کړی دی هغه او دَ شر دَ تیږے والا نه هر کله چه تیرے را اوغوړی.

دَ جنابت کښ هم ساتی. هاں دے ته چه څوک شرک وائی مطلقاً او دَ اول قسم او دویم قسم فرق نه کوی نو دا هم دَ حد نه تجاوز کول دی چه دا حرام کار دے.

۲ په دے کښ ذکر دَ عام مستعاذ منه دے او شر په اصل کښ عاقبت سئیه دے یا هر هغه څیز چه عاقبت دَ هغے نا کاره وی نو دلته هم دَ شر نه مراد هر هغه څیز دے چه قران والا لره او داعی دَ توحید لره دَ هغه دَ مقصد نه اړوی.

مَا خَلَقَ مَا موصوله دے نو مراد دَ دے نه مخلوق دے نو شر منسوب دے ذات دَ مخلوق ته او منسوب نه دے خَلَق دَ الله تعالیٰ ته چه فعل دَ هغه دے ځکه چه دَ الله تعالیٰ صفتونه او فعلونه ټول دَ خیر دی په هغے کښ شر نیشته نو دا شر دَ مخلوق امرِ نسبی اضافی دے یعنی خیر دے په دے وجه چه فعل دَ الله تعالیٰ دے او هغه حکیم دے دَ هغه په هر فعل کښ حکمت وی او شر دے په دے وجه سره چه مخلوق ته منسوب دے او مراد دَ مَا خَلَقَ نه عام دے که نفوس او ذوات وی، اوصاف وی او که اخلاق وی، اعمال وی او که احوال وی. او دَ هغه څیزونو ذکر په دُعاګانو دَ استعاذه کښ په کثرت سره موجود دے بعضے دَ هغے نه تفصیلاً ذکر دا دے. جهد البلاء[۱] درک الشقاء[۲]، سوء القضاء[۳]، شماتة الاعداء[۴] او هم[۵]، حزن[۶]، عجز[۷]، کسل[۸]، جبن[۹]، بخل[۱۰]، ضلع الدین[۱۱]، غلبة الرجال[۱۲] او هرم[۱۳]، مغرم[۱۴]، مأثم[۱۵]، فتنة الغنیٰ[۱۶]، فتنة الفقر[۱۷]، فتنة المسیح الدجال[۱۸] او علم لا ینفع[۱۹]، قلب لا یخشع[۲۰]، نفس لا تشبع[۲۱]، دُعا لا یستجاب لها[۲۲]، او زوال نعمت[۲۳]، تحول عافیت[۲۴]، فجاءة نقمت[۲۵]، جمیع سخط[۲۶] دَ الله تعالیٰ او شر دَ هغه عمل[۲۷] چه کړے دے او هغه چه[۲۸] نه ئے دے کړے او فقر[۲۹]، قلة[۳۰]، ذلة[۳۱]، ظالم کیدل[۳۲]، مظلوم کیدل[۳۳] او شقاق[۳۴]، نفاق[۳۵]، سوء اخلاق[۳۶]، جوع[۳۷]، خیانت[۳۸]، برص[۳۹] او جذام[۴۰]، جنون[۴۱]، ناکاره مرضونه[۴۲] او هدم[۴۳]، تردی[۴۴]، غرق[۴۵]، حرق[۴۶]، (پاتے په بل مخ)

مرګ[۴۷] دَ لړغ (دَ لړم یا مار) او شر دَ نفس[۴۸] او دَ بد[۴۹] نظر او اسلا[۵۰] او تور مار[۵۱] او زهریلی ځناور[۵۲]۔ دا صاحب دَ مشکوٰة المصابیح په مختلف احادیثو کښې په باب دَ استعاذه کښې ذکر کړے دی او دا ټول هغه څیزونه دی چه داعی دَ قرآن او دَ توحید ته نقصان رسوی او هغه لره دَ خپل صحیح مقصد ته اړوی۔ نو دَ دے نه استعاذه ضروری ده۔

۳۔ دا مستعاذ منه خاص دے او دا بشکاره ضد دے دَ فلق ځکه چه فلق کښې معنیٰ دَ ظهور ده او په غسق کښې معنیٰ دَ ظلمت او دَ پټ والی ده او په غَاسِقٍ کښې ډیر اقوال دی لیکن مشهور دا دے چه غسق ډک والی ته وائی نو غاسق شپے ته وئیلے کیږی چه دَ تیَرے نه ډکه شی یا غسق یخ والی ته وائی نو شپه یخه ده په نسبت دَ ورځے او کوم حدیث کښې چه غاسق سپوګمئ ته وئیلے شوے دے نو دا دَ وجے دَ ملابست دَ سپوګمئ نه دَ شپے سره۔

إِذَا وَقَبَ وقوب داخلیدل په یو څیز کښې او غائب کیدل دی نو وقوب دَ شپے دا دے چه تیاره دَ دے په هر څیز کښې داخله شی نو مراد دے نه مینځ دَ شپے دے یا اول ماښام دے۔ او وجه دَ تعوذ دَ شر دَ تیَرے نه دا ده چه په شپه کښې زهریلی ځناور دَ خپلو سوراخونو نه او غارونو نه را اوځی او شریان بدمعاشیان دَ خپلو کورونو نه رابهر شی او غلا کوونکی دَ غلا کوشش کوی او په حدیث سره ثابت ده چه هرکله نمر غائب شی نو پیریان راخواره شی نو تاسو خپل بچی دَ ځان سره یو ځائے کړئ او څاروی هم راجمع کړئ تر دے پورے چه اول حصه دَ ماسخوتن تیره شی۔ او هرکله چه دا عوارض اهلِ قرآن ته پیښ شی نو هغه دَ مقصد نه محرومه شی دَ دے وجے دَ دے نه تعوذ غوښتل ضروری دی۔ (فائده) هرکله چه په غاسق کښې معنیٰ دَ ظلمت ده او ظلمت دوه قسمه دے یو ظاهری چه هغه دَ شپے تیاره ده نو بل ظلمت معنوی دے چه هغه دَ جهل تیاره ده نو په دے کښې اشاره ده تعوذ غوښتلو ته دَ جهل دَ جاهل شخص نه هرکله چه په جهل کښې ډوب شی هیڅ ثابت پکښې نه وی نو دَ هغه دَ شر نه اهلِ حق ته ډیره خطره وی۔

وَمِنْ شَرِّ النَّفّٰثٰتِ فِي الْعُقَدِ ﴿۴﴾ وَمِنْ

او دَ شر دَ پوکو کوؤنکو نه په غوټو کښې او دَ

سَدا هم خاص مستعاذ منه دے او دا شر دَ جادو دَ منترو او دَ کوډو تعویذونو کولو دے او دَ دے ظلمت اثر په عقل او په دماغو باندے پریوځي نو دَ دے هم دَ فلق سره زیاته مقابله او تضاد دے النَّفّٰثٰتِ نفث پوکے کول سره دَ لړو لاړو تو کلو ته. او تفل ډیر لاړے توکل دي او نفخ صرف پوکے کول دي او نفس (تنفس) ساه اخستل دي. دم کوؤنکی دَ خیر یا شر او جادو کوؤنکی په وخت دَ پوکی کولو کښې ضرور نفث کوي او په دے کښې اختلاف دے. دَ عکرمه او ضحاك او ابراهیم نه روایت کړے شوے دے چه دوي به نفث په وخت دَ رقیه کولو کښې مکروه گڼړلو لیکن صحیح دا ده چه مکروه نه دے ځکه چه صحیح حدیث کښې راغلے دي چه نبي صلی الله علیه وسلم معوذات په وخت دَ مرض کښې په ځان باندے لوستل او نفث به ئے کوؤ او هرکله چه په آخري بیمارئے کښې ډیر کمزورے شو نو بیا به عائشه رضی الله عنها دَ دغه سورتونو په لوستلو سره په هغه باندے نفث کوؤ او دا رنگ بل حدیث کښې وارد دي چه نبي صلی الله علیه وسلم دَ شپے اوده کیدلو نو په دواړه لاسونو کښې به ئے نفث اوکړو او معوذات به ئے اولوستل او په خپل بدن باندے به ئے خپل لاسونه راښکل.

او النَّفّٰثٰتِ جمع مؤنث ذکر کړے ده اگرچه په حدیث صحیح سره (چه روستو ذکر کیږي) ثابت ده چه سِحر کوؤنکے لبید وؤ سره دَ خپلو لوڼړو نه نو دا تغلیب دے دَ مؤنث په مذکر باندے یا موصوف حذف دے النفوس النفاثات یا تعبیر په مؤنث سره دَ پاره تحقیر دَ جادوگرو دے. فِي الْعُقَدِ جمع دَ عقدة ده غوټے دَ تار او دَ مزي او دَ کپړے ته وئیلے کیږي دَ جادوگرو عادت دا وو چه دَ سحر کلمات وائي او تار له غوټه ورکوي او په هغے باندے نفث کوي او هغے ته بندونه هم وئیلے کیږي دَ دے تشبیه دَ وجے نه هر بند غاړے ته اچول مکروه دي ځکه چه دَ بندونو جوړولو اگرچه رقیه صحیح وي (باقي په بل مخ)

خو دلیل شرعي نیشته دے . او دَ لفظ دَ شر نه معلومه شوه چه دَ سحر دَپاره تاثیر شته دے په اذن دَ الله تعالی سره اګرچه کار دَ ګمراهۍ دے لکه چه سورة بقره ۱۰۲ کښې تیر شویدی او دا رنګ واقعه دَ ساحرانو دَ فرعون هم دلالت کوی لکه په سورة اعراف ۱۱۶ کښې ذکر دی او دا مسلك دَ اهل حق دے . او دَ دے شر تخصیص ئې په دے وجه سره اوکړو چه ساحر په سحر کولو سره دَ چا ژبه بنده کړی دَ چا نظر بند کړی دَ چا عقل باندے تاثیر اوکړی نو مجنون شی نو قرآن والو له دَ دے شر نه حفاظت او تعوذ ډیر ضروری دے .

فائده ۱ :- په صحیح بخاری کښې دَ هشام بن عروة عن ابیه عن عائشه رضی الله عنها نه تفصیلی روایت ذکر دے حاصل ئې دا دے چه لبید بن الاعصم چه سړے وؤ دَ بنی زریق نه یهودی یا منافق وؤ دَ خپلو لونړو په ملګرتیا سره ئې په نبي صلی الله علیه وسلّم باندے جادو کړے وؤ په نبی صلی الله علیه وسلّم باندے یو دا اثر شوے وؤ چه خیال به ئې کوؤ چه ما فلانے کار کړے دے او هغه به ئې نه وؤ کړے (په باره دَ دنیوی کارونو کښې) بل دا اثر وؤ چه خیال به ئې کوؤ چه ما بیبیانو ته راتلل کړے دی او راتلل به ئې نه وؤ کړی بیا الله تعالی دَ ملائکو په واسطه سره هغه له خبر ورکړو او هغه سحر ئې دَ کوهی نه راویستلو او غوټے دَ هغې ئې پرانستلے او بیا ئې دفن کړو دَ پاره دَ دے چه خور نشی . نو دَ هغې باره کښې دا دوه سورتونه نازل شوے دی (بخاری دا حدیث په خپل کتاب کښې په کتاب الطب او کتاب الادب او کتاب الدعوات او کتاب بدء الخلق او کتاب الجزیه کښې په مختلف عبارا تو سره راوړے دے او مطلب ئې یو دے).

سوال :- دَ دے حدیث نه خو لازمیږی چه نبی صلی الله علیه وسلّم مسحور وؤ او قرآن کریم کښې سورة اسراء ۴۷ او سورة فرقان ۸ کښې فرمائیلے دی چه دا قول دَ کافرانو دے ؟

اول جواب دا دے چه دا قول دَ کافرانو خو په مکه کښې وؤ او واقعه دَ سحر خو په مدینه کښې شویده . دوئیم جواب معنی دَ مسحورا داده

## وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ ﴿۵﴾

شر دَ حسد کوؤنکی نه کله چه حسد ښکاره کړی.

چه دغۀ ته سحر خود لے شو یدے یعنی دوی وحی ته سحر وئیل.
دریم جواب مسحور هغه څوک دے چه دَ هغه دَ پاره سَحر (ترږے) وی یعنی خوراک او څښاك کوی بشر وی.
څلورم جواب دا دے چه مسحورا هغه څوک وی چه سحر ورباندے داسے اثر کړے وی چه قوّة عاقله ئے برباد شوے وی نو مجنون وی او خبرے ئے ګډې وډے وی او په واقعه دَ سحر دَ نبی صلی الله علیه وسلّم کښ صرف په قوّة خیالی دَ هغه باندے اثر شوے وو دَ هغه په عقل او زړه او عقیده باندے هیڅ اثر نه وؤ شوے دلیل په هغے باندے الفاظ دَ حدیث دَ بخاری دی چه يُخَيَّلُ إِلَيْهِ إِنَّهُ فَعَلَ الشَّيْءَ دا جواب قاضی عیاض غوره کړے دے. (سوال) سحر خو دَ نبوت دَ شان سره منافی دے؟ (جواب) ابن قیمؒ وئیلے دی چه دا خیالی سحر خو یو مرض دے دَ مرضو نو نه او مرض په انبیاء علیهم السّلام باندے راځی لکه اغماء (بے هوشی) او دلیل په دے باندے حال دَ موسٰی علیه السّلام دے چه په سورة طٰه ۶۶ کښ ذکر دے. بعضو مبتدعینو لکه ابوبکر اصم او دَ دے زمانے بعض جاهلانو وئیلے دی چه دا حدیث مردود دے او په هشام بن عروه باندے ئے رد کړے دے لیکن دا سے خلق په خپل عقل ناقص باندے اعتماد کوی او دَ مسحور په معنٰی باندے نه پوهیږی نو دَ هغے وجے نه دَ منکرینِ حدیث په شان صحیح احادیث رد کوی. ابن قیمؒ وئیلے دی چه هشام اوثق او اعلم وؤ او هیچا دَ ائمه دَ حدیث نه په هغه باندے کلام نه دے کړے بلکه دَ عائشه رضی الله عنه نه سیوا دَ هشام نه نورو روایاتو نه هم نقل کړے شوے دی او ټولو ائمو دَ حدیث او دَ تفسیر او دَ تاریخ او فقهاؤ دے حدیث ته صحیح وئیلے دی.
ف۵ دا هم خاص مستعاذ منه دے او دَ دے مناسبت دَ سحر سره په څو وجوهو سره دے اوّل دا چه دواړه (سحر او حسد) مشترك دی په دے خبره کښ چه دَ شیاطین الجن والانس (پاتے په بل مخ)

نه صادریږی۔ دویم داچه دا دواړه مرضونه سحراوحسد په یهودیانوکښی ډیر وو. دریم داچه حسد اثرد خبث دَ نفس دے او سحرحاصلیږی په مدد دَ ارواح خبیثه شیطانیه سره۔
حَاسِدٍ حسد بغض دَ نعمت دَ الله تعالیٰ دے په محسود باندے او تمنا دَ زوال دَ نعمت ده دَ غیر نه اوکله په معنیٰ دَ غبطه سره راځی لکه په حدیث لاحسد الا فی اثنتین کښی او دا گناه نه دے په هغه دوه خیزونو کښی، اوحسد په اوله معنیٰ سره گناه کبیره دے اوحدیث کښی وارد دی چه یأکل الحسد الحسنات کما تأکل النار الحطب (حسد نیکو لره داسے خوری لکه چه اور اوچ خشاک لره خوری) اوحسد اول گناه دے چه په آسمان کښی ابلیس دَ آدم علیه السلام سره کړے وو او اول گناه دے په زمکه کښی چه قابیل دَ خپل رور هابیل سره کړے وو۔
بَعض حکماؤ وئیلی دی چه حاسد خفګان کوونکے دے په تقسیم دَ الله تعالیٰ باندے او دَ الله تعالیٰ سره ضد کوونکے دے او دَ ابلیس میراث سنبالوونکے دے۔اوحسد سبب دَ ډیرو گناهونو دے لکه واقعه دَ رونړو دَ یوسف علیه السّلام په دے گواه ده چه هغوی پلار ته تکلیف ورکړو او مختلف کید ونه ئې اوکړل او ډیر دروغ ئې اوئیل لیکن عاقبت ئې ناکامی وه۔
او ابن عطیه په قباحت دَ حسد کښی دا شعر راوړے دے ؎

کل العداوة قد ترجیٰ إفاقتها
إلا عداوة من عاداک من حسد

او وئیلی دی چه حسد دَ محسود دَ پاره سبب دَ فضیلت دے شعر ؎

و اذا اراد الله نشر فضیلة
طویت اتاح لها لسان حسود۔

إِذَا حَسَدَ دا قید ئې دَ دے وجے نه اولګوؤ چه کله دَ انسان په زړه کښی حسد بے اختیاره وی لیکن پټ ئې ساتی او محسود ته هیڅ ضرر رسول نه غواړی نو دَ دے گناه نیشته او هر کله چه په

رسونو او ژبے سره هغه ته ضرر رسوی او په ستر ګو سره هغه دَ
نظره کوی نو دا شر دَ حسد دے او دَ دے په وجه سره اهلِ
قرآن ته لوئے رکاوټ پیدا کیږی او هغه لره دَ مقصد ته اړوی۔
او ابن قیم ذکر کړے دی چه دَ حاسد دَ شر نه دَ بچ کیدلو دَ پاره
لس اسباب دی اول تعوّذ بالله دے لکه چه په دے سورة کښ ذکر
دے دویم تقوٰی دریم صبر څلورم توکل علی الله تعالیٰ پنځم خپل
زړه دَ هغه دَ فکر او سوچ کولو نه خالی ساتل۔ شپږم الله تعالیٰ ته
توجه کول او اخلاص کول اووم توبه کول دَ خپلو ګناهونو نه چه
هغه سبب دَ تسلط دَ حاسدانو دے۔ اتم صدقات کول نهم احسان
کول دَ حاسد سره۔ لسم یقین کول چه نفع او ضرر په اختیار دَ الله تعالیٰ
کښ دی او حاسد بغیر دَ اذن دَ الله تعالیٰ نه هیڅ نشی کولے۔

ختم شو تفسیر دَ سورة الفلق په فضل دَ الله تعالیٰ سره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

## سورة الناس

ربط دَ دے سورت دَ مخکښې سره په څلورو وجوسره دے اول داچه په هغه سورت کښې دَ سحر اوحسد نه استعاذه ذکرشوه نو په دے سورت کښې استعاذه دَ منشاء دَ هغې دوالړو ذکرکوی چه وسواس دے دویمه وجه داچه په هغه سورت کښې فلق (په معنیٰ دَخلق) ذکرشو نو په دے سورت کښې اشرف دَخلقو ذکر کوی چه الناس دی یعنی تخصیص بعد التعمیم دے. دریمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې دَالله تعالیٰ یوصفت ذکر دے او په دے سورت کښې دَهغه درے صفتونه ذکر دی. څلورمه وجه دا ده چه په هغه سورت کښې تعوذ وو دَ شر دَ مصائبو خارجیو نه او په دے سورت کښې تعوذ دے دَ شر دَمصائبو داخلیو نه۔

دعوٰی دَ سورت۔ امردے په تعوذ سره دَ شر دَ وسواس نه۔

خلاصه دَ سورت۔ امر دے په تعوذ بالرب سره او درے صفتونه دَ الله تعالیٰ ذکر دی، رب، ملك، إِلٰه، او درے اوصاف دَ مستعاذمنه ذکر دی۔ وسواس، خناس، الذی یوسوس فی صدور الناس۔

تفسیر:۔ په دے ایت کښې ذکر دَ مستعین دے او امر دے په استعاذه سره او ذکر دَ یو صفت دَ مستعاذ به دے۔

بِرَبِّ النَّاسِ خالق ئې نه دے وئیلے ځکه چه صفت دَرب دَ استعاذه سره مناسبت لری چه استعاذه کښې معنیٰ دَحفاظت ده او حفاظت سره تربیت مناسبت لری۔ النَّاسِ الله تعالیٰ خو رب العالمین دے لیکن

# اِلٰهِ النَّاسِ ﴿٣﴾ مِنْ شَرِّ الْوَسْوَاسِ

حقدار دَ بندګئ دَ انسانانو ، دَ شر دَ وسوسو اچوونکی نه

دَ انسانانو تخصیص ئې یو دَ دے وجے نه کړے دے چه دَ قرآن مخاطبین اول انسانان دی او جنات تابع دی او نور مخلوق خو مکلف نه دے دویم دَ دے وجے نه چه وسوسه صرف انسان ته کیدے شی او روستو ذکر دَ شر دَ وسواس دے. او رَبّ دَ تربیت نه ماخوذ دے او مراد دَ تربیت نه دا دے چه دا انسان ئې پیدا کړے دے او دَ هغه دَ پالنے خیزونه الله تعالیٰ پیدا کړے دی او پیدا کوی ، او باران وروی بوټی را اوباسی دانے او میوے پخه وی او به ئې پیدا کړیدی او رِ ئې پیدا کړے دے انسان ته ئې دَ خوراک او دَ هضم اسباب ورکړے دی او دَ دے یو تصویر په سورة عبس کښ دَ ۲۴ نه تر ۳۲ پورے ذکر دے او سورة نحل ۵۳ کښ هم دے او دا توحید دَ خالقیت او ربوبیت دے.

۲ مَلِكِ دَ مُلك نه ماخوذ دے او ملوکیت و ئیلے شی تسلط په انتظام کولو او حکم کولو کښ او په رعیت باندے اطاعة دَ ملِك واجب وی نو په دے کښ اشاره ده توحید فی الحکم والطاعة و التحلیل والتحریم ته. او مَلِك په صفت دَ الله تعالیٰ کښ دَ دے نه علاوه قرآن کښ څلور کرته ذکر دے دوه کرته الملك الحق سورة طٰه ۱۱۴ سورة مؤمنون ۱۱۶ او دوه کرته الملك القدوس سورة حشر ۲۳ او سورة جمعه ۱ کښ.

۳ اِلٰهِ په معنیٰ مشهور سره دے حقدار دَ بندګئ ته و ئیلے شی او اطلاق ئې په هغه ذات کیږی چه مخلوق ورته حاجتونه پیش کوی او هغه ئې پوره کوی دَ سیبویه (امام دَ نحو) نه روحی نقل کړے دی ئې معنی الله گفت أن سیبویه. یُولِهُوْنَ فِی الْحَوَائِجِ هُمْ لَدَیْهِ" (معنیٰ دَ اِلٰه سیبویه و ئیلے ده چه خلق ورته په حاجتونو کښ عاجزی کوی)۔ او دَ دے تفصیل په تفسیر دَ سورة فاتحه کښ موجود دے نو په دے کښ اشاره ده توحید دَ الوهیت ته.

فائده :- دَ دے درے صفتونو دَ تخصیص دَ پاره (پاتے په بل مخ)

درې وجوه دی اوله وجه دا ده چه په دے صفتونوکښ ترتیب واقعی دے هغه دا دے چه اول عقیده د ربوبیت ضروری ده نو په هغې کښ اشاره ده چه د ټولو انعاماتو خالق او مالک او ورکوونکے الله تعالیٰ دے بیا که څوک وهم اوکړی چه هغه انعامات راکړے دی نو ټول زموږ د پاره مباح دی لکه فرقه اباحیه او نظریه اشتراکیت دا عقیده لری یا څوک اوائی چه تحلیل تحریم په دے انعاماتوکښ د اقتدار والـو اختیار دے څوک وائی چه د امامانو او علماؤ اختیار دے څوک وائی د پیرانو اختیار دے نو د دے وهمونو جواب ئې اوکړو په مَلِكِ النَّاسِ سره یعنی هغه بادشاه او اختیار د حل او حرمت د هغې دے څه ئې حلال کړے دی او څه ئې حرام کړے دی بیا که څوک وهم اوکړی چه په موږ د هغه تحریم او تحلیل او اطاعت په څه سبب سره واجب دے نو جواب اوشو چه إِلَٰهِ النَّاسِ یعنی حقدار د عبادت دے نو په موږ باندے د هغه عبادت فرض دے.

دویمه وجه دا ده چه دا درے صفتونه ټولو اسماؤ او صفاتو د الله تعالیٰ سره مستلزم دی لکه چه ابن قیمؒ وئیلی دی چه په رَبِّ کښ الخالق، القادر، الباری، المصور، الحی، القیوم، العلیم، السمیع، البصیر، المحسن، المنعم، الجواد، المعطی وغیرها داخل دی او په مَلِكِ کښ الأمر، الناهی، المعز، المذل، المانع، النافع، الضار، القدام، المؤخر، العزیز، الجبار، المتکبر، الحکم، العدل، الخافض، الرافع، یضل من یشاء، یهدی من یشاء، یسعد من یشاء، یشقی من یشاء وغیرها داخل دی او په إِلٰه کښ ټول صفات د جمال او کمال داخل دی.

دریمه وجه د دے درے صفتونو مناسبت دے د استعاذے سره ځکه چه رب مالک او ورکوونکے دے او مَلِك حفاظت کوونکے دے او إلٰه حاجت پوره کوونکے دے او دا صفتونه چه په چاکښ وی نو هغه پناهی او بچاؤ ورکولو باندے قدرت لری.

فائده (سوال) الناس ئې درے کرته اُوئیل نو په روستو دوؤکښ ئې ضمیر ولے راونه وړو؟ (جواب) د دے هم درې وجوه دی.

# الْخَنَّاسِ ④ الَّذِي يُوَسْوِسُ

| چه پټیدونکے دے، | هغه | چه | وسوسے | اچوی |
|---|---|---|---|---|

اول وجه دَ تاکید دَ پاره ده یعنی انسان په هر وخت کښ او په هر څیز کښ الله تعالیٰ ته محتاج دے۔ دویمه وجه دا ده چه په اول الناس کښ و ړوکوالی دَ انسان ته اشاره ده او په دویم کښ ځوانی ته اشاره ده او په دریم کښ بوډاوالی ته اشاره ده او دَ اول سره صفت دَ رب مناسب دے او دَ دویم سره صفت دَ مَلِك او دَ دریم سره صفت دَ اِلٰه مناسبت لری۔

فائده:۔ په دے کښ معلومه شوه چه توحید دَ ربوبیت مستلزم دے توحید دَ طاعة لره او هغه دواړه مستلزم دی توحید دَ الوهیت لره او لوئے مقصد توحید دَ الوهیت دے دَ دے وجے نه په کلمه دَ توحید کښ لفظ اِلٰه ئے ذکر کړے دے (لا اِلٰه الا الله) او توحید دَ الوهیت متضمن دے ټولو انواعو دَ توحید لره۔ دَ دے وجے نه قرآن کښ اخری ئے دا صفت ذکر کړو۔

سک په دے کښ ذکر دَ مستعاذ منه دے او دَ هغه ئے درے اوصاف ذکر کړے دی اول الْوَسْوَاسِ دا صیغه دَ صفت ده مصدر نه دے او دا اخستلے شوے ده دَ وَس نه چه پټ آواز ته وئیلے شی۔ او وسوسة دَ تکرار دَ معنیٰ دَ وجے نه لفظ کښ هم تکرار راغے یعنی وسوسه اچوونکے بار بار وسوسه په عرف کښ پټه القاء ده په نفس کښ دَ شر یا په پټ آواز سره چه صرف موسوس (هغه څوک چه وسوسه ورته کیدیشی) ئے اوری یا بغیر دَ آواز نه که دَ نفس دَ طرف نه وی یا دَ جنی دَ طرف یا دَ انسی دَ طرف نه وی او هر کله چه پټه القاء دَ خیر وی نو هغې ته الهام وئیلے شی۔

سوال:۔ من شر وسوسته ئے ولے نه دے وئیلے؟

جواب:۔ شر الوسواس عام دے یعنی هر قسم شر دَ هغه اگرچه دَ وسوسه نه بغیر وی او شرٌ وسوسته خو خاص دے او مقصود خو استعاذه ده دَ عام شر نه۔ دویم وصف الْخَنَّاسِ دَ خنس نه ماخوذ دے په شا پاتلے تلل او پټیدل دی روستو دَ تبکاره کیدلو نه (پاتے په بل مخ)

فِىۡ صُدُوۡرِ النَّاسِ ۝۵ مِنَ الۡجِنَّةِ وَالنَّاسِ ۝۶

په سینو دَ انسانانو کښې . دَ پیریانو او دَ انسانانو نه.

او دَ دے وجے نه دَ ستورو په صفت کښې الخنس سورة تکویر ۱۵ کښې تیر شویدے او په روایت دَ ابن عباس رضی کښې دی چه شیطان کوږے لګولے دی په زړه دَ ابن آدم نو هرکله چه دا زړه غافل شی نو دے ورته وسوسے اچوی او هرکله چه ذکر کوی الله تعالیٰ لره نو دے روستو شی او پټ شی. او الخنّاس صیغه دَ مبالغے ئے دَ دے وجے نه ذکر کړیده چه دے لکه چه بار بار وسوسه اچوی نو دا رنګ بار بار روستو کیږی په وخت دَ ذکر دَ الله تعالیٰ کښې. او په دے وصف کښې لطیفه اشاره ده چه شیطان په اصل کښې کمزورے دشمن دے ځکه چه دَ ذکر دَ الله تعالیٰ مقابله نشی کولے او په سورة زخرف ۳۶ کښې هم دے ته اشاره ده.

نو معلومه شوه چه ذکر دَ الله تعالیٰ ( په طریقه شرعیه سره) مضبوطه قلعه ده دَ بچ کیدلو دَ شیطان نه.

۵ دا دریم وصف دے. (سوال) دا صفت خو دَ اول پشان دے نو ولے ئے دوباره ذکر کړو؟ (جواب) دا دے اول صرف وسوسه اچول دی او په دے کښې ذکر دَ محل دَ وسوسے دے چه صدور الناس دے. (سوال) وسوسے خو په زړه کښې راځی لکه نورو روایاتو نه معلومه ده او مشهوره هم ده نو دلته ئے دَ سینے ذکر ولے اوکړو؟ (جواب) سینه دَ زړه دَ پاره درشل ده نو زړه محل دے دَ ذکر دَ الله تعالیٰ خاص دے په ذکر الله پورے نو شیطان له دا طاقت نه ورکوی چه زړه ته دننه ورداخل شی نو دے دَ سینے په واسطے سره زړه ته القاء کوی.

فِىۡ صُدُوۡرِ النَّاسِ کښې دوه احتمالونه دی اول دا چه ظاهری معنیٰ مراد ده او مراد دا دے چه شیطان جنی او انسی کوشش کوی چه وسوسه دَ دهٔ دَ انسان زړه ته اورسیږی، جنی خو دننه هم داخلیدلے شی بنا په ظاهر

دَ هغه حدیث دَ بخاری چه اِنَّ الشَّیْطَانَ یَجْرِیُ مِنَ الْاِنْسَانِ مَجْرِیَ الدَّمِ، لیکن انسی شیطان دَ بهر نه کوشش کوی دَ وسوسے رسولو.
دویم احتمال دا دے چه دا ذکر دَ محل دے مراد تر ینه حال دے یعنی عقیده، ایمانیات نو مراد دا دے چه شیطان جنی او انسی عقیدے په باره کښی اول او ډیرے وسوسے اچوی کفر او شرک ته انسان راکاږی ځکه چه عقیده ئے خرابه شی نو ټول اعمال په هغے سره باطل کرځی نو دا جمله (الذی یوسوس) روستو دَ الوسواس ته تخصیص بعد التعمیم دے.
فائده:- ابن قیم رحمة الله په بدائع التفسیر کښی وئیلی دی چه انواع دَ شر دَ وسواس او افراد دَ هغے خو ډیر دی لیکن اجناس دَ هغے په شپږو کښی منحصر دی، اول شر، شر دَ کفر او دَ شرک دے شیطان اول دَ دے کوشش کوی. دویم شر دَ بدعت دے چه هغه شیطان ته دَ نورو ګناهونو نه زیات محبوب دے ځکه چه انسان دا ګناه نه ګنړی نو تو به تر ینه نه اوباسی. دریم شر نور ګناهونه کبیره هغه که په حقوق الله کښی وی او که په حقوق العباد کښی وی. څلورم شر دَ صغائرو ګناهونو دے ځکه چه دا راجمع شی په انسان کښی او توبه تر ینه اوباسی نو سبب دَ هلاکت جوړیږی. پنځم شر اشتغال دے په مباح کارونو یا ندے ترڅو پورے چه دَ فرض او واجب غیره کارونو دَ ثواب نه محرومه شی. شپږم شر اشتغال دے په مرجوح اعمالو یا ندے سره دَ قدرت نه په اعمال راجحو باندے یعنی په یو مسئله کښی دوه جانبه وی دواړه دَ دلیل په اعتبار سره جائز وی لیکن دَ یو دلیل صریح او ډیر قوی وی په نسبت دَ بل جانب باندے لیکن دَ تقلید شخصی دَ وجے دے په جانب مرجوح باندے همیشه عمل کوی. او هر کله چه شیطان دَ دے شرونو نه دَ یو انسان په باره کښی عاجز شی نو بیا ورپسے خپلے لښکرے انسی او جنی اولګوی په هغه باندے بهتانونه او طعنونه کوی غلطے فتوے کوی خلقو لره دَ هغه دَ ملګرتیا نه منع کوی لیکن دغه انسان دَ هغے مقابله په صبر و استقامت سره کوی او الله تعالی ورسره (پاتے په بل مخ)

مراد خاصه کوی نو ژوندا ئے په دے جهاد کښ تیر شی تر دے پورے چه په دا سے حال کښ وفات شی۔
ے په دے کښ دَ مفسرینو دوه اقوال دی اول دا چه دا بیان دے دَ الناس چه په (صدور الناس) کښ ذکر دے یعنی هغه خوک چه هغوی ته وسوسے اچولے کیدیشی هغوی په دوه قسمه دی پیریان او انسانان۔
او په دے قول باندے اعتراض دادے چه دَ الناس اطلاق خو په الجنة باندے نشی کیدلے بلکه دلته لازمیږی تقسیم دَ ځیز خپل نفس ته او غیر ته او دَ دے جواب کړے شویدے په دوه طریقو سره اول دا چه الناس (اول) کښ عموم دَ مجاز مراد دے یعنی مطلق مکلف مخلوق۔ او په دویم سره انسانان مراد دی۔ دویم دا چه اطلاق دَ الناس دا سے دے لکه چه اطلاق دَ الرجال په سورة الجن ۶ کښ کړے شویدے او ابن قیم رحمه الله دا قول ضعیف کړے دے په ځلورو وجو سره۔
دویم قول دادے چه دا بیان دے دَ الذی یوسوس دَ پاره۔ یعنی وسوسے اچوونکے دوه قسمه دے یو قسم دَ جنا تو نه دے او بل قسم دَ انسانانو نه دے او دَ دے تائید په سورة انعام ۱۱۲ کښ دے بیا وسوسه دَ شیطان انسی په واسطه دَ غوږونو سره چه په دغه واسطے سره وسوسه زړه ته رسوی او وسوسه دَ شیطان جنی په ډیرو طریقو سره وی کله په بدن دَ انسان کښ داخل شی سینے ته اورسی او کله په شکل دَ انسان سره جوړ شی او دَ هغه غوږ کښ وسوسه اچوی لکه چه حدیث صحیح کښ راغلے دی چه شیطانان دَ ملائکو نه دَ بعض خبرو غوږ سارنه اوکړی او بیا ئے په غوږونو دَ کاهنانو (تر ویتیانو) کښ اچوی او ورسره نور سل دروغ جوړ کړی۔
فائدة اول: لفظ الناس ئے پنځه کرته ذکر کړو یو وجه دا ده چه پدے کښ تاکید دے چه انسان په ربوبیت کښ الله تعالیٰ ته محتاج دے نو په ملوکیت کښ هم او په الوهیت کښ هم او دا رنګ دَ انسان بعض قسمونه مؤسوِس دی او بعض مؤسوَس دی بله وجه دا ده چه اول الناس کښ مرتبے دَ وړوکوالی ته اشاره ده ځکه چه په دغه حالت کښ

تربیت ته محتاج دے او دویم الناس کښ عمر دَ ځوانے او دَ پوخوالی ته اشاره ده چه په دغه عمر کښ انتظام او سیاست ته محتاج دے او دریم الناس کښ بوډاوالی ته اشاره ده چه په دغه وخت کښ زیاته توجه دَ الله تعالی بندګے ته پکار وی او څلورم الناس مؤمنانو ته اشاره ده چه هغوی ته وسوسے اچولے کیږی چه دَ هغې دَپاره تعوذ بالله ته محتاج دی او پنځم الناس کښ وسوسے اچووُنکی (متعدّی کافران او مبتدعین او فاسقان) مراد دی چه خلقو ته دعوت دَ ګناهونو ورکوی او دَ قران کریم نه ئے منع کوی۔

فائده دویمه:- په سورة الفلق کښ دَ مستعاذ به یو صفت او دَ مستعاذ منه درے خاص انواع ذکر شویدی او په سورة الناس کښ دَ مستعاذ به درے صفتونه او دَ مستعاذ منه یو نوع ذکر ده ځکه چه په اول سورة کښ افات دَ بدن ذکر کړے شویدی او په دویم سورت کښ افت دَ دین ذکر شویدے او حفاظت دَ دین ډیر اهم دے دَ حفاظت دَ بدن نه نو دَ هغې دَپاره ډیر تاکید پکار دے۔

فائده دریمه:- دَ شیطان دَ شر نه دَ بچ کیدلو دَپاره لس اسباب پکار دی اول استعاذه بالله دَ شیطان نه یعنی اعوذ بالله یا استعین بالله من الشیطٰن الرجیم وئیل لکه چه په سورة اعراف ۲۰۰ او په سورة حم سجده ۳۶ کښ دی۔

دویم لوستل دَ دے دواړه سورتونو او په حدیث دَ ترمذی کښ راغلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم به تعوذ غوختلو دَ جان او دَ عین الانسان (دَ نظر دَ انسان نه) نه تر دے پورے چه دا دواړه سورتونه نازل شول نو په دے ئے عمل شورو کړو او نور ئے پریخودل۔

دریم لوستل دَ ایة الکرسی لکه په حدیث ابو هریره کښ راغلی دی چه دے مقرر وو په حفاظت دَ صدقه فطر باندے (حدیث بخاری تعلیقًا)۔

څلورم لوستل دَ سورة البقره لکه چه په حدیث دَ ترمذی په باب فضائل القران کښ ذکر دی۔ پنځم خاتمه (اخری دوه ایاتونه) (یا تے په یل مخ)

دَ سورة البقره لکه چه په حدیث دَ بخاری باب فضائل القران کښ ذکر دی. شپږم اول دَ سورة حٰم مؤمن تر الیه المصیر پورے دا هم په حدیث دَ ترمذی باب فضائل القران کښ ذکر دی.
اووم لا اله الا الله وحده لا شریك له له الملك وله الحمد وهو علی کل شئ قدیر.
سل کرته لوستل لکه چه په حدیث دَ بخاری او مسلم کښ باب فضل التهلیل کښ ذکر دی. اتم کثرت سره ذکر دَ الله تعالیٰ او دا حدیث ترمذی په باب الامثال باب ماجاء فی مثل الصلوٰة کښ راوړے دے.
نهم هر وخت په اودس کښ اوسیدل او دَ اودس کولو سره موخ کول لسم ځان بچ کول دَ زیاتو خبرو کولو او دَ زیات خوراک نه او بے فائدے نظر کولو نه او دَ خلقو سره دَ بے ضرورته مخالطت نه ځکه چه دا څیزونه سبب دے دَ نورو گناهونو او گناهونه سبب دے دَ تسلط دَ شیطان.

اَللّٰهُمَّ اجْعَلِ الْقُرْاٰنَ رَبِيْعَ قُلُوْبِنَا وَجَلَاءَ هُمُوْمِنَا وَغُمُوْمِنَا. اَللّٰهُمَّ اقْسِمْ لَنَا مِنْ خَشْيَتِكَ مَا تَحُوْلُ بِهٖ بَيْنَنَا وَبَيْنَ مَعَاصِيْكَ وَمِنْ طَاعَتِكَ مَا تُبَلِّغُنَا بِهٖ جَنَّتَكَ وَمِنَ الْيَقِيْنِ مَا تُهَوِّنُ بِهٖ عَلَيْنَا مُصِيْبَاتِ الدُّنْيَا وَمَتِّعْنَا بِاَسْمَاعِنَا وَاَبْصَارِنَا وَقُوَّاتِنَا مَا اَحْيَيْتَنَا وَاجْعَلْهُ الْوَارِثَ مِنَّا واجْعَلْ ثَارَنَا عَلٰى مَنْ ظَلَمَنَا وَانْصُرْنَا عَلٰى مَنْ عَادَانَا وَلَا تَجْعَلْ مُصِيْبَتَنَا فِيْ دِيْنِنَا وَلَا تَجْعَلِ الدُّنْيَا اَكْبَرَ هَمِّنَا وَلَا مَبْلَغَ عِلْمِنَا وَلَا تُسَلِّطْ عَلَيْنَا مَنْ لَّا يَرْحَمُنَا. اَللّٰهُمَّ زِدْنَا وَلَا تَنْقُصْنَا وَاَكْرِمْنَا وَلَا تُهِنَّا وَاَعْطِنَا وَلَا تَحْرِمْنَا وَاٰثِرْنَا وَلَا تُؤْثِرْ عَلَيْنَا وَاَرْضِنَا وَاَرْضَ عَنَّا. اَللّٰهُمَّ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ. رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ. رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِاِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْاِيْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَا اِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ. رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ. رَبَّنَا لَا تُزِغْ

قُلُوْبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً ۚ إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ ۔ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَّسِيْنَا أَوْ أَخْطَأْنَا رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ۔ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا أَنْتَ مَوْلٰـنَا فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِيْنَ ۔ اَللّٰهُمَّ اٰمِيْن ۔

ختم شو تفسیر احسن الکلام او ترجمه په حمد او په توفیق د الله تعالیٰ سره په تاریخ ۲۹/ رجب المرجب په ورځ د سه شنبه ۱۴۱۷ھ مطابق د ۱۰/ دسمبر ۱۹۹۶ء سره ۔

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ

عبد السلام بن عبد الرؤف

مدیر جامعة تعلیم القرآن رستم مردان والجامعة العربیة لاشاعة التوحید والسنة السنیه پړه بېړ کوهاټ روډ پېښور ۔

## دَ تفسیر احسن الکلام سره متعلق څو اعلامات

اول اعلام ـ دَ دے تفسیر په اول لس پارو کښې تفسیری اختصار کړ شویدے دَ هغې اوله وجه دا ده چه دَ غه جزء دَ تفسیر په سنټرل جیل مردان کښې لیکلے شوے وو مراجعه دَ کتابونو مشکله وه۔ دویمه وجه دا ده چه په هغه وخت زما اراده هم داوه چه په حاشیه دَ قرآن کریم باندے مختصر تفسیر یا ترجمه اولیکلے شی. بیا دَ ملګرو په مشوره سره په دغه اراده کښې تبدیلی راغله ـ دریمه وجه دا وه چه دَ دورهٔ تفسیر (شعبان و رمضان) په وخت کښې په اوله حصّه دَ قرآن کریم کښې عادةً تفصیل زیات کیدیشی او هغه په کیسټو کښې او دَ طالبانو په مخطوطاتو کښې موجود دے او په روستو حصّه کښې دَ تنګ والی دَ وخت دَ وجے نه اختصار کیدیشی نو په دے تفسیر کښې برعکس کار اوکړے شو دَ پاره دَ اتمام دَ فائدے ـ لیکن اوس دَ ملګرو په مطالبه سره ما اراده اوکړه چه په توفیق دَ الله تعالیٰ سره اول جزء (لس پارے) دَ روستی حصے پشان په تفصیل سره اولیکم (انشاء الله تعالیٰ) ۔

دویم اعلام ـ په تفسیر کښې په اکثرو ځایونو کښې ما دَ تفاسیرو او نورو مراجعو حواله نه ده ورکړے دَ پاره دَ غرض دَ اختصار کوؤلو لیکن دَ کومو تفاسیرو یا نورو کتابونو نه چه ما دَ تفسیر دَ پاره اخذ کړے دے دَ هغې تفصیل روستو ذکر کوؤم ـ هاں بعض فائدے او حکمتونه چه ما په خپل تدبر او تفکر سره لیکلے دی نو دَ هغې مرجع ماته معلوم نه دے که چا معلوم کړو نو زما دَ مراجعو دَ فهرست سره دِ هغه ملحق کړی یا دے دَ هغه فائدے او حکمت سره دَ هغې حواله اولیکی زهٔ به دَ هغه زیرِ احسان یم ـ

دریم اعلام ـ ما ترخپله وسه پورے دَ لفظی ترجمے په خپله پښتو ژبه کښې کوشش کړے دے لیکن بعض ځایونو کښې دَ ضرورت دَ وجے نه بامحاوره معنیٰ لیکلے شوے ده ـ

څلورم اعلام ـ په تفسیر کښې ما کوشش کړے دے چه دَ پښتو ژبے استعمال اوکړیشی لیکن په بعضو ځایونو کښې دَ خپل تفسیری نهج

په وجې سره اصطلاحي الفاظ په عربي ژبه کښې ليکلے شوي دي او دَ هغې الفاظو دَ دې تفسير په مقدمه کښې معاني ليکلې شوي دي هغه اوګورئ.

پنځم اعلام - دَ ليکلو دَ غلطيانو دَ تصحيح دَ پاره ما خامنو محمد ابو سعيد او ابو صهيب عبد الصبور السيّد او ما پخپله په ترتيب سره کوشش کړے دے ليکن سره دَ دے نه بعض غلط به اوس هم باقي وي لوستونکو ته عرض دے چه کومے غلطے تاسو ته په نظر بانده راځي نو دَ هغې تصحيح اوکړئ او مونږ ته دَ هغې خبر راکړئ دَ پاره دَ دے چه بل اشاعت کښې دَ هغې تصحيح او تدارک اوکړے شي.

عبد السّلام عبد الرؤف

# فهرست دَ هغه کتابونو چه دَ هغې نه دَ دې تفسير په ليکلوکښې ما استفاده کړې ده

| دَ کتاب نوم | شهرت | دَ مؤلف نوم |
| --- | --- | --- |
| ① تفسير جامع البيان فى تأويل القرآن۔ | تفسير الطبرى | ابو جعفر محمد بن جرير الطبرى المتوفى سنه ۳۱۰ھ |
| ② المحرر الوجيز فى تفسير الكتاب العزيز | — — — — — | قاضى ابو محمد عبد الحق بن غالب بن عطيه المتوفى سنه ۵۴۶ھ |
| ③ الجامع الاحكام القرآن | تفسير القرطبى | ابو عبد الله محمد بن احمد بن بكر بن فرح الانصارى الاندلسى القرطبى سنه ۶۷۱ھ |
| ④ تفسير القرآن العظيم | تفسير ابن كثير | حافظ ابن كثير سنه ۷۷۴ھ |
| ⑤ التفسير الكبير | تفسير كبير | امام فخر الدين رازى سنه ۶۰۶ھ |
| ⑥ لباب التاويل فى المعانى التنزيل | تفسير خازن | امام علاء الدين على بن محمد البغدادى سنه ۷۴۱ھ |
| ⑦ غرائب القرآن ورغائب الفرقان | تفسير نيشاپورى | نظام الدين حسن بن محمد بن الحسين القمى النيساپورى سنه ۷۲۸ھ |
| ⑧ نظم الدرر فى ربط الآيات والسور۔ ⑨ مصاعد النظر للاشراف على مقاصد السور | تفسير البقاعى | برهان الدين ابو الحسن ابراهيم بن عمر البقاعى سنه ۸۸۵ھ |
| ⑩ تفسير روح المعانى — — | — — — — — | شهاب الدين السيد محمود آلوسى البغدادى سنه ۱۲۷۰ھ |
| ⑪ تفسير البحر المحيط — — | — — — — — | محمد بن يوسف ابو حيان اندلسى الغرناطى سنه ۷۵۴ھ |
| ⑫ السراج المنير | تفسير خطيب | الخطيب الشربينى سنه ۹۷۷ھ |
| ⑬ بدائع التفسير — — | — — — — — | ابن قيم الجوزية محمد بن ابى بكر سنه ۷۵۱ھ |
| ⑭ تفسير القاسمى | تفسير القاسمى | محمد جمال القاسمى سنه ۱۳۳۲ھ |

| دَ کتاب نوم | شهرت | دَ مؤلف نوم |
|---|---|---|
| (۱۵) زادالمسیر فی علم التفسیر | تفسیر ابن جوزی | ابو الفرج عبد الرحمٰن بن جوزی القرشی البغدادی ۵۹۶ھ |
| (۱۶) البرهان فی علوم القرآن | ـــــــ | بدرالدین محمد بن عبد الله الزرکشی ۷۹۴ھ |
| (۱۷) الفوائد فی مشکل القرآن | ـــــــ | عزالدین بن عبد العزیز بن عبد السّلام ۶۶۰ھ |
| (۱۸) جامع البیان فی التفسیر القرآن | ـــــــ | معین الدین محمد بن عبد الرحمٰن الحسنی الحسینی الایجی ۸۹۴ھ |
| (۱۹) لسان العرب | ـــــــ | امام ابن منظور ۷۱۱ھ |
| (۲۰) الاتقان فی علوم القرآن | ـــــــ | الحافظ جلال الدین عبد الرحمٰن السیوطی ۹۱۱ھ |
| (۲۱) تیصیرالرحمٰن فی تفسیر القرآن | ـــــــ | علی بن احمد المهائمی ۸۳۵ھ |
| (۲۲) التفسیر القیم | ـــــــ | ابن قیم الجوزیة ۷۵۱ھ |
| (۲۳) کتاب التفسیر من الجامع الصحیح | ـــــــ | امام محمد بن اسمٰعیل البخاری ـــــه |
| (۲۴) تیسیر العلی القدیر لاختصار لتفسیر ابن کثیر | ـــــــ | محمد نسیب الرفاعی |
| (۲۵) تفسیر جواهر القرآن | ـــــــ | شیخ القرآن غلام الله خان راولپنډی ۱۴۰۰ه |
| (۲۶) الاستفادات المخطوطة (عندی) | ـــــــ | شیخ القرآن محمد طاهر پنج پیری ۱۴۲۷ه |
| (۲۷) ملاک التاویل فی متشابه اللفظ من ای التنزیل | ـــــــ | احمد بن زبیر الغرناطی ۷۰۸ھ |
| (۲۸) غرائب التفسیر وعجائب التاویل | ـــــــ | محمود بن حمزه الکرمانی ۵۰۵ھ |

او دَ دے نه علاوه بعض نور کتابونه هم شته چه دَ هغې نه ما په تفسیر لیکلو کښې جزوی استفاده کړے ده.